

# اصول التفسیر وعلوم القرآن

مؤلف

فضیلۃ الشیخ ابو محمد امین اللہ پشاوری حفظہ اللہ

جمع وترتیب

ابو زهیر سیف اللہ حفظہ اللہ

مکتبہ محمدیہ
منگل مارکیٹ گنج پشاور
Mob: 0301-8828402




مؤلف

الشیخ المفسر

ابو محمد امین اللہ البشاوری حفظہ اللہ

جمع وترتیب

ابوزھیر سیف اللہ عفی عنہ

ناشر

مکتبہ محمدیہ

بیرون گنج گیٹ منگل مارکیٹ پشاور شہر

0301-8828402-0301-5964254

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | اصول التفسير وعلوم القرآن |
| مؤلف | الشيخ ابو محمد امين الله البشاوری حفظه الله |
| جمع وترتیب | ابوزهير سيف الله غفر له الله |
| سنه طباعت | ۲۰۱۰/۵/۷ - مطابق : ۱۴۳۱ هـ جمادی الاولیٰ ۲۵) |

ناشر

مکتبه محمدیه پشاور

ولی الله

0301 8828402



پدې کتاب کښې یوه مقدمه ده او بیا د تفسیر متعلق بحثونه بیانیږي چه څه د اصول التفسیر سره متعلق دي او څه خارجي مباحث دي چه هغې ته علوم القرآن (یعني قرآني علوم) وئیلې شي چه هغه د قرآن کریم متعلق ضروري معلومات دي چه د قرآن سره د هر تعلق لرونکي دپاره او خصوصاً د مُفَسِّر دپاره د هغې پیژندل انتهائي ضروري دي۔

دا بحثونه به د امورو یا بحثونو په عنوان سره بیانیږي۔

په مقدمه کښې پنځه مباحث (بحثونه) دي۔

یا داسې اُووایه چه په کتاب کښې یوه مقدمه او دوه بابونه دي

(۱) اول باب : اصول تفسیر القرآن الکریم۔

(۲) دویم باب : علوم القرآن۔

OOOOOOOO

بسم الله الرحمن الرحيم

## البحث الاول : فضائل القرآن

إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ أَعْمَالِنَا مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ. يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ، يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَّاحِدَةٍ، وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَّنِسَاءً ا ء وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ، إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا﴾ ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا، يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ، وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزاً عَظِيمًا﴾ . أَمَّا بَعْدُ :

قرآن کریم د الله تعالیٰ عظیم کتاب دے او ددے نه بهترین کتاب الله عزوجل نۀ دے رالیږلے۔ د الله تعالیٰ نور کتابونه هم مخکښ راغلي دي چه هغه ډیر ښکلے کتابونه وو او هدایت پکښ پروت وو او خپله زمانه کښ ئے ډیره فائده لرله او حق او رشتینی کتابونه وو لیکن قرآن کریم له چه الله تعالیٰ کوم کمالات او خصوصیات ورکړیدی نو دا کمالات ئے په نورو کتابونو کښ نۀ دي اچولي، ددے وجه نه ددے لوستل لفظاً، معنیً او درساً په اعمالِ صالحه ؤ کښ ډیر لوئی عمل دے۔ او دا یو عمل نۀ دے بلکه دا سبب د ډیرو اعمالو دے۔ د الله کتاب لوستل او د هغے په معنیٰ او مقصد باندے ځان پوهه کول ډیر لوئی فضائل لري که انسان قرآن کریم او احادیثو ته رجوع اُوکړي نو دۀ ته به پته اُولګی چه دا واقعی ډیر عظیم عمل دے لیکن صحیح نیت ورله شرط دے۔ د قرآن کریم سره هر قسم تعلق لرل لکه د هغے الفاظ زده کول، د هغے معنیٰ او تفسیر زده کول او د هغے علوم یادول او د هغے دپاره قواعد زده کول دا ټول د قرآن کریم خدمت دے۔

الله تعالیٰ د خپل کتاب د پوهے په باره کښ فرمائی :

﴿يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَاءُ وَمَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْراً كَثِيراً وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ﴾

(البقره)۔
(ورکوی پوهه د دین (او قرآن) چا له چه اُوغواړی او چا له چه پوهه د قرآن ورکړے شوه نو دۀ ته ډیر خیر ورکړے شو او ددے خبرو نه عبرت نۀ اخلی مگر صفا عقلونو والا) مطلب دا چه بے عقله خلقو ته دنیا لوئی شے ښکاره کیږی او د عقل والو طریقه دا ده چه هغوی ته قرآن کریم او د هغے پوهه ډیر لویه خبره ښکاره کیږی۔
دارنگه سورة یونس کښ هم الله تعالیٰ دا خبره کړیده :
﴿ يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَتْكُمْ مَوْعِظَةٌ مِنْ رَبِّكُمْ وَشِفَاءٌ لِمَا فِي الصُّدُورِ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ، قُلْ بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَلِكَ فَلْيَفْرَحُوا هُوَ خَيْرٌ مِمَّا يَجْمَعُونَ ﴾ (یونس: ۵۸)۔
(اے خلقو ! تاسو ته د خپل رب د طرف نه وعظ او نصیحت راغلو او دا دوائی ده د هغه مرضونو چه په سینو کښ دی او هدایت او رحمة دے دپاره د ایمان والو، اُووایه د الله تعالیٰ په فضل او رحمت دِے خوشحالی اُوکړی ځکه دا غوره دے د هغه مال نه چه دا خلق ئے راجمع کوی)۔
دا د الله تعالیٰ خبره ده او حقیقت دے چه قرآن کریم د ټولے دنیا نه بهتر شے دے او پدے باندے خوشحالی واجب ده ځکه چه الله تعالیٰ پرے امر کړیدے۔ او پدے د الله تعالیٰ شکر کول پکار دی چه ښه دے چه الله تعالیٰ خپل کتاب رالیږلے دے۔ گنے مونږ به په کومو تیارو او گندونو کښ پراته وے۔
شیطان کله د انسان په زړه کښ داسے وسوسه راولی چه که مونږ علم اُوکړو او قرآن مو زده کړو نو څه فائده اُوشوه او څه لویه کارنامه مو اُوکړه، کوم جهاز مو جوړ کړو ؟ نو ددے جواب دا دے چه د قرآن کریم لویه فائده دا ده چه پدے سره مونږ نه مالك حقیقی او خپل خالق رضا کیږی ځکه آینده ژوند زمونږ د هغه سره دے او د هغه رضا ډیر لوئی شے دے۔
دارنگه پدے قرآن کریم زمونږ د نفسونو تزکیه او صفائی کیږی، نفس د گنده اخلاقو او بدو اعمالو او بدو صفاتو نه پاکیږی۔ انسان د دنیا د مال اومتاع په وجه نۀ سړے کیږی بلکه بنده کښ چه انسانیت راځی نو دا په ښائسته صفاتو سره۔ کله انسان ته شیطان دا وسوسه اچوی چه د دین خبرے ورته سپکے ښکاره کوی۔ چه پدے سره ئے د غټ خیر نه محرومه کړی لکه سورة الکهف او سورة الزمر کښ به دا فائده راشی چه انسان چه د قرآن نه یا د دین د یوے مسئلے او یو عمل نه محرومه کیږی نو ددے دوه اسباب دی ۔

(۱) یو کبر۔ یعنی د نفس لوئی چه انسان ځان لوچت او لوئی اوګنړی۔
(۲) او دویم د دین مسئلے سپکے ګنړل۔
د ډیرو خلقو دا مزاج دے چه د دین کومه مسئله ته بیانوے نو هغه به وائی دا خو څه دومره غټه مسئله نۀ ده۔ که توحید بیانوے، که سنت طریقه بیانوے، یا بله مسئله د اسلام بیانوے نو دا به وائی چه دا خو دومره غټه خبره نۀ ده۔
ګیره پریخودل ورته معمولی خبره ښکاری۔ د خپل مال او عزت او دنیا او عهدے او ملازمت خبره ورته څومره درنه ښکاری او د اسلام حکم ورته معمولی ښکاری، دا د شیطان جال دے، او د هغه د دعوت طریقه ده۔ الله تعالیٰ زمونږ ذهن جوړوی چه د دنیا خبره معمولی ده او د دین خبره لویه ده او د دین په خبره باندے خوشحالی پکار ده۔ دا د دنیا د هر څه نه لویه ده۔
۱– رسول الله ﷺ هم فرمایلی دی: [اَلْمَاهِرُ بِالْقُرْآنِ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ]۔ هغه څوك چه په قرآن کریم کښې مهارت لری نو دا به د قیامت په ورځ الله تعالیٰ د ملائکو سره راپاڅوی)۔
ځکه دا د هغوی په شان قرآن کریم کښې ماهر دے۔دارنګه د قیامت په ورځ به د ملائکو په مجلس کښې ملګرے وی۔
[وَالَّذِیْ یَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَیَتَتَعْتَعُ فِیْهِ وَهُوَ عَلَیْهِ شَاقٌّ لَهُ اَجْرَانِ]
[صحیح مسلم: ۱۸۹۸ وابن ماجه واحمد]۔
(او هغه سړے چه قرآن لولی او ژبه ئے پکښې انخلی) یعنی ماهر نۀ وی او په دۀ باندے قرآن ګران وی) لفظ هم ورته ګران وی او معنی زده کول هم ورته ګران وی (نو دۀ دپاره دوه اجره دی)۔
ددے حدیث نه دا فائده معلومیږی چه قرآن کریم د هر چا دپاره لوستل پکار دی اګر که یو انسان بے تعلیمه او انپړ وی۔ ځکه دۀ ته دوه اجرونه ملاویږی یو د تکلیف او بل د قرآن د لوستلو۔
۲– دارنګه دا هم معلومه شوه چه د قرآن کریم د لوستلو دپاره دا ضروری نۀ ده چه یو انسان به تول علوم کړی وی یا به تعلیم یافته وی لکه د بعض خلقو او د انګریزانو دا دعوت وو چه قرآن کریم له به ګوتے نۀ وړئ، ددے درس او تدریس او ترجمه به نۀ کوئ ځکه چه غلطه معنیٰ به اوکړئ نو ګناهګار او کافر به شئ۔ نو ډیر امت ئے د خیر نه

محرومه کړے وو۔

۲- دارنګه د رسول الله ﷺ ارشاد دے:

[مَنْ قَرَأَ حَرْفاً مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ فَلَهُ بِهَا حَسَنَةٌ لَا أَقُوْلُ الٓمٓ حَرْفٌ وَلٰكِنْ أَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيْمٌ حَرْفٌ] (ترمذى ۲۹۱۰ صحيح)۔

(چا چه يو حرف د الله تعالىٰ د كتاب أولوستلو نو دهٔ دپاره به په هر حرف يوه نيكئ ليكلے شي، زهٔ دا نهٔ وايم چه الم يو حرف دے بلكه دا درے حروف دى الف يو او لام دويم او ميم دريم حرف دے)۔

او يوه نيكئ په لس چنده باندے وى نو دا ديرش نيكئ شوے۔ ددے حديث نه يوه فائده دا معلوميږى چه كه څوك قرآن لولى اګركه په معنىٰ ئے هم نهٔ پوهيږى هغه ته هم اجر ملاويږى۔ نو قرآن كريم كښ سراسر خير خير دے۔

۳- دارنګه چا چه قرآن كريم ياد كړو د نبوت نسبت دهٔ ته كيږى۔ لكه حديث كښ ارشاد دے: [مَنْ أُعْطِيَ ثُلُثَ الْقُرْآنِ فَقَدْ أُعْطِيَ ثُلُثَ النُّبُوَّةِ وَمَنْ أُعْطِيَ ثُلُثَيِ الْقُرْآنِ فَقَدْ أُعْطِيَ ثُلُثَيِ النُّبُوَّةِ وَمَنْ أُعْطِيَ الْقُرْآنَ كُلَّهُ فَقَدْ أُعْطِيَ النُّبُوَّةَ كُلَّهَا غَيْرَ أَنَّهُ لَا يُوْحٰى إِلَيْهِ] (شعب الايمان)۔

(چا له چه دريمه حصه د قرآن وركړے شوه نو ګويا كښ دهٔ ته دريمه حصه د نبوت وركړے شوه او چا له چه دوه حصے قرآن وركړے شو نو دهٔ له دوه حصے نبوت وركړے شو او چا له چه ټول قرآن وركړے شو نو دهٔ له ټول نبوت وركړے شو، خو صرف دا ده چه دهٔ ته وحى نشى كيدے) يعنى ددهٔ او د نبى په مابين كښ به يوه درجه فرق وى۔ دا څومره لويه د خير خبره ده چه انسان د قرآن كريم په وجه د نبوت درجے ته نزدے كيږى او نبى ته ددهٔ نسبت كيږى۔ ځكه چه انبياء عليهم السلام طريقه هم دا وه چه د الله وحى زده كول او په هغے عمل كول او بل ته د هغے بيانول۔ او د علماء كرامو هم دغه طريقه ده چه د الله وحى زده كوى او خپله پرے عمل كوى او بل ته ئے بيانوى۔

٤- دارنګه ارشاد دے: [أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنْ يَغْدُوَ إِلَى بُطْحَانَ أَوِ الْعَقِيْقِ فَيَأْتِيَ كُلَّ يَوْمٍ بِنَاقَتَيْنِ كَوْمَاوَيْنِ زَهْرَاوَيْنِ يَأْخُذُهُمَا مِنْ غَيْرِ إِثْمٍ وَلَا قَطْعِ رَحِمٍ؟ قَالُوْا كُلُّنَا نُحِبُّ ذٰلِكَ۔ قَالَ: فَلَأَنْ يَغْدُوَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَيَقْرَأَ أَوْ يَتَعَلَّمَ آيَتَيْنِ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ خَيْرٌ لَهُ مِنْ نَاقَتَيْنِ وَثَلَاثٌ خَيْرٌ لَهُ مِنْ ثَلَاثٍ وَأَرْبَعٌ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَرْبَعٍ وَمِنْ أَعْدَادِهِنَّ مِنَ الْإِبِلِ]

[ابو داود ۲/۷۱) رقم (۱٤٥٦) واحمد بسند صحيح والطبرانى، وابن حبان والبيهقى فى الشعب]۔

کوم يو په تاسو کښې دا خوشبوئي چه بطحان (يو خوړدے چه عربو به پکښې ميلے لګولے) يا عقيق ته لاړ شي او هره ورځ دوه چاقے ښائسته اُوښانے راولي بغير د ګناه او صله رحمئ نه) يعني چه څه ګناهګار هم نشي او صله رحمي ئے کټ نشي او دغه فائده حاصله کړي.
(صحابه کرامو عرض اُوکړو: مونږ ټول دا خوښوو. نبي ﷺ اُوفرمايل: که يو تن په تاسو کښې مسجد ته لاړ شي او د الله تعالىٰ د کتاب نه دوه آيتونه اُولولي يا ئے زده کړي دا ددهٔ دپاره د دغه دوه اُوښانو نه ډيره غوره ده او درے آيتونه د درے اُوښانو نه او څلور آيتونه د څلورو اُوښانو نه) غوره دي او د آيتونو په شمار اُوښان شماره) نو فکر اُوکړه د اُوښانو په راوستلو کښې به څومره وخت لګي او څومره مشقت به برداشت کيږي او بل طرفته د آيتونو په تلاوت باندے دوه منټه هم نهٔ تيريږي، نو انسان په لږ وخت کښې څومره کار کولے او څومره فائدے حاصلولے شي.
۵- د عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دي: [مَنْ قَرَأَ كِتَابَ اللَّهِ ثُمَّ اتَّبَعَ مَا فِيهِ فَلَايَضِلُّ فِي الدُّنْيَا وَلَايَشْقٰى فِي الْآخِرَةِ] .(څوك چه د الله تعالىٰ کتاب اُولولي او بيا د هغے تابعداري اُوکړي يعني په هغے عمل اُوکړي نو دا به په دنيا کښې بے لارے کيږي نهٔ او په آخرت کښې به بد بخته کيږي نهٔ).(کما في المشكاة وتفسير ابن كثير وغيره)
نو د الله تعالىٰ کتاب انسان د بدبختئ نه بچ کوي.
آيت کښې دي: ﴿مَا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لِتَشْقٰى﴾ (طه: ۲).
(مونږ په تا باندے قرآن ددے دپاره نهٔ دے نازل کړيدے چه ته پرے بدبخت شے). نو معلومه شوه چه د الله تعالىٰ کتاب انسان لره د بد بختئ نه بچ کوي.
۶- حديث کښې دي :[فَإِنَّ هٰذَا الْقُرْآنَ سَبَبٌ طَرَفُهُ بِيَدِ اللَّهِ وَطَرَفُهُ بِأَيْدِيكُمْ فَتَمَسَّكُوا بِهِ فَإِنَّكُمْ لَنْ تَضِلُّوا وَلَنْ تَهْلِكُوا بَعْدَهُ أَبَدًا]

[صحيح الجامع (۳٤) الصحيحة (۷۱۳]

(دا قرآن کريم د الله تعالىٰ رسئ (پړے) دے، (زمکے ته ئے راکوز کړے دے)، يو طرف ئے د الله تعالىٰ لاس کښې دے، بل طرف ئے ستاسو (بندګانو) په لاس کښې دے، نو پدے پورے اُونخلئ څکه چه تاسو به ددے پورے د انختلو نه پس هيڅکله ګمراه او هلاك نهٔ شئ)
نو بس دے قرآن کريم پورے چه څوك اُونخلي، الله تعالىٰ ته به ورسيږي، او قرآن پورے چه څوك نهٔ انخلي نو هغه به ښکته پروت وي، او هغه رب العالمين ته نهٔ شي رسيدلے. نو

قرآن کریم الله تعالیٰ ته د رسیدلو لاره ده۔

٧- دارنګه فرمائی : [اِنَّكُمْ لَاتَرْجِعُوْنَ اِلَى اللّٰهِ بِشَیْءٍ اَفْضَلَ مِمَّا خَرَجَ مِنْهُ يَعْنِى الْقُرْآنَ] [الحاکم -١/٧٤١) رقم : (٣٩٢٠) الترمذی مرسلا (٢٩١٢)]

(تاسو الله تعالیٰ ته نشئ واپس کیدے په هیڅ شی چه هغه غوره وی د هغه شی نه چه د الله تعالیٰ نه راوتے دے یعنی قرآن)۔

نو هرکله چه د الله تعالیٰ په کتاب کښ دومره خیرونه دی چه دا ئے هسے نمونه او مثال دے لیکن کله چه انسان کښ اهلیت پیدا شی نو ددے کتاب د خیرونو نه بنه خبریږی۔ ددے وجه نه څانونه د قرآن کریم اهل کول پکار دی دے دپاره چه مونږ ته دا خیرونه ملاؤ شی۔ په همدے سبب مونږ دلته یو څو صفات د حامل القرآن (د قرآن پورته کونکی) بیانوو۔ چه د قرآن د خیرونو نه محروم نشو۔

## ٢ - البحث الثانی : صفات حامل القرآن :

### دویم بحث : د قرآن کریم د اهل او د هغے د پورته کونکی او زده کونکی او ددے سره د تعلق لرونکی صفات

دا ډیر دی د نمونے دپاره دلته یو څو ذکر کیږی :

١ - [اَلْخُلُقُ الْحَسَنُ] ۔(ښائسته اخلاق) هرکله چه قرآن کریم ښکلے او عزتمند کتاب دے نو ددے د لوستونکی، حافظ او عالم دپاره پکار ده چه ښائسته اخلاق اختیار کړی۔ او ښائسته اخلاق په مشقت او تکلیف سره حاصلیږی۔ حدیث کښ دی، نبی ﷺ فرمایلی دی : [وَبِبَيْتٍ فِیْ اَعْلَى الْجَنَّةِ لِمَنْ حَسَّنَ خُلُقَهٗ] (ابوداود بسند صحیح)۔ درے کسانو ئے ذکر کړیدی چه د جنت ذمه واری ورله نبی ﷺ اخستے ده یو د هغوی نه هغه کس دے چه اخلاق ښائسته کړی نو په اعلیٰ جنت کښ به ورله الله تعالیٰ کور ورکوی)۔

او دا خوش اخلاقی به د مور او پلار او د خپل خپلوانو او د دوستانو او د ګاونډیانو او د ارخ ملګرو او عامو مسلمانانو سره کولے شی۔ د هغوی په تکلیف به صبر کوی او هغوی ته به تکلیف او ضرر نهٔ ورکوی۔ دا وجه ده چه د حدیث نه معلومیږی چه د چا څومره درجه کښ اخلاق وی هغومره د هغه ایمان وی لکه ارشاد دے : [اَكْمَلُ الْمُؤْمِنِيْنَ اِيْمَاناً اَحْسَنُهُمْ خُلُقاً] (مسلم،ابوداود والترمذی)۔(د مؤمنانو نه کامل ایمان والا هغه څوك دے چه ډیر ښائسته اخلاقو والا وی)۔

او دا ښائسته اخلاق د قرآن کريم نه زده کيږي، د قرآن کريم په هر حکم باندے عمل کول او د کومو څيزونو نه ئے چه منع کړيده د هغے نه ځان ساتل خوش اخلاقي ده۔ عائشه رضی الله عنها نه د نبي ﷺ د اخلاقو په باره کښې پوښتنه اُوشوه نو هغے اُوفرمايل:

[كَانَ خُلُقُهُ الْقُرْآنَ] (احمد: ۲۵۳٤۱ وصحیح الجامع: ٤٨١١)۔

(د نبي ﷺ اخلاق په قرآن باندے عمل کول وو)

يعني په قرآن کريم کښې چه کوم ښائسته صفات راغلي دي نو هغه ئے ځان کښې راوستلي وو نو بس دغه خوش اخلاقي ده۔

لکه قرآن کښې دي: ﴿وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ (آلعمران)۔ (ايمان والا هغه خلق دي چه غصه خوري، خلقو ته معافي کوي، او دپاسه پرے احسان هم کوي) دارنګه ﴿خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ﴾ (الاعراف)۔

(معافي کوه او امر په نيکۍ کوه او د جاهلانو د خبرو نه اعراض کوه) ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ﴾ (المؤمنون: ۱)۔

(په مانځه کښې خشوع کوي، د لغو (بے هوده کارونو) نه اعراض کوي، د عزتونو حفاظت کوي) وغيره آيتونه راجمع کړه بس دا ټول ښه اخلاق دي۔ نو چا کښې چه دا ښه اخلاق موجود وي، دا د قرآن کريم اصلي حامل (پورته کونکے) دے۔

دارنګه عبد الله بن مسعود ؓ ډيره ښه خبره کړيده:

[يَنبَغِي لِحَامِلِ الْقُرْآنِ أَنْ يُعْرَفَ بِلَيْلِهِ إِذَا النَّاسُ نَائِمُونَ وَبِنَهَارِهِ إِذَا النَّاسُ مُفْطِرُونَ وَبِحُزْنِهِ إِذَا النَّاسُ يَفْرَحُونَ وَبِبُكَائِهِ إِذَا النَّاسُ يَضْحَكُونَ وَبِصَمْتِهِ إِذَا النَّاسُ يَخُوضُونَ وَبِخُشُوعِهِ إِذَا النَّاسُ يَخْتَالُونَ]

(التبيان فی آداب حملة القرآن للنووی (۱/۵۵)۔

د قرآن پورته کونکي دپاره دا مناسب دي (۲) چه د شپے په عبادت باندے اُوپيژندلے شي کله چه خلق اُوده وي (۳) او د ورځے په روژو اُوپيژندلے شي کله چه خلق کوجه وي (٤) او په غم اُوپيژندے شي کله چه خلق خوشحالي کوي (٥) او په ژړا سره کله چه خلق خندا کوي (٦) او په چپ کيناستو سره کله چه خلق فضول خبرے کوي (٧) او په خشوع سره کله چه خلق تکبر کوي)

يعني مطلب دا چه قرآن والو دپاره د شپے عبادتونه پکار دیٓ، د الله تعالیٰ په کتاب باندے به ځان د خوب نه اُوباسي، او ډيرے روژے به نيسي، چه بصيرت او نور ورته حاصل شي۔

او همیشـه به د غم په حالت کښې ژوند تیروي او د چتیانو خلقو په شان خنداګانې او قهقهې به نـکوي ځکـه چـه دده پـه سیـنـه کښې ډیره لویه خبره پرته ده۔ او دده سره عظیمه خزانه موجوده ده۔ او دارنګه عام خلق چه ګپ شپ او بکواسات کوي نو دے به غلے وي، فضولو خبرو نه به ځان ساتي۔ ځکه چه پدے سره زړه سختیږي او د انسان د مخ او د علم نه نور او بصیرت ختمیږي او چپوالے یو ناشنا عبادت دے چه ډیر خلق ددے نه غافل دي۔ د ډیرو خیرونو سرچشمه ده۔ بلکه نن زمانه کښې چه څوك غلے ناست وي نو هغه بور کیږي۔ او چه خبرے ئے نۀ وي کړي نو تق چوي۔ او حال دا چه حدیث کښې په میزان کښې دروند والے پیدا کونکے شے چپ کیناستل خودلے شوي دي۔ دارنګه قرآن والا به د نورو خلقو په شان متـکبر نـۀ وي بـلـکه خشوع به پکښې وي په خلقو به ځان اُوچت نۀ ګنړي چه هغوی ورته سپك ښکاره شي۔

(۷) فضیل بن عیاضؒ فرمائي :

[حَامِلُ الْقُرْآنِ حَامِلُ رَايَةِ الْإِسْلَامِ لَا يَنْبَغِيْ لَهٗ اَنْ يَلْغُوَ مَعَ مَنْ يَلْغُوْ وَلَا يَسْهُوَ مَعَ مَنْ يَسْهُوْ وَلَا يَلْهُوَ مَعَ مَنْ يَلْهُوْ تَعْظِيْمًا لِلّٰهِ تَعَالٰى) وَفِيْ رِوَايَةٍ : تَعْظِيْمًا لِحَقِّ الْقُرْآنِ]۔

(د قرآن پورته کونکے د اسلام د جنډے پورته کونکے دے، دۀ له مناسب نۀ دي چه د لغوے او فضول خبرو کولو والا خلقو سره لغويات اُوکړي او (۸) د غافلانو سره غافل شي۔ (۹) او د تـمـاشـو والا سره تماشے اُوکړي۔ د الله تعالیٰ د تعظیم دپاره به دا کارونه نۀ کوي۔ او د قرآن کریم د حق د تعظیم ا واکرام دپاره به د دغه بدو صفاتو نه ځان ساتي)۔

(۱۰) دارنګه فضیلؒ دا هم فرمائي :

[وَلَا يَنْبَغِيْ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗ حَاجَةٌ اِلٰى اَحَدٍ بَلْ يَنْبَغِيْ اَنْ تَكُوْنَ حَوَائِجُ النَّاسِ اِلَيْهِ]

(مختصر منهاج القاصدین ص (٤٢)۔

(د قرآن والا دپاره دا مـنـاسب نۀ دي چه هغه خلقو ته حاجتونه وروړي بلکه پکار ده چه خلق دِے دۀ ته حاجت لري) یعنی دا پکار نۀ ده چه قرآن والا خپل ځان ذلیل کړي، کله د یو در ته ولاړ وي او کله د بل۔ بلکه استغناء صفت ورله اختیارول پکار دي۔

ددے وجـه نـه عمر بن الخطاب ﷺ اُوفرمایل : [يَـا مَـعْشَرَ الْقُرَّاءِ ! اِرْفَعُوْا رُءُوْسَكُمْ فَقَدْ وَضَحَ لَكُمُ الطَّرِيْقُ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ وَلَا تَكُوْنُوْا عِيَالًا عَلَى النَّاسِ]

(التبيان فی آداب حملة القرآن للنووی ص (٥٤) ۔

(اے د قاریانو ډلے ! سرونه راپورته کړئ (وینښ شئ) ځکه چه تاسو ته لاره واضحه شویده نو بس نیکیانو ته مخکښ والے اُوکړئ او په خلقو باندے بوج کیږئ مهٔ)۔

(۱۱) عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی :

[وَيَنْبَغِيْ اَنْ يَّكُوْنَ بَاكِيًا مَحْزُوْناً حَكِيْماً عَلِيْماً، سَكِيْناً، وَلَايَكُوْنُ جَافِيًا، وَلَاغَافِلاً وَلَا صَاخِبًا وَلَاصَيَّاحًا وَلَا مُمَارِيًا وَلَا حَدِيْدًا]

(الاداب الشرعية (۲/٤۲٦) احياء العلوم (۱/۱۷٤)۔

(قرآن والا لـه پکار دی چه ژړیدونکے، غمجن، هوښیار، پوهه او آرام والا وی۔ او د خلقو نـه جافـی نفرت کونکے نهٔ وی چه لرے لرے ترے خوزیږی او غافل او چغے سورے وهونکے نهٔ وی اود هغوی سره جګړے کونکے نهٔ وی او نهٔ د خلقو سره تیزی کونکے وی)۔

(۱۲) عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ فرمائی :

[مَنْ حَمَلَ الْقُرْآنَ فَقَدْ حَمَلَ اَمْرًا عَظِيْماً لَقَدْ اُدْرِجَتِ النُّبُوَّةُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ اِلَّا اَنَّهٗ لَايُوْحٰى اِلَيْهِ فَلَايَنْبَغِيْ لِحَامِلِ الْقُرْآنِ اَنْ يَّغْضَبَ مَعَ مَنْ يَغْضَبُ وَلَايَجْهَلَ مَعَ مَنْ يَجْهَلُ لِاَنَّ الْقُرْآنَ فِيْ جَوْفِهٖ]

(فضائل القرآن وتلاوته لابی الفضل الرازی ص (۱۱)۔

(څوک چه قرآن پورته کړی نو دهٔ په ځان باندے لوئی شے بار کړو، ددهٔ د دواړو اُوګو ترمینځ نبـوت ننوتو صرف فرق دا دے چه دهٔ ته وحی نهٔ کیږی۔ نو بس د قرآن پورته کونکی دپاره دا مـنـاسب نهٔ دی چه غصے والو سره غصه اُوکړی او د جاهلانو سره ځان جاهل کړی ځکه چه قرآن ددهٔ په سینه کښ دے)۔

(۱۳) حسن بصری رحمه الله فرمائی :

[اِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ رَاَوُا الْقُرْآنَ رَسَائِلَ مِنْ رَّبِّهِمْ فَكَانُوْا يَتَدَبَّرُوْنَهَا بِاللَّيْلِ وَيَنْفُذُوْنَهَا بِالنَّهَارِ] (التبيان)۔

(ستاسو نـه مـخـکـنی خلقو به قرآن کریم د الله تعالیٰ د طرف نه رالیږلے شوی پیغامات ګنړل نو د شپے به ئے په کښ تدبر او سوچ او فکر کولو او د ورځے به ئے پرے عمل کولو)۔

(۱٤) قرآن کـریـم به ذریعه د معاش او د کاروبار نهٔ جوړوی۔ حدیث کښ دی عبد الرحمن بن شبل ﷺ فـرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : [اِقْرَأُوا الْقُرْآنَ وَلَاتَأْكُلُوْا بِهٖ وَلَاتَجْفُوْا عَنْهُ وَلَاتَغْلُوْا فِيْهِ] (احمد : ١٥٥٧٤ واسناده قوی والحديث صحيح - شعيب والالبانی)۔

(قرآن کریم لولئ او پدے باندے خوراکونه مهٔ کوئ او ددے نه جفا او وړاندے والے مهٔ کوئ

او پدے کښې غلو او زیاتے مۀ کوئ)
او په یو بل روایت کښې ورسره دا لفظ زیات دے :[وَلَاتَسْتَكْثِرُوْا بِهٖ] (الصحیحة : ۳۰۵۷)
(په قرآن باندے ځان له مالونه مه زیاتوئ)
او جابر ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوی چه هغه فرمائی :
[اِقْرَؤُوا الْقُرْآنَ وَابْتَغُوْا بِهِ اللّٰهَ تَعَالٰى مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّأْتِىَ قَوْمٌ يُقِيْمُوْنَهٗ اِقَامَةَ الْقِدْحِ يَتَعَجَّلُوْنَهٗ وَلَايَتَأَجَّلُوْنَهٗ]
(احمد وصحیح ابی داود والصحیحة : ۲۵۹ وصحیح الجامع : ۱۱۶۷)۔
(قرآن لولئ او پدے سره د الله تعالیٰ رضا طلب کوئ مخکښې ددے نه چه داسے خلق به راشی چه قرآن کریم به داسے ښه برابرَوی لکه څنګه غشے برابروی، ددے اجر او مزدوری به په جلتی سره حاصله وی (یا په مال سره یا په سمعت او شهرت سره) او ددے اجر ته به تاخیر نۀ کوی)۔
(۱۵) امام قرطبیؒ داسے فرمائی :
[فَيَجِبُ عَلٰى حَامِلِ الْقُرْآنِ وَطَالِبِ الْعِلْمِ اَنْ يَّتَّقِىَ اللّٰهَ فِىْ نَفْسِهٖ وَيُخْلِصَ الْعَمَلَ لِلّٰهِ فَاِنْ كَانَ تَقَدَّمَ لَهٗ شَيْءٌ مِمَّا يَكْرَهُ فَلْيُبَادِرِ التَّوْبَةَ وَالْاِنَابَةَ، وَلْيَبْتَدِئِ الْاِخْلَاصَ فِى الطَّلَبِ]۔
(د قرآن والا او طالب العلم باندے دا واجب دی چه د الله تعالیٰ نه یره او تقویٰ اُوکړی او خپل عمل الله تعالیٰ دپاره خالص کړی، که مخکښې ئے نیت کښې فرق راغلے وی نو په جلتئ سره دے توبه اُوباسی او انابت دے پیدا کړی او په آینده طلب کښې دے اخلاص شروع کړی)۔
دارنګه فرمائی : د حامل القرآن دپاره د نورو خلقو په نسبت ډیر تحفظ او پرهیز او ځان ساتل لازم دی۔
دارنګه فرمائی : [وَيَنْبَغِىْ لَهٗ اَنْ يَّكُوْنَ عَالِماً بِاَهْلِ زَمَانِهٖ، مُتَحَفِّظاً مِنْ سُلْطَانِهٖ، سَاعِياً فِىْ خَلَاصِ نَفْسِهٖ، وَنَجَاةِ مُهْجَتِهٖ، مُقَدِّماً بَيْنَ يَدَيْهِ مَا يَقْدِرُ عَلَيْهِ مِنْ عَرَضِ دُنْيَاهُ، مُجَاهِداً لِنَفْسِهٖ فِىْ ذٰلِكَ مَا اسْتَطَاعَ]۔
(او دۀ له مناسب دی چه د خپلے زمانے والو نه خبردار وی، د بادشاهانو نه ځان ساتونکے وی، د خپل نفس او روح په خلاصولو او نجات کښې کوشش کونکے وی، د دنیا د سامان نه چه په څومره قادر شی، هغه د خپل ځان نه مخکښې اُولیږی او پدے باره کښې د خپل نفس سره د خپل وسع مطابق مجاهده کونکے وی)۔
دارنګه فرمائی : [وَيَنْبَغِىْ لَهٗ اَنْ يَّكُوْنَ اَهَمَّ اُمُوْرِهٖ عِنْدَهُ الْوَرَعُ فِىْ دِيْنِهٖ وَاسْتِعْمَالُ حُقُوْقِ اللّٰهِ

وَمُرَاقَبَتَهُ فِيمَا أَمَرَهُ بِهِ وَنَهَاهُ عَنْهُ]۔

(او دهٔ لـه پکار دی چه په دین کښې پرهيز کول دهٔ ته په ټولو کارونو کښې ډير اهم وی، او د الله تعالیٰ د حقوقو، اوامر او نواهيو لحاظ کوی)۔

(۱٦) عـلامـه آجری رحـمـه الله پـه کـتـاب اخلاق العلماء ص (۱٦۳) کښې تفصيلًا داسې ليکی : [فَأَوَّلُ مَا يَنْبَغِی لَهُ أَنْ يَسْتَعْمِلَ تَقْوَى اللّٰهِ فِی السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ، بِاسْتِعْمَالِ الْوَرَعِ فِی مَطْعَمِهِ وَمَشْرَبِهِ وَمَسْكَنِهِ وَمَلْبَسِهِ، وَأَنْ يَكُونَ بَصِيراً بِزَمَانِهِ وَفَسَادِ أَهْلِهِ فَهُوَ يَحْذَرُهُمْ عَلَى دِينِهِ وَأَنْ يَكُونَ مُقْبِلاً عَلَى شَأْنِهِ، مَهْمُوماً بِإِصْلَاحِ مَا فَسَدَ مِنْ أَمْرِهِ، حَافِظاً لِلِسَانِهِ، مُمَيِّزاً لِكَلَامِهِ، إِنْ تَكَلَّمَ تَكَلَّمَ بِعِلْمٍ، إِذَا رَأَى الْكَلَامَ صَوَاباً وَإِنْ سَكَتَ سَكَتَ بِعِلْمٍ إِذَا كَانَ السُّكُوتُ صَوَاباً، قَلِيلَ الْخَوْضِ فِيمَا لَا يَعْنِيهِ، يَخَافُ مِنْ لِسَانِهِ أَشَدَّ مِمَّا يَخَافُ مِنْ عَدُوِّهِ، يَحْبِسُ لِسَانَهُ كَحَبْسِهِ لِعَدُوِّهِ لِيَأْمَنَ مِنْ شَرِّهِ وَشَرِّ عَاقِبَتِهِ، قَلِيلَ الضِّحْكِ مِمَّا يَضْحَكُ مِنْهُ النَّاسُ، إِنْ مَرَّ بِشَيْءٍ مِمَّا يُوَافِقُ الْحَقَّ تَبَسَّمَ، يَكْرَهُ الْمِزَاحَ خَوْفاً مِنَ اللَّعِبِ، فَإِنْ مَزَحَ قَالَ حَقًّا، بَاسِطَ الْوَجْهِ، طَيِّبَ الْكَلَامِ، لَا يَمْدَحُ نَفْسَهُ بِمَا فِيهِ، فَكَيْفَ بِمَا لَيْسَ فِيهِ، يُحَذِّرُ نَفْسَهُ إِنْ تَغْلِبَهُ عَلَى مَا تَهْوَى مِمَّا يُسْخِطُ مَوْلَاهُ، لَا يَغْتَابُ أَحَداً، وَلَا يُحَقِّرُ أَحَداً، وَلَا يَسُبُّ أَحَداً، وَلَا يَشْمَتُ بِمَعْصِيَةٍ وَلَا يَبْغِی عَلَى أَحَدٍ وَلَا يَحْسُدُهُ وَلَا يُسِيءُ الظَّنَّ بِأَحَدٍ إِلَّا لِمَنْ يَسْتَحِقُّ، قَدْ جَعَلَ الْقُرْآنَ وَالسُّنَّةَ وَالْفِقْهَ دَلِيلَهُ إِلَى كُلِّ خُلُقٍ حَسَنٍ جَمِيلٍ، حَافِظاً لِجَمِيعِ جَوَارِحِهِ عَمَّا نُهِيَ عَنْهُ، إِنْ مَشَى مَشَى بِعِلْمٍ وَإِنْ قَعَدَ قَعَدَ بِعِلْمٍ، يَجْتَهِدُ لِيَسْلَمَ النَّاسُ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ وَلَا يَجْهَلُ، وَإِنْ جُهِلَ عَلَيْهِ حَلُمَ، لَا يَظْلِمُ وَإِنْ ظُلِمَ عَفَا، لَا يَبْغِی وَإِنْ بُغِيَ عَلَيْهِ صَبَرَ، يَكْظِمُ غَيْظَهُ، لِيُرْضِيَ رَبَّهُ وَيُغِيظَ عَدُوَّهُ، مُتَوَاضِعٌ فِی نَفْسِهِ إِذَا قِيلَ لَهُ الْحَقُّ قَبِلَهُ مِنْ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ، يَطْلُبُ الرِّفْعَةَ مِنَ اللّٰهِ لَا مِنَ الْمَخْلُوقِينَ، مَاقِتٌ لِلْكِبْرِ، خَائِفٌ عَلَى نَفْسِهِ مِنْهُ]

(بحوث ندوة اثر القرآن الكريم لمجموعة من علماء السعودية ص (۲۷۸) ۔

(د قـرآن والا دپاره اول دا مـناسب دی چه په هر حالت کښې د الله تعالیٰ تقویٰ اختيار کړی، پـه خوراك، څـښـاك، جـامـو او ځـائـے د اُوسيـدو کـښې، ورع (پرهيزګاری) استعمال کړی او دارنګه پکار ده چه په زمانه او د زمانے والو په فساد باندے خبر دار وی، دے دپاره چه هغوی په دين بـانـدے يَروی او خپـل حالت او شان ته متوجه وی او د خپـل فساد په اصلاح باندے غـمـجـن وی، د ژبـے حفاظت کونکے وی، د نورو خلقو نه ددهٔ خبرے جدا وی، کله چه خبرے کـوی نـو پـه عـلـم سره ئے کوی، کله چه خبرے کول ورته ښه ښکاری او کله چه غلے ناست

وی نو د علم سره غلے وی کله چه غلے کیناستل ورته حق ښکاری، په فضول او بے مقصده کارونو کښې نۀ مشغول کیږی، د دشمن نه دومره نۀ یریږی لکه څومره چه د خپلے ژبے نه یریږی۔ ژبه ئے داسے بنده کړی وی لکه څنګه چه دشمن جیل ته اچوی، دے دپاره چه د هغے د شر او د هغے د انجام د شر نه محفوظ شی، د کومو څیزنو نه چه خلق خاندی نو دا تربے کمه خندا کوی، که د حق موافق یو کار باندے تیر شی نو صرف تبسم (مسکے کیدل) کوی۔ مزاح او ګپ شپ بد ګنړی پدے وجه چه یریږی د لعب (لوبو او بیکاری) نه۔ که مزاح کوی نو حق خبره کوی، کولاؤ مخ والا وی، خوږو خبرو والا وی، خپل صفتونه نۀ کوی کوم چه په دۀ کښې وی نو کوم چه پکښې نۀ وی نو په هغے به څه صفت اُوکړی۔ خپل نفس له یره ورکوی چه هسے نه په هغه څه باندے غالبه نشی کوم باندے چه الله تعالیٰ خفه کیږی۔ د هیچا غیبت نکوی، او هیڅوك سپك نۀ ګنړی، او هیچا ته بدرد او کنځل نکوی، په ګناه باندے خوشحالی نکوی، او په هیچا باندے ظلم نکوی، او هیچا سره حسد او ضد نکوی۔ او په هیچا باندے بد ګمان نکوی مګر هغه څوك چه مستحق ئے وی، قرآن او سنت او فقه (علم د دین) ئے هر نیك او ښائسته خوئی دپاره لاربښود جوړ کړے وی، د ټولو منهیاتو (منع شوو کارونو) نه خپل اندامونه ساتونکے وی، که چرته څی نو په علم سره او که کینی نو په علم سره کینی، دا کوشش ئے وی چه خلق د دۀ د ژبے او د لاس د ضرر نه بچ شی، او چا سره جهالت هم نکوی، او که دۀ سره څوك جهالت کوی نو صبر کوی، په هیچا ظلم نکوی، او که په دۀ باندے ظلم اُوشی نو معافی کوی، په چا بغاوت او زیاتے نکوی او که دۀ باندے زیاتے اُوشی نو صبر کوی، خپله غصه نۀ نافذ کوی، دے دپاره چه خپل رب راضی کړی او دشمن غصه کوی، خپل زړه کښې عاجزی کونکے وی، کله چه دۀ ته حق اُوو‌ئیلے شی هغه قبلوی، بیانونکے وړوکے شخص وی او که غټ۔ مرتبه اُوچتول د الله تعالیٰ نه طلب کوی، نۀ د مخلوق نه، تکبر سره بغض کونکے وی، په خپل ځان باندے د تکبر نه یره کونکے وی)آه۔

قرآن والا کښې چه کله دوه صفتونه موجود وی نو د هغه اجلال او اکرام واجب دے، یو دا چه (۱) عدم الغلو۔ (چه په قرآن کریم کښې غلو او زیاتے نکوی)۔

(۲) (عدم الحفاء عنه)۔(دویم دا چه جفاء نکوی) لکه دا حدیث کښې راغلی دی :

[اِنَّ مِنْ اِجْلَالِ اللّٰهِ اِكْرَامَ ذِی الشَّیْبَةِ الْمُسْلِمِ وَحَامِلِ الْقُرْآنِ غَیْرِ الْغَالِیْ فِیْهِ وَلَا الْجَافِیْ عَنْهُ وَالسُّلْطَانِ

الْمُقْسِطِ] (رواه ابوداود وغيره باسناد صحيح)

(د الله تعالىٰ د اكرام نه دا ده چه د سپين ګيرى مسلمان اكرام اُوكړے شى او د قرآن بارونكى چه په هغے كښ غلو نكوى او د هغے نه جفاء نكوى او د انصافدار بادشاه اكرام).

د غلو مطلب دا دے چه د قرآن كريم په الفاظو كښ هم غلو او زيادت نكوى، د عربو د لهجے نه ئے علاوه د عاشقانو په آوازونو نهٔ وائى او يائے په معنىٰ كښ هم غلو او زيادت نكوى او تحريفات پكښ نكوى. بعض خلقو د قرآن كريم نه توپك جوړ كړے وى، كله ئے د يو پسے لګوى او كله بل پسے او خپل ځان ئے هير كړے وى، د هغے نه هدايت نهٔ اخلى او ځان پرے نهٔ جوړوى.

بعض خلق پكښ داسے غلو كوى چه د جهاد آيت په دعوت چسپان كړى او بعض خلق توحيد بيانوى نو ټول آيتونه هغے ته اړوى. بعض خلق د فضائلو يوه مسئله بيانوى نو ټول آيتونه هغے ته اړوى، د هر آيت خپل خپل حق نهٔ ادا كوى.

او جفاء دا ده چه قرآن كريم ئے ياد كړے وى او صرف يو رمضان او بل رمضان ئے راخلى، يا ئے نهٔ دے ياد ليكن هيڅ كله د هغے د وئيلو كوشش نكوى، د الله تعالىٰ سره پرے محبت نهٔ جوړوى، او ځان له نيكيانے نهٔ ډيروى.

او داسے خلقو ته د الله تعالىٰ اهل وئيلے شويدى. حديث كښ دى :

[إِنَّ لِلّٰهِ تَعَالٰى اَهْلِيْنَ مِنَ النَّاسِ، قِيْلَ: مَنْ هُمْ ؟ قَالَ : هُمْ اَهْلُ الْقُرْآنِ هُمْ اَهْلُ اللّٰهِ وَخَاصَّتُهٗ]

[احمد: ۱۲۳۰۱) (نسائى، ابن ماجه ۲۱۱) والحاكم) واسناده صحيح].

(په خلقو كښ د الله دپاره اهل (لائق) خلق شته، چا عرض اُوكړو دا كوم خلق دى ؟ ... فرمايل : دا قرآن والا دى چه دوى د الله تعالىٰ اهل او خواص بندګان دى).

علامه قسطلانىؒ فرمائى :

[لَا يَكُوْنُ اَهْلُ اللّٰهِ مَنْ حَفِظَ لَفْظَهٗ وَضَيَّعَ حُدُوْدَهٗ].

(هغه څوك د الله تعالىٰ اهل نشى جوړيدے چه هغه خو د قرآن الفاظ ډير ښه ياد كړى وى ليكن حدود او احكام ئے ضائع كوى).

او كومو كسانو كښ چه دغه صفتونه نهٔ وى نو هغه ددے مستحق نهٔ دى چه هغوى ته قارئ اُووئيلے شى بلكه هغه ته به منافق او ملعون وئيلے شى. لكه حديث د مسند احمد كښ راغلى دى : عقبة بن عامر ﷺ نه مرفوعاً نقل دى :

[اَكْثَرُ مُنَافِقِيْ هٰذِهِ الْاُمَّةِ قُرَّاؤُهَا] (وسنده صحيح) الصحيحة ۷۵۰]۔
(زما د امت اکثر منافقان به قاریان وی)۔
انس بن مالك ﷺ فرمائی : [رُبَّ قَارِئٍ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَالْقُرْآنُ يَلْعَنُهٗ] (احياء العلوم ۱/۳۲۴ للغزالی) ۔ (ډیر کرته یو تن به قرآن لوېلی او حال دا چه قرآن به پرے لعنت وائی) ځکه چه د قرآن کریم حق به نهٔ ادا کوی، معنیٰ به ئے غلطه کوی، او مطلب به ئے غلط بیانوی یا دا چه کله به قرآن وائی او عمل به ئے پرے نهٔ وی لکه داسے به وائی : ﴿ اَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ﴾۔ او پخپله به ظالم وی، یا به وائی : ﴿ لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ﴾ ۔او په خپله به دروغجن وی۔ دارنګه قرآن کریم کښې به د منافقانو صفات راځی او په دهٔ کښې به نفاق وی نو ځان ته به رد بد وائی۔ او پو هیږی به نهٔ۔(ومثله فی تفسير ابی حاتم عن ميمون بن مهران ۲۰۱۷/۶)۔
(۱۷) بل صفت : د قرآن والا دپاره پکار دی چه د نورو خلقو په نسبت د تهجدو زیات پابند وی لکه حدیث د بخاری کښې په واقعه د خوب کښې دی : [وَالَّذِيْ رَاَيْتَهٗ يُشْدَخُ رَأْسُهٗ فَرَجُلٌ عَلَّمَهُ اللّٰهُ الْقُرْآنَ فَنَامَ عَنْهُ بِاللَّيْلِ وَلَمْ يَعْمَلْ فِيْهِ بِالنَّهَارِ يُفْعَلُ بِهٖ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ] (بخاری باب ما قيل فی اولاد المشركين رقم : ۱۳۲۰)۔
(جبریل علیه السلام نبی ﷺ ته اُوفرمایل : او هغه شخص چه تا اُولیدو چه سرئے چخنی کیدو نو دا هغه سړے وو چه الله تعالیٰ ورته قرآن ورزده کړے وو، او د هغه نه د شپے اُوده پاتے شوے وو او د ورځے ئے پرے عمل نهٔ کولو، نو دغه شان کار به ددهٔ سره د قیامت د ورځے پورے کیږی) ددے وجه نه ئے قرآن والو ته فرمائیلی دی :
[اِنَّ اللّٰهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ فَاَوْتِرُوْا يَا اَهْلَ الْقُرْآنِ!]
(ترمذی، نسائی، ابوداود) ۔
(اے قرآن والو وتر اُوکړئ)۔ دوی ته ئے د وترو خصوصی خطاب ځکه اُوکړو چه دوی به د شپے تهجد کوی نو په آخر د شپه کښې ورله وتر کول بهتر دی۔
بیا د قرآن کریم اهل چه څوك جوړیږی نو د هغے دپاره یو څو صفات ځان کښې راوستل پکار دی نو د هغے په باره کښې اُوس څه آداب د طالب العلم بیانیږی۔

○○○○○○

## ۳- البحث الثالث : آداب قارئ القرآن:

## دریم بحث : د قرآن د لوستونکي آداب

د قرآن کریم د لوستلو نه مخکښ څه آداب لوستونکي له پکار دي، دے دپاره چه په لوستلو کښ برکت راشي او مقام د قبولیت ته اُورسیږي :

۱- [تَصۡحِیۡحُ النِّیَّةِ] پکار دا ده چه د قرآن او د حدیث هر طالب العلم خپل نیت صحیح کړي۔ حدیث کښ دي : [اِنَّمَا الۡاَعۡمَالُ بِالنِّیَّاتِ] ۔(د هر عمل دارومدار په نیت دے) یعني عمل د الله تعالیٰ په دربار کښ هله قبلیږي چه د الله تعالیٰ رضا پکښ مقصود وي او که نیت صحیح نهٔ وي، که ډیر عمل شروع کړي نو هم اجر نهٔ ملاویږي۔ قرآن کریم کښ الله تعالیٰ د عبادت په اخلاص باندے حکم کړیدے :

﴿ وَمَا اُمِرُوۡا اِلَّا لِیَعۡبُدُوا اللّٰهَ مُخۡلِصِیۡنَ لَهُ الدِّیۡنَ ﴾ (البینة)۔

(بندګانو ته صرف ددے خبرے حکم شویدے چه د الله تعالیٰ دپاره بندګي خالص کړي) او دا خالص کول صرف په نیت سره راځي لهذا نیت صحیح کول لازم شو۔ ددے وجه نه حدیث کښ دي :

[مَنۡ تَعَلَّمَ عِلۡمًا مِمَّا یُبۡتَغٰی بِهٖ وَجۡهُ اللّٰهِ لَا یَتَعَلَّمُهٗ اِلَّا لِیُصِیۡبَ بِهٖ عَرَضًا مِنَ الدُّنۡیَا لَمۡ یَجِدۡ عَرۡفَ الۡجَنَّةِ یَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ] [احمد، وابوداود وابن ماجه]۔

(چا چه هغه علم زده کړو کوم باندے چه د الله تعالیٰ مخ او رضا طلب کولے شي (یعني دیني علم) او دا ئے صرف پدے نیت زده کوي چه د دنیا سامان (مال متاع) پرے حاصل کړي نو د قیامت په ورځ به د جنت خوشبوئي اُونهٔ مومي)۔

پاتے لا دا چه جنت ته لاړ شي۔ نو د نیت صحیح کول ډیر اهم دي، چه د انسان تول خواري ضائع لاړه نشي۔ او بیا د الله تعالیٰ دا طریقه ده چه څوك د څه شي اراده او نیت اُوکړي، الله تعالیٰ هغه ورکوي۔ بیا د کوم کارونو نیت پکار دے ؟ نو :

(۱) یو د طلب العلم یا تعلم العلم۔ (د علم زده کولو)۔

(۲) دویم [اَلۡعَمَلُ بِالۡعِلۡمِ]۔ (په خپل علم باندے د عمل کولو نیت هم ډیر ضروري شے دے) ډیر خلق دا قسم نیت نکوي، بلکه صرف د علم او د کتاب د زده کړے نیت کوي۔

(۳) دریم نیت : [رَفْعُ الْجَهْلِ عَنْ نَفْسِكَ وَعَنِ الْغَيْرِ]۔(د قرآن د وئیلو او د علم په حاصلولو کښې به دا نیت کوی چه د ځان نه او د بل چا نه به جهالت او ناپوهی لرے کوی) ددے وجه نه امام احمدؒ وئیلی دی : [اَلْعِلْمُ لَايُعَادِلُهُ شَيْءٌ إِذَا أُرِيْدَ بِهٖ وَجْهُ اللّٰهِ]۔

(د علم سره هیڅ یو عمل برابر نهٔ دے کله چه په هغے کښې نیت د الله تعالیٰ رضا وی) ورته اُووئیل شو :

[وَكَيْفَ ذَاكَ ؟ قَالَ: تَنْوِىْ رَفْعَ الْجَهْلِ عَنْ نَفْسِكَ وَعَنْ غَيْرِكَ]۔

(دا به څنګه حاصلیږی ؟ وے فرمایل : ته به پدے سره د خپل ځان او غیر نه د جهالت پورته کولو نیت اُوکړے)۔

(٤) څلورم نیت : [اَلدِّفَاعُ عَنِ الشَّرِيْعَةِ]۔(د شریعت نه به مدافعت او دفاع کوی) مطلب دا چه د الله تعالیٰ په دین کښې بعض خلقو خرافات او بدعات او غلط تاویلونه او غلطے عقیدے او نظریے او غلط مسائل ورداخل کړیدی، د هغے رد به کوی۔ ددے مثال داسے دے چه یو مبتدع مثلًا یوے مکتبے ته راشی او خپل بدعت ثابتوی چه رسول الله ﷺ نور دے او بشر نهٔ دے او په غیبو پوهه دے او نور شرکیات ثابتوی نو یو کتاب هم ورپسے نهٔ راپاخیږی چه ورته اُووائی ستا خبره غلطه ده، ځکه کتابونه خو ساکت دی، خو چه په دغه ځائے کښې یو طالب العلم ناست وی او د اهل حقو نه وی نو هغه به پرے ردونه اُوکړی چه ستا مسئله غلطه ده لکه دا په یو حسن حدیث کښې راغلی دی۔ نبی ﷺ فرمائی:

[يَحْمِلُ هٰذَا الْعِلْمَ مِنْ كُلِّ خَلَفٍ عُدُوْلُهٗ يَنْفُوْنَ عَنْهُ تَحْرِيْفَ الْغَالِيْنَ وَانْتِحَالَ الْمُبْطِلِيْنَ وَتَاوِيْلَ الْجَاهِلِيْنَ]

(الطبرانی فی مسند الشامیین: ۵۹۹ والبزار)۔

(دا علم (دین) به د هرے پیړئ نه عادلان خلق راخلی، چه هغوی به درے کارونه کوی یو د غلو کونکو تحریفات به ختموی، دویم د باطل پرستو قرآن او سنت ته غلط نسبتونه کړیدی او بدعات ئے پیدا کړیدی هغه به لرے کوی او جاهلانو پکښې غلط مطلبونه او تاویلونه کړیدی نو هغه به دفع کوی)۔

یعنی یوه مسئله به لازمه نهٔ وی او غلو کونکو به لازمه کړی وی، تحریف به ئے کړے وی، ولی به ئے د الله تعالیٰ درجے ته او عالِم به ئے د رسول الله ﷺ درجے ته رسولے وی نو اهل حق به رالګی او د هغوی دا تحریف به خلقو ته ښکاره کوی۔

دارنګه شیعه ګانو په لکهاؤ احادیث جوړ کړیدي او په دین کښې ئے ننویستلي دي، موضوع او منګړت احادیث ئے جوړ کړیدي نو اهل علم به دغه خرافات د دین نه بهر کوي او الحمد لله د دین امامانو او علماء کرامو دا خدمت کړیدے چه د شیعه ګانو او باطل پرستو دروغجن احادیث او منکرت او واهي احادیث ئے د صحیح احادیثو نه داسے راویستلي دي لکه څنګه چه د وړو نه ویښته ویستلے شي. او ډیر جاهلان به د قرآن او حدیث په مطلب نۀ وي پوهه شوي او د خپلو ضعیفو دماغو مطابق به تشریحات کوي او غلط مطلبونه به ترے اخلي لکه بعض جاهلان د بخاري او د مسلم دا روایت عوامو مسلمانانو ته پیش کړي [مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَكُنْ فِيْ عُنُقِهٖ بَيْعَةٌ].

(څوك چه مړ شو او د يو امام او خليفه سره ئے بيعت نۀ وي کړے نو دا د جاهليت په مرګ باندے مړ شو) يعنې مردار مړ شو. دوي ورته د کتاب حواله هم ورکړي او حديث هم ورته اوښائي نو عوام وائي چه دا خو رشتيا ده ما خو چا سره بيعت نۀ دے کړے نو زه به مردار مرم، که چرته مړ شوم. نو بيا ورته وائي راځه چه دے فلاني سړي سره بيعت اُوکړو، نو ايسته يو تنظيم کښې ورننوزي. بيا نورو خلقو ته کافر وائي او خپل ځان ورته صرف مسلمان ښکاري نو ګوره دا حديث صحيح دے ليکن جاهل سړي پکښې غلط تاويل اُوکړو او غلطه معنیٰ ئے ترے واخسته، د حديث مطلب خو دا دے چه کله خليفة المسلمين موجود شو نو په تا باندے لازمه ده چه ته به ورسره بيعت کوے، او بغاوت به نۀ کوے، که بغاوت دے اُوکړو نو ته به ګناهګار او فاسق ئے، بيا به په اسلام باندے نۀ مرے بلکه فاسق او ګناهګار به مړ شے. او دا مطلب نۀ دے چه کله افرا تفرے وي او خليفه د مسلمانانو نۀ وي نو ته به خامخا يو سړے ځانله مقرر وے او بيعت به ورسره کوے، نۀ بلکه دا خبره زده کړه چه بيعت فرع ده د وجود د خليفه نو کله چه خليفه نۀ وي، بيعتونه به هم نۀ وي.

۲ – بل مثال: يو سړے تا پسے راشي چه زکوٰة راکړه او تاسره اووه نيمے تولے سره زر نشته او درته اُووائي چه قرآن کريم کښې راغلي دي ﴿ وَآتُوا الزَّكٰوةَ ﴾. (زکوٰة ورکړئ). نو بس ماله که زکوٰة نۀ راکوے نو ته قرآن نۀ منے. نو ته به ورته اُووائے چه ټيك ده منم چه زکوٰة د الله تعالیٰ حکم دے ليکن زکوٰة فرض کيدل خو نصاب غواړي او ما سره نصاب پوره نۀ دے لهذا په ما زکوٰة نشته نو تا ددے جاهل تاويل ختم کړو. ليکن دا خبره زده کړه چه هر سړے په غلطو خبرو رد نشي کولے دا مخکښې نه کره علم او ډيره مطالعه او بصيرت او فهم غواړي.

**۲- دویم ادب :** په اوداسه کیناستل، صحیح خبره دا ده چه قرآن کریم له په بے اُودسۍ گوتے وروړل نهٔ دی پکار۔لکه ﴿ لَایَمَسُّهٗ اِلَّاالْمُطَهَّرُوْنَ﴾ کښ ورته اشاره ده۔ او د ﴿ ذٰلِكَ وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ﴾ (الحج)۔خلاف هم راځی۔

۳- [اَنْ يَّكُوْنَ نَظِيْفَ الثِّيَابِ] (جامے به ئے پاکے وی) ځکه قرآن د الله تعالیٰ کلام دے، دے دپاره به صفائی کولے شی۔ عطر وغیره به استعمال کړی۔

٤- [اَنْ يَّجْلِسَ بِخُشُوْعٍ] (قرآن کریم ته به په خشوع او عاجزئ کینی، مرور او په حالت د تکیه کښ به نهٔ کینی)۔

٥- [اَنْ لَّايَتَكَلَّمَ اَثْنَاءَ الْقِرَاءَةِ]۔(د قرآن د لوستلو په مینځ کښ به خبرے نهٔ کوی)۔که چرته یوه ضروری خبره مینځ ته راشی نو د هغے نه پس به دوباره اعوذ بالله وئیلے شی۔

٦- په اوله کښ (اعوذ بالله الخ) وئیل ضروری دی که ابتداء دسورة وی نو بسم الله به هم ورسره یو ځائے کوی او که مینځ د سورة وی نو بیا صرف اعوذ بالله وئیل کافی دی۔ بسم الله وئیل ورسره په سنت کښ نهٔ دی نقل۔

۷- [اَنْ يَّقْرَأَهٗ نَظْرَةً ] (قرآن ته په کتلو سره لوستل) دا ډیر بهتر دی اگرکه په یاده لوستل هم جوازلری۔

حدیث کښ دی :[مَنْ سَرَّهٗ اَنْ يُّحِبَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَلْيَقْرَأْ فِى الْمُصْحَفِ]

[شعب الایمان وابن عدی وابو نعیم فی الحلیة ۷/ ۲۰۹) بسند حسن قاله بارع عرفانِ توفیق فی صحیح کنوز السنة ۱/ ۲۸) والالبانی فی الصحیحة : [۲۳٤۲]

(څوك چه دا خوښوی چه د الله تعالیٰ او د هغه رسول سره مینه اُوکړی نو په قرآن کښ دے لوستل کوی)۔

۸- په ښی لاس کښ به ئے اخلی، په گس لاس کښ قرآن کریم او دینی کتاب نیول بے ادبی ده۔

۹- [اَنْ لَّايَتَخَطَّ عَلَيْهِ ]۔(په قرآن کریم باندے دپاسه قدمونه پورته کول او په هغے باندے اَوړیدل) بے ادبی ده، بلکه سلفو به ددے نه هم منع کوله چه په تپائی او تخته او رحیل باندے انسان خپه واړوی۔

﴿ ذٰلِكَ وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ﴾۔

په یو روایت د ابوداود (٤٤٥١) کښ راغلی دی چه نبی ﷺ ته تورات راوړلے شو نو

یهودو په زمکه کیخودو۔ نبی ﷺ یو بالخت باندے ناست وو، هغه بالخت ئے د تورات لاندے کیخودو او وے فرمایل :[آمَنْتُ بِكِ وَبِمَنْ اَنْزَلَكِ]۔
(زما په تا هم ایمان دے او په هغه ذات چه ته ئے نازل کرے ئے)۔
اُوګوره تورات منسوخ کتاب دے او بیا ئے هم دومره عزت اُوکړو نو د قرآن کریم به څومره عزت کول شي ؟!۔
۱۰ – [اَنْ لَّایَتَوَسَّدَ عِنْدَ قِرَاَتِهٖ]۔قرآن کریم ته به تکیه نهٔ لګوی۔
البته که په یادوئے لولی نو په ملاسته هم رسول الله ﷺ لوستلے دے۔ بیهقی یو روایت راوړیدے : [یَا اَهْلَ الْقُرْآنِ ! لَاتَتَوَسَّدُوا الْقُرْآنَ ] [شعب الایمان] والمشکاة] (ددے یوه معنیٰ دا ده چه قرآن کریم ته تکیه مه وهئ، دویم دا چه د قرآن کریم نه بالخت هم مهٔ جوړوئ چه انسان پرے دپاسه ډډه اُووهی)۔
۱۱ – په قرآن کښ به دننه لیکل نهٔ کوی۔ دا وجه ده سلفو پکښ آمین هم نهٔ دے لیکلے۔ البته که د تفسیر په طور په حاشیه باندے ورته په ښائسته خط لیکل اُوکړی نو جواز لری۔ دا خو ظاهری آداب وو۔ نور هم شته ۔

## او باطنی آدابو کښ دا دی :

۱ – [تَدَبُّرُ الْقُرْآنِ الْکَرِیْمِ]۔(قرآن کریم کښ سوچ کول)۔

فَتَدَبَّرِالْقُرْآنَ اِنْ رُمْتَ الْهُدٰی     فَالْعِلْمُ تَحْتَ تَدَبُّرِ الْقُرْآنِ

(که د هدایت اراده لرے نو قرآن کریم کښ تدبر کوه ځکه چه ټول علم د قرآن کریم په تدبر کښ دے)
۲ – [عِظْمَةُ الْقُرْآنِ فِی الْقَلْبِ ] (په زړه کښ به د قرآن کریم عظمت او تعظیم ساتی) چه دا د عظیم ذات کلام او کتاب دے۔
عکرمهؓ نه نقل دی چه هغه به کله د قرآن کریم تلاوت کولو نو داسے به ئے وئیل : [هٰذَا کَلَامُ رَبِّیْ وَمَنْشُوْرُ رَبِّیْ]۔
(دا زما د رب کلام دے او زما د رب منشور دے) پدے سره به ئے د قرآن کریم عظمت په زړه کښ راغلو۔
۳ – [اَلدُّعَاءُ عِنْدَ الآیَاتِ ] (په بعض آیتونو کښ دعا غوختل) لکه دا د نبی ﷺ طریقه هم وه۔ لکه داسے راشی ﴿ اِنَّ رَحْمَةَ اللّٰهِ قَرِیْبٌ مِنَ الْمُحْسِنِیْنَ﴾ نو انسان داسے اُووائی : [اَللّٰهُمَّ

إِنِّيْ اَسْئَلُكَ رَحْمَتَكَ] د جنت بحث راشي، داسے اُووائی : [اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ اَسْئَلُكَ الْجَنَّةَ] او داسے نور۔ او دا هله کیږی چه انسان د قرآن کریم په معنیٰ پو هه شي۔

٤- حقیقي ادب ئے دا دے : [اَلْعَمَلُ بِالْقُرْآنِ] (قرآن کریم باندے عمل کول) کله چه انسان قرآن کریم لولي او د هغه عملي زندګی نهٔ جوړیږی نو دا د قرآن کریم احترام نهٔ دے۔ددے مثال دا جوړیږی چه یو انسان چا ته اُووائی : زهٔ تا منم او ستا احترام زما په زړه کښ موجود دے خو خدمت ته دِے تیارنهٔ یم، نوداسے انسان د چا خوښ وی ؟ !۔ وبالله التوفیق۔ والله اعلم وعلمه اتم واحکم۔

**فائدة** : د قرآن کریم سره به پنځه قسمه تعلقات ساتی نو هله به د قرآن کریم په حقیقت پو هیږی : (۱) یو دا چه الفاظ د قرآن کریم صحیح طریقے سره زده کړی، تجوید طریقے سره ئے لولی او غلط الفاظ نهٔ وائی۔ (۲) دویم دآیت لفظي معنیٰ زده کول۔ لکه د الحمد لله رب العالمین لفظي او لغوی معنیٰ زده کړے شي نو دا کارونه آسان دی۔ (۳) دریم په آیت باندے ځان پو هه کول، یعني د آیت د مقصد او مطلب نه ځان خبرول۔ او د آیت په مقصد باندے ځان پو هه کول ډیره مجاهده او کوشش غواړی، تدبر، سوچ او فکر او د نفس تزکیه وغیره اسباب غواړی۔

(٤) څلورم دا چه د قرآن کریم سره خپل حال جوړول۔ یعني د قرآن کریم نه تأثر اخستل۔ یعني د دغه ترجمے او مطلب مطابق ځان برابرول۔ دا کار ډیر کم خلق کوی او اکثر خلق ددے خبرے نه غافل وی۔ والله المستعان۔

لکه مثلًا وبشر الذین آمنوا (مومنانو ته زیرے ورکړه) ددے آیت په لفظي معنیٰ پو هه شوے او په مقصد ئے هم پو هه شوے لیکن دا بشارت تا واوریدو او ددے نه دِے اثر واخستو، ایمان دِے برابر کړو او عمل دِے نیك جوړ کړو، او د جنت سره دِے شوق او محبت پیدا شو۔ دغه شان د جهنم او د عذابونو تذکره راشي نو تا کښ یره راشي او عملونه برابر کړے او آیت په تا باندے اثر اُوکړی او دا تعلق ډیر مشکل دے، پدے کښ ډیره خواری پکار ده۔

(٥) پنځم تعلق اسرار القرآن کریم معلومول۔

یعني قرآن کریم کښ الله تعالیٰ رازونه ایخودی دی، ډیرو مسائلو او حالاتو ته پکښ اشارات دی، د آخرت اشارات، د ایمان، د اعمالو او د دنیاوی څیزونو سائنس او تیکنالوجی او جغرافیائی اشارات موجود دی۔ لکه د عبد الله بن عباس ﷺ نه چا تپوس اُوکړو چه ته

وائے هر شے په قرآن کریم کښې شته نو یو د معاویهؓ خلافت پکښې راوښایه او دویم د رسول الله ﷺ وفات. نو هغه ورته دواړه اُوخودل. چه سورة بني اسرائیل کښې راغلي دي :

﴿ وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُوماً فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَاناً فَلَا يُسْرِفْ فِي الْقَتْلِ﴾.

(څوك چه مظلوم مړ شو نو مونږ د هغه د ولي او وارث دپاره سلطان او غلبه کرځولے ده نو هغه دے په وژلو کښې اسراف نهٔ کوي)

د آیت مقصد خو دا دے چه چا قتل اُوکړو نو هغه به پرے قصاص کولے شي. او په قصاص کښې به زیاتے نهٔ کوي. لیکن دے کښې اشاره ده چه عثمان مظلوم قتل شویدے او د عثمان ملګرے معاویهؓ وو، هغه وئیل زه د عثمان بدله اخلم. نو سلطان کښې اشاره ده سلطنت د معاویه ته. چه دهٔ ته به سلطنت ملاویږي. او د سورة التغابن نه د رسول الله ﷺ وفات معلومیږي ځکه چه تغابن غټ تاوان ته وئیلے شي، نو چه ما سورتونو شمارل کړل نو د سورة المنافقون پورے (٦٣) سورتونه وو او د هغے په آخر کښې دا خبره وه چه کله د یو نفس اجل راشي نو هغه نهٔ روستو کیږي نو ما ته پته اُولګیده چه رسول الله ﷺ به په درے شپیته کاله کښې وفات کیږي. او امت به په غټ تاوان کښې واقع کیږي.

۳- دارنګه سورة القصص کښې (ثماني حجج) لفظ راغلے چه موسی علیه السلام د شعیب علیه السلام سره اته یا لس کاله تیر کړل نو پدے کښې اشاره ده چه زمونږ نبي ﷺ به په مدینه کښې اته کاله تیروي او بیا به ورته فتح د مکے ملاویږي. لیکن پدے اشاراتو معلومولو کښې به داسے غلو نهٔ کوي چه د نورو نصوصو مخالفت کښې واقع شي.

OOOOOOOOO

## ٤- البحث الرابع : اسباب الانتفاع بالقرآن

### څلورم بحث : د قرآن کریم نه د فائدے اخستو ډیر اسباب او ذرائع دی دلته مختصراً یو څو ذکر کولے شی۔

(۱) اول سبب : [طَلَبُ مَرْضَاةِ اللّٰهِ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰی] ۔

(د الله تعالیٰ د رضا طلب کول) چه د بنده دا نیت وی چه ما نه الله تعالیٰ راضی شی۔ سورة المائده (۱٦) آیت کښ دی : ﴿ یَهْدِیْ بِهِ اللّٰهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهٗ ﴾ ۔ (الله تعالیٰ پدے قرآن هدایت کوی هغه چا ته چه د الله تعالیٰ د رضا پسے روان شی)۔

نو معلومه شوه چه څوك د الله تعالیٰ رضا لټوی نو قرآن کریم هغه ته هدایت کوی او هغه د قرآن کریم نه فائده اخستے شی۔

(۲) - اَلتَّقْوٰی: (تقویٰ، د الله تعالیٰ یره چه چا کښ راشی نو هغه د قرآن کریم نه فائده اخستے شی) قرآن کریم خو ډیر قسمه خلق لولی، انګریزان، شیعه ګان، هندوان، مبتدعین بریلیان وغیره لیکن دهغوی پرے عقیده نهٔ جوړیږی، اعمال ئے نهٔ برابریږی وجه دا ده چه تقویٰ پکښ نشته۔

الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ هُدًی لِّلْمُتَّقِیْنَ ﴾۔

(۳) دریم سبب : [خَشْیَةُ اللّٰهِ وَالْإِشْفَاقُ مِنَ السَّاعَةِ]۔

(د الله نه یره او د قیامت نه سخت یریدل) تقویٰ دے ته وائی چه انسان د الله تعالیٰ د حکمونو تابعداری کوی او خشیت دے ته وائی چه د الله تعالیٰ د ذات نه یره کوی۔ د الله تعالیٰ او د قیامت نه یره مجموعه د ټولو خیرونو ده۔ اودا قسم خلق د قرآن کریم نه فائده اخستے شی، لکه الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ وَلَقَدْ آتَیْنَا مُوْسٰی وَهَارُوْنَ الْفُرْقَانَ وَضِیَاءً وَذِکْرًا لِّلْمُتَّقِیْنَ الَّذِیْنَ یَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَیْبِ وَهُمْ مِّنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُوْنَ﴾ (الانبیاء : ۴۸،۴۹)۔

(مونږ موسی او هارون ته فرق او رڼا (تورات) ورکړے وه اودا یاداشت وو دپاره د متقینو کوم چه د الله تعالیٰ نه یریدل او د قیامت نه ئے خوف لرلو)۔

(٤) - [الاِسْتِمَاعُ وَالْاِنْصَاتُ]

(قرآن کريم ته غوږ کيخودل او متوجه کيدل او مشاغل پريخودل۔ لکه فرمائی: ﴿ وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴾ (کله چه قرآن کريم لوستلے شی نو غوږ ورته کيدئ او چپ شئ دے دپاره چه په تاسو رحم اُوکړے شی)۔

د ليث بن سعد رحمه الله نه نقل دی: [لَيْسَ شَيْءٌ اَسْرَعَ اِلَيْهِ الرَّحْمَةُ مِنْ مُسْتَمِعِ الْقُرْآنِ]۔ (داسے يو شے نشته چه رحمت هغے ته په جلتئ ورروان وی لکه څنګه چه د قرآن کريم آوريدونکی ته په جلتئ راځی) دارنګه فرمائی: ﴿ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ ﴾ (ق: ۳۷)۔ (پدے قرآن کښې ياداشت دے د هغه چا دپاره چه غوږ کيدی او زړه ئے حاضر وی) نو فائده به د قرآن کريم نه واخلی۔ که د انسان زړه بل طرف ته متوجه وی نو پوره فائده نشی اخستے۔

(٥) [خَوْفُ وَعِيْدِ اللّٰهِ ] (الله تعالىٰ چه په قرآن کريم کښې کوم وعيدونه او عذابونه او سزاګانے د مجرمانو دپاره بيانے کړيدی د هغے نه يره کولو سره بنده د قرآن کريم نه فائده اخستے شی) ۔ لکه الله تعالىٰ فرمائی: ﴿ فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ ﴾ (ق: ٤٥) (قرآن بيان کړه هغه چا ته چه زما د عذابونه يره کوی) ﴿ سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى ﴾ [الاعلی: ۱۰] (زردے چه نصيحت به واخلی هغه څوك چه د الله تعالىٰ نه يره کوی)

(٦) - [عَدَمُ الرُّكُوْنِ اِلَى الدُّنْيَا وَاِتِّبَاعُ الْهَوٰى]

(دنيا ته نۀ مائله کيدل او دخپلو خواهشاتو پسے نۀ روانيدل)۔

په قرآن کريم باندے دنيا پرست خلق او هغه څوك چه د خپلو خواهشاتو تابع وی نشی پوهيدلے۔ لکه بلعام بن باعورا په اوله کښې د تورات عالِم وو بيا پکښې دوه مرضونه پيدا شو: ۱- حب الدنيا (د نيا سره ئے مينه پيدا شوه)۔ ۲- دويم اتباع الهوی۔ د خپلو خواهشاتو تابعداری۔ نو بس ګمراه شو۔ لکه سورة الاعراف کښې به راشی: ﴿ وَلٰكِنَّهٗ اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوَاهُ ﴾۔(دے زمکے (دنيا) ته مائل شو او د خپل خواهش تابعداری ئے اُوکړه) نو دغه علم ورته فائده ورنکړه۔

سفيان ثوریؒ نه نقل دی: [لَايَجْتَمِعُ فَهْمُ الْقُرْآنِ وَالْاِشْتِغَالُ بِحُطَامِ الدُّنْيَا فِيْ قَلْبِ مُؤْمِنٍ اَبَداً] [البرهان فی علوم القرآن ۱/٦]

(د قرآن کريم پوهه او ددنيا په سامانو مشغوله کيدل دواړه د مؤمن په زړه کښې هيڅکله نۀ شی راجمع کيدے)

(۷) - [اَلاِیْمَانُ الْکَامِلُ بِاللّٰهِ وَبِوَعْدِهٖ وَوَعِیْدِهٖ] -
(قوی او کامل ایمان لرل په الله تعالیٰ او د هغه په وعدو او د هغه په عذابونو) که داسے نهٔ وی او ایمان ئے ضعیف وی نو دا پوره طریقے سره د قرآن نه فائده نشی اخستے، هسے الفاظ به وائی او قرآن به ختم کړی، درس نه به فارغ شی مګر ډیره فائده به اُونکړی. لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ قُلْ هُوَ لِلَّذِیْنَ آمَنُوْا هُدًی وَّشِفَاءٌ ﴾ (فصلت : ٤٤ ) (اُووایه دا قرآن د ایمان والو دپاره هدایت او شفاء ده) دارنګه فرمائی : ﴿ اَوَلَمْ یَکْفِهِمْ اَنَّا اَنْزَلْنَا عَلَیْكَ الْکِتَابَ یُتْلٰی عَلَیْهِمْ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَرَحْمَةً وَّذِکْرٰی لِقَوْمٍ یُّؤْمِنُوْنَ﴾ (عنکبوت: ۵۱)
(آیا دوی له دا کافی نهٔ ده چه مونږ دوی ته کتاب نازل کړیدے او په دوی باندے لوستلے شی، یقیناً پدے کښ ضرور رحمت دے او یاداشت دے د ایمان والودپاره)
﴿ وَهُدًی وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِیْنَ ﴾ (یونس).
(۸) (طَهَارَةُ الْقَلْبِ) (د زړه صفائی) د حسد، کینه، ضد او بغض او ګنده اخلاقو نه) یعنی د چا تزکیه د نفس چه شوی وی نو هغه د قرآن کریم نه حقیقی فائده اخستے شی. لکه فرمائی :﴿ لَا یَمَسُّهٗ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ﴾ (الواقعة) ددے یوه معنیٰ مفسرینو داسے کړیده :[لَا یَنَالُ فَهْمَ مَعَانِیْهِ اِلَّا الْقُلُوْبُ الطَّاهِرَةُ ] (صرف پاکو زړونو والا په معانی او مقاصدو د قرآن کریم پو هیږی) چه زړه ته اُورسیږی.
(۹) [اَلْعَزْمُ الْحَازِمُ ] (کلکه اراده کول چه زهٔ به د قرآن کریم نه فائده اخلم) علماً،عملًا او عقیدةً. لکه آیت کښ دی :﴿ لِمَنْ شَاءَ مِنْکُمْ اَنْ یَّسْتَقِیْمَ ﴾ (التکویر :۲۸)
(د قرآن کریم نه فائده هغه څوك اخستے شی چه د هغه اراده د استقامت وی) د ځان د برابرولو اراده ئے کړے وی.
(۱۰) - [اَلْیَقِیْنُ] (دا یقین کول چه قرآن کریم به ما ته ضرور فائده راکوی).
(۱۱) (اَلصَّبْرُ) (دا ټولے خبرے انسان ته هله حاصلیږی چه صبر پکښ راشی، بنده نهٔ علم کولے شی او نه عمل کولے شی او نهٔ د نفس کومه تزکیه کولے شی او نهٔ د کوم بد اخلاقو نه بچ کیدے شی مګر هله چه صبراختیارکړی.پدے وجه په قرآن کریم کښ د صبر بیان ډیر راغلے دے. الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً یَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا وَکَانُوْا بِآیَاتِنَا یُوْقِنُوْنَ﴾ [الم السجده : ۲٤] (ما د بنی اسرائیلو نه امامان د دین جوړ کړی وو چه خلقو ته به ئے د الله تعالیٰ دین بیانولو کله چه هغوی کښ صبر راغلو او زما په آیتونو ئے یقین لرلو).

# ٥- بحث : موانع فهم القرآن

## پنځم بحث : د قرآن کریم د پوهے نه منع کونکی څیزونه

علامه زرکشیؒ په البرهان کښ لیکلی دی چه چا کښ نهه صفات راشی نو هغه د قرآن کریم پوهه نشی حاصلولے او فائده نشی ورکولے۔ د فائدے په طور مختصراً بیانیږی :

۱ - (اَلْبِدْعَةُ) (بدعتی دقرآن کریم نه فائده نشی اخستے)۔

(۲) [اَلْاِصْرَارُ عَلَى الذَّنْبِ) (په گناه باندے یو انسان همیش والے کوی او توبه ترے نۀ اُوباسی نو دا هم د قرآن نه فائده نشی اخستے)

(۳) (اَلْكِبْرُ) (د چا په زړه کښ چه تکبر وی چه حق له دیکه ورکوی او خلق ورته سپك ښکاری) لکه آیت کښ دی : ﴿ سَأَصْرِفُ عَنْ آيَاتِيَ الَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾ [الاعراف:١٤٦] (یعنی زه د خپلو آیتونو نه هغه څوك اړوم چه په زړه کښ ئے تکبر دے)

(٤) (اَلْهَوٰى) (د خواهشاتو تابعداری)۔

(٥) (حُبُّ الدُّنْيَا) (د دنیا سره محبت) لکه ددے تشریح به روستو قرآن کریم کښ راځی چه د دنیا محبت څه شے دے ؟ هغه دا چه د الله تعالیٰ حکم پرے مات کړے شی۔

(٦) [اَنْ يَّكُوْنَ غَيْرَمُتَحَقِّقِ الْاِيْمَانِ]۔(چه ایمان ئے قوی نۀ وی)

(۷) [اَنْ يَّكُوْنَ ضَعِيْفَ التَّحْقِيْقِ]۔

(چه د خبرے تحقیق پوره نۀ کوی) یعنی بغیر د تحقیق نه د خبرے تابعداری کوی او خپل تدبر او سوچ او کتب التفاسیر ته رجوع نۀ کوی)

(۸) [اَنْ يَّكُوْنَ مُعْتَمِدًا عَلٰى قَوْلِ مُفَسِّرٍ فَقَطْ]۔

(صرف د یو مفسر په قول اعتماد کوی) د خپل شیخ نه ئے څه اَوریدلی وی بس همیشه دپاره همغه ترجمه او تفسیر کوی او نور تفاسیر نۀ گوری او نۀ تدبر کوی)۔

(۹) (اَنْ يَّكُوْنَ رَاجِعًا اِلٰى مَعْقُوْلِهٖ)

(په خپل عقل اعتماد کوی چه بس زۀ پوهیږم) د استاذانو نه فائدے نۀ اخلی نو داسے انسان هم په قرآن کریم پوره نشی پوهیدلے بلکه اُلټه به د قرآن کریم تحریف کوی۔

# اول باب
# اصول التفسیر ومناهجه
## د تفسیر اصول او طریقے

د علماء کرامو نه د قرآن کریم د اصول التفسیر دوه طریقے نقل دی (۱) یوه طریقه خاص زمونږ د مشائخو ده لکه هغه زمونږ شیخ، المفسر، المحدث ابوزکریا عبد السلام (عافاه الله) په تنشیط الاذهان کښې تفصیلاً ذکر کړیده۔ پدے طریقه باندے اصول التفسیر ذکر کولو کښې دا فائده ده چه په تصحیح د عقیده باندے ډیر زور ورکړے شی او د شرك او مشرکانو بدی او قباحت ذکر شی۔ او دا هم انتهائی مهمه مسئله ده۔
(۲) او دویمه طریقه د عامو مفسرینو ده چه هغه د قرآن کریم د عامو قواعدو او مضامینو او علومو سره تعلق ساتی۔ نو مونږ اُوس ددے طریقے یو څو بحثونه ذکر کوو۔ چه دا اهل علمو او طلاب العلم ته زیاته فائده ورکوی او د قرآن کریم په تفسیر کښې د انسان بصیرت د همدے طریقے سره زیات پیدا کیږی لهذا پدے طریقه کښې بحثونه ستا مخے ته وړاندے کیږی :

### ۱ - الامر الاول : شرف علم التفسیر
### اول بحث : شرافت د علم التفسیر

یعنی علم التفسیر ته په ټولو علومو کښې ډیر شرافت او عزت حاصل دے۔ وجه دا ده چه یو علم ته چه شرافت حاصلیږی نو دا په دریے اسبابو سره لکه چه امام راغب اصفهانیؒ په مفردات کښې لیکی :
(۱) (اَلْاَوَّلُ بِالْمَوْضُوْعِ) ۔ (اول په موضوع سره) یعنی یو علم چه غوره کیږی نو ددے وجه نه چه موضوع د هغه علم اشرف او غوره وی لکه عرب وائی :
[اَلصِّيَاغَةُ اَشْرَفُ مِنَ الدِّبَاغَةِ لِاَنَّ مَوْضُوْعَهَا - وَهُوَ الذَّهَبُ وَالْفِضَّةُ - اَشْرَفُ مِنْ جِلْدِ الْمَيْتَةِ - الَّذِیْ هُوَ مَوْضُوْعُ الدِّبَاغَةِ]۔

(زرگری غوره ده د څرمنو رنګ کولو نه، ځکه چه موضوع د زرګرئ سره او سپین دی، او موضوع د دباغت څرمنے دی۔ (یعنی د څرمنو نه بحث کوی) او سره او سپین ډیر غوره دی د څرمنو نه۔ لهذا زرګری هم غوره شوه د دباغة او رنګ کارئ نه)۔ او ددے خبرے مثالونه قرآن کریم کښ زیات راځی لکه مثلاً قل هو الله احد سورت ولے ډیر غوره دے سره ددے نه چه وړوکے سورت دے۔ دارنګه آیة الکرسی غوره ده د نورو آیتونو نه وجه دا ده چه پدے کښ د الله تعالیٰ صفات ذکر دی نو هغه تقریر به ډیره غوره وی چه کوم کښ د الله تعالیٰ نه بحث وی په نسبت د هغه سورت او تقریر چه په هغے کښ د الله تعالیٰ د دشمن بحث وی لکه (تبت یدا ابی لهب) سره ددے نه چه دواړه د الله تعالیٰ کلام دے۔

(۲) – [الثانی بِالصُّوَرِ]۔(دویم دا چه یو شی کښ غوره والے راځی د شکل او صورت د مزیدار والی په وجه لکه عرب دا مثال ورکوی : [طَبْعُ السُّيُوْفِ اَشْرَفُ مِنْ طَبْعِ الْقُيُوْدِ] ۔ (د تورے جوړیدلو له چه کوم شکل ورکړے شویدے نو دا غوره دے د قید او زنځیرونو د شکل نه)۔(۳) دریم شرافت چه په علم کښ راځی نو دا په غرض او غایه سره، چه د کوم علم غرض او غایه ښه وی نو بس هغه علم ښه وی۔ لکه وئیلے شی [صَنَاعَةُ الطِّبِّ الَّتِیْ غَرَضُهَا اِفَادَةُ الصِّحَّةِ اَشْرَفُ مِنَ الْكُنَاسَةِ الَّتِیْ غَرَضُهَا تَنْظِيْفُ الْمُسْتَرَاحِ]

(علم طب چه د هغے غرض د زائل شوی صحت پیدا کول دی او د موجود صحت باقی پریخودل دی۔ دا غوره دے د ځائے جارو کولو او جمعدارئ نه چه د هغے غرض ځائے صفا کول دی)۔ نو علم طب د جمعدارئ نه په دے وجه غوره دے چه موضوع ئے اشرفه ده چه هغه صحت راوستل دی او صحت راوستل غوره دی د صفائی کولو نه۔ نو دغه شان علم التفسیر ته د درے واړو جهاتو نه دا فضیلت او شرافت حاصل دے۔ [لِاَنَّ مَوْضُوْعَ التَّفْسِيْرِ هُوَ كَلَامُ اللّٰهِ الَّذِیْ هُوَ يَنْبُوْعُ كُلِّ حِكْمَةٍ وَمَعْدَنُ كُلِّ فَضِيْلَةٍ] (ځکه چه موضوع د علم تفسیر د الله تعالیٰ هغه کلام دے چه هغه چینه د هر حکمة ده او کان د هر فضیلت دے) یعنی په علم التفسیر کښ د الله تعالیٰ د کلام نه بحث کیږی د هغے تشریحات، او معنی او مفهوم او مقصد بیانیږی او په هغے باندے ځان پوهه کول او د هغے نه رازونه او مسئلے راویستل دی او دا څه معمولی خبره نهٔ ده چه د الله تعالیٰ د کلام نه انسان رازونه او مسئلے راوباسی!!۔

او د علم التفسیر صورت او شکل دا دے : [اِظْهَارُ خَفِيَّاتِ مَا اَوْدَعَهٗ مُنْزِلُهٗ مِنْ اَسْرَارِهٖ ﴿

لِيَدَّبَّرُوا آيَاتِهِ وَلِيَتَذَكَّرَ أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴾

(الله تعالیٰ چه پدے کښې کوم پټ رازونه ایخودي دي هغه رابښکاره کول) لکه قرآن کښې راغلي دي: (لیدبروا آیاته) یعنی دا قرآن الله تعالیٰ دے له نازل کړیدے چه ددے په آیتونو کښې سوچ او تدبر اُوکړے شي او بل ددے نه عقل مند خلق تذکر او نصیحت واخلي).

## او غرض د علم تفسیر:

[اَلتَّمَسُّكُ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى الَّتِیْ لَا انْفِصَامَ لَهَا وَالْوُصُوْلُ إِلَى السَّعَادَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ الَّتِیْ لَا فَنَاءَ لَهَا].

(یعنی مقصد د تفسیر دا دے چه مونږ منګولے اُولګوو په هغه کړئ باندے چه د هغے ماتیدل نشته چه هغه د توحید او د ایمان او د دین کړئ ده، او دا په علم التفسیر سره معلومیږي.

دویم غرض دا دے چه بنده هغه حقیقي سعادت او نیکبختئ ته اُورسیږي چه د هغے فناء نشته یعنی بنده پدے سره همیشه همیشه جنت ته اُورسیږي چه هغه نۀ ختمیدونکے نعمت دے.

ددے وجه نه امام راغبؒ فرمائي: الله تعالیٰ د علم تفسیر عظمت پدے آیت کښې بیان کړیدے: ﴿ وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ﴾ (البقرة:۲٦۹) ـ (او چا له چه پوهه د قرآن ورکړے شوه نو هغه ته ډیر زیات خیر ورکړے شو).

نو ثابته شوه چه علم التفسیر اشرف علم دے او په ټولو علمونو کښې اُوچت او بهترین علم دے، دا خبره الله تعالیٰ هم کړیده او رسول الله ﷺ هم او صحابهِ کرامو او علماؤ هم او په عقل هم دا معلومیږي چه دا ولے غوره دے ؟ ځکه چه دا د الله تعالیٰ د کلام نه بحث دے، د هغے شرح، وضاحت، او د خپل رب او د خپل مالك حقیقي او محبوب په خبره ځان پوهه کول دي، او هغه خبرے دي چه په هغے کښې د انسان سعادت او نیکبختي ده. نو الله تعالیٰ چه دا خبره کوي نو د بندګانو د فائدے دپاره ئے کوي، لهذا پدے کښې چه څوك بحث کوي، څوك چه پکښې سوچ او فکر کوي، او خپل دماغ پکښې استعمالوي یا دے ته غوږ اږدي ددے درسونو ته حاضریږي نو دا انسان د خپل نجات په کوشش کښې لګیا دے. او دا څومره بے وفائي ده چه د عظیم ذات کتاب بندګانو ته راغلے دے او بندګانو بنه په آرام سره په الماړو کښې بند ساتلے دے او خپله دکانونو ته ځي راځي او دنیا کښې بنه مشغول وي او د الله تعالیٰ کتاب ته اُوزګار نشو.

ددے پہ بارہ کښې د بعض سلفو اقوال اُوګوره :

۱- ابو موسی اشعری ﷺ نه نقل دی : [اِنِّیُ لَاَسُتَحِیِیُ اَنُ لّا اَنُظُرَ کُلَّ یَوُمٍ فِیُ عَهُدِ رَبِّیُ]۔
(ما له د الله تعالیٰ نه دا حیاء راځی چه زه هره ورځ د خپل رب په عهد نامه (کتاب) کښې مطالعه اُونکړم)۔

۲- په پخوانو کتابونو کښې یو اثر راغلے دے الله تعالیٰ فرمائی : [یَا ابُنَ آدَمَ اِذَا اَتَتُكَ رِسَالَةٌ عَنُ صَدِیُقِكَ وَکُنُتَ رَاکِبًا نَزَلُتَ فَقَرَأْتَهَا وَقَدُ جَاءَ كَ کِتَابِیُ وَاَنُتَ مُعُرِضٌ عَنُهُ]۔
(اے د آدم ځویه ! کله چه تا ته د خپل دوست د طرف نه یو خط راشی او ته سورے نو راکوز شے او هغه خط لولے او حال دا چه تا ته زما کتاب راغلے دے او تا ترے مخ اړولے دے)۔

۳- امام مجاهد (تابعیؒ) فرمائی :
[اَحَبُّ الُخَلُقِ اِلَی اللّٰهِ تَعَالیٰ اَعُلَمُهُمُ بِمَا اَنُزَلَ]۔
(الله تعالیٰ ته په ټول مخلوق کښې محبوب هغه څوك دے چه ډیر عالِم وی په هغه کتاب چه الله تعالیٰ نازل کړیدے)

٤- امام شعبیؒ فرمائی : [رَحَلَ مَسُرُوُقٌ اِلَی الُبَصُرَةِ فِیُ تَفُسِیُرِ آیَةٍ، فَقِیُلَ لَهُ اِنَّ الَّذِیُ یُفَسِّرُهَا رَحَلَ اِلَی الشَّامِ فَتَجَهَّزَ وَرَحَلَ اِلَی الشَّامَ حَتّٰی عَلِمَ تَفُسِیُرَهَا]۔
(مسروق رحمه الله بصرے ته د یو آیت د تفسیر دپاره سفر اُوکړو کله چه هلته اُورسیدو نو هغه ته اُووئیل شو چه هغه سړے چه ددے آیت تفسیر باندے عالم دے هغه خو شام ته سفر کړیدے نو دهٔ تیارے اُوکړو او شام ته ئے سفر شروع کړو تردے چه د هغه آیت تفسیر ئے زده کړو)۔

۵- علی ﷺ جابر بن عبد الله ﷺ په علم سره ذکر کړو او د هغه صفت ئے په علم سره اُوکړو چه دا عالم دے۔ نو دهٔ ته اُووئیل شو:
[جُعِلُتُ فِدَاءَ كَ تَصِفُ جَابِراً بِالُعِلُمِ وَاَنُتَ اَنُتَ ! فَقَالَ: اِنَّهُ کَانَ یَعُرِفُ تَفُسِیُرَ قَوُلِهٖ تَعَالیٰ : ﴿اِنَّ الَّذِیُ فَرَضَ عَلَیُكَ الُقُرُآنَ لَرَادُّكَ اِلٰی مَعَادٍ﴾]۔
(چه زه دِے تا نه قربان شم ! ته د جابر په علم سره صفت کوے او حال دا چه ته خو ته ئے یعنی ته خو کامل عالِم ئے ! نو هغه ورته اُوفرمایل : د هغه صفت ځکه کوم چه هغه ددے آیت په تفسیر پو هیږی (ان الذی فرض علیك القرآن) القصص) نو اُوګوره علی ﷺ د جابر ﷺ صفت کوی په دے وجه چه دا د یو آیت په تفسیر باندے پو هیږی۔ نو د صحابه کرامؓ

سره د قرآن کریم د تفسیر انتهائی اَهمیت وو.
٦- عکرمه (تابعیؒ) پدے آیت کښې فرمائی : ﴿وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾ (النساء: ۱۰۰). (چه یو صحابی د کور نه د هجرت په غرض روان شو نو په لاره کښې پرے وفات راغلو، مشرکانو د هغه پورے مسخرے شروع کړے چه مقصد ته هم اُونه رسیدو او کلی ته هم پاتے شو. نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو :
نو عکرمهؒ فرمائی : [طَلَبْتُ اسْمَ هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِیْ خَرَجَ مِنْ بَيْتِهٖ مُهَاجِراً اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ اَرْبَعَ عَشْرَةَ سَنَةً حَتّٰى وَجَدْتُّهٗ].
(ما ددے سړی نوم چه الله او رسول ته ئے هجرت کړے وو څوارلس کاله طلب کولو تردے چه اُومے موندلو) چه هغه حبیب بن ابی زمره صحابی رضی الله عنه وو.
ددے نه اندازه اُوکړه چه د سلفو د تفسیر سره څو مره شوق او ذوق وو. د یوے یوے خبرے اهتمام به ئے کولو.
۷- عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : ما دوه کاله وخت تیر کړو اراده مے وه چه د عمر فاروق ﷺ نه د هغه دوه زنانو په باره کښې تپوس اُوکړم چه هغوی په رسول الله ﷺ باندے د یو بل سره مدد کړے وو. لیکن زه د هغه (عمرؓ) هیبت منع کړے وم، آخر دا چه په یوه موقعه کښې مے ترے تپوس اُوکړو نو هغه اُوفرمایل : دا حفصه او عائشه (رضی الله عنهما) وے.
۸- ایاس بن معاویه رحمه الله فرمائی : [مَثَلُ الَّذِيْنَ يَقْرَؤُوْنَ الْقُرْآنَ وَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ تَفْسِيْرَهٗ كَمَثَلِ قَوْمٍ جَاءَهُمْ كِتَابٌ مِنْ مَلِكِهِمْ لَيْلاً وَلَيْسَ عِنْدَهُمْ مِصْبَاحٌ فَتَدَاخَلَتْهُمْ رَوْعَةٌ وَلَا يَدْرُوْنَ مَا فِي الْكِتَابِ، وَمَثَلُ الَّذِيْ يَعْرِفُ التَّفْسِيْرَ كَمَثَلِ رَجُلٍ جَاءَهُمْ بِمِصْبَاحٍ فَقَرَأُوْا مَا فِي الْكِتَابِ].
(مثال د هغه کسانو چه قرآن لولی لیکن د هغے د تفسیر نه خبر نهٔ وی په شان د هغه قوم دے چه هغوی ته د بادشاه د طرف نه د شپے کتاب (خط) راشی او د دوی سره ډیوه نهٔ وی نو دوی باندے یره راشی، پته ورته اُونهٔ لګی چه پدے خط کښې څه لیکلے شویدی. او د هغه سړی مثال چه تفسیر نه خبر وی په شان د هغه سړی دے چه دے خلقو ته ډیوه راوړی نو په خط کښې ئے چه څه لیکلی وی هغه اُولولی) او دغه مثال د مفسر قرآن دے چه خلق د الله د کتاب نه خبروی.
[انظر هذه الاوقاويل فی القرطبی ۱/۲٦) وکتاب ((نحو منهج امثل للتفسیر)) ص (٦).

## ۲-الامر الثانی : معرفة اصح طريق التفسير

### دويم بحث : د تفسير بهترينه طريقه پيژندل

پدے کښ ډيرے علمی فائدے دی چه انسان پرے پو هه شی۔
او دا يو څو طريقے دی :

(۱) اولـه طريـقه دا ده : شيخ الاسلام ابن تيميهؒ فرمائيلی دی او نورو مفسرينو، ابن کثيرؒ وغيره هم نقل کړيدی :

[اَنْ يُّفَسَّرَ الْقُرْآنُ بِالْقُرْآن فَمَا اَجمَلَ فِیْ مَکَان فَاِنَّهٗ قَدْ بَسَطَ فِیْ مَوْضِعٍ آخَرِ]

(چـه تـفسيـر د قـرآن اُوکړے شی پـه قـرآنٌ سره) ځکه چه الله تعالیٰ يوه خبره په مختلفو طريقو سره کړيده۔نو په يو ځائے کښ اجمال وی او په بل ځائے کښ د هغے تفصيل وی او دا د قـرآن کريم بلاغت هم دے۔ ځکه چه يو ځائے کښ توله واقعه بيانول مقصد نهٔ وی، دسے اشاره غـرض وی بـل ځـائے کښ ئے تفصيل کړے وی او تول قيدونه ئے پکښ راوړی وی۔ او داسے طريقه احاديثو کښ هم ډيره شويده۔ ددے مثال : سورة هود کښ فرمائی :

﴿مَنْ کَانَ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا نُوَفِّ اِلَيْهِمْ اَعْمَالَهُمْ فِيْهَا وَهُمْ فِيْهَا لَايُبْخَسُوْنَ﴾ (هود :۱۵).

نو دے آيت کښ ئے مطلق وئيلی دی چه څوك د دنيا اراده لری نو زه به دنيا ورکوم او پوره ئے ورلـه ورکـوم۔ نـو دلتـه د بـعـض خـلـقـو پـه ذهـن کښ سوال پيدا کيږی چه ډير کافران مجرمان د دنيا اراده لری او حال دا چه مسکينان غريبانان وی۔ نو ددے اشکال جواب په بل آيت د سورة الاسراء (۱۸) کښ شويدے چه فرمائی:

﴿مَنْ کَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَاءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ﴾

نو دلته ئے ورسره دوه قيدونه اُولګول يو دا چه ما نشاء (څه چه مونږ غواړو)۔ او لمن نريد (چا لـه چه اُوغواړو) نو دا لازم نهٔ ده چه کافر له به خامخا دنيا ورکوی بلکه ډير کافران ئے د دنيا نه هم محروم کړيدی او ډيرو ايمان والو ته ئے مالونه ورکړيدی۔

لهـذا پـدے طريقه د قرآن کريم او دغه شان د احاديثو ترمينځ د تعارض ګمان ختميږی۔ او دا طـريـقـه ډيـرو مـفسرينو کړيده او حافظ ابن جريرؒ او حافظ ابن کثيرؒ ئے په خپلو تفاسيرو کښ کوی۔

(۲) مثال : سورة الطارق کښې راغلي دي :
﴿اِنَّهٗ عَلٰى رَجْعِهٖ لَقَادِرٌ﴾۔
(ددې واضح تفسير دا دې چه الله تعالیٰ بنده لره د قبر نه آخرت ته په واپس کولو قادر دے) يعنې لکه څنګه ئې چه د نطفې نه پيدا کړيدې نو دغه شان به د قبر نه او د خاورو نه راويستې شي۔

دا معنیٰ ځکه ظاهره ده چه د نورو ځايونو د قرآن کريم سره برابره ده ځکه چه نورو ځايونو کښې هم الله تعالیٰ انسانانو له آخرت ته د واپس کولو تذکره زياته کړيده۔ چه انسان ئې د مور د خيټې نه راويستلې دے نو دغه شان به ئې د قبر نه هم راوباسي۔ دے کښې دويم تفسير بعض علماء کوي چه الله تعالیٰ قادر دے چه دا بنده بيرته خپل زوړ حالت ته واپس کړي يعنې وړوکے ئې کړي او بيا ترې نطفه جوړه کړي او بيرته ئې د مور رحم او بيا د پلار شاته واپس کړي۔ دا تفسير کمزورے دے۔ وجه دا ده چه يو خو پدې کښې ډيره فائده نشته۔ او بله دا معنیٰ په قرآن کريم کښې په عامو ځايونو کښې استعمال هم نۀ ده۔ نو داسې تفسير کول پکار دي چه بل ځائے کښې ئې تائيد موجود وي۔ نو دا مونږ ته دا طريقه راښائي چه کله تا ته يو آيت ګران شو او په مطلب ئې نۀ پوهيدلې نو د دغه آيت مطابق نور آيتونه نور ځايونو کښې اُوګوره، هلته به آسان وي نو بس دلته به هم د هغې په ذريعه پوهه شې۔

**۲ - دويمه طريقه** : [فَاِنْ اَعْيَاكَ ذٰلِكَ فَالسُّنَّةُ]

که په دغه مخکښې طريقه پوهه نشولې نو بيا سنت ته رجوع اُوکړه ځکه چه احاديث شارح د قرآن دي او پوره وضاحت او تفسير د قرآن کوي۔ يعنې تفسير القرآن بالحديث اُوکړه۔ وجه دا ده چه قرآن کريم داسې دے لکه متن او احاديث داسې دي لکه د شرحې په شان۔ نو قرآن او حديث بيل بيل شے نۀ دے۔

**خارجي فائده** : ددې ځائے متعلق خارجي فائده واوره چه بعض خلق وائي : قرآن اول دے او بيا احاديث دي۔ ليکن دا د اهل سنتو اصول نۀ دي چه د حديثو درجه ښکته راولي د قرآن نه بلکه دا د معتزلو اصول دي، ځکه د معتزلو اصول دا دي چه قرآن يقيني کتاب دے او احاديث ظني دي، لهذا دا روستو شے دے د قرآن نه۔ او بيا د دوی نه ډيرو اهل سنتو هم دا خبره زده کړيده، احنافو، مالکيو هم ترې دا خبره اخستې ده او دا خبره غلطه ده۔ وجه دا ده چه قرآن او حديث دواړه د يوې څلې نه راوتي دي، قرآن او حديث شريك دي، ځکه قرآن چه قرآن شويدے نو د رسول الله ﷺ په خُله قرآن شويدے، هغه وئيلي دي چه دا

آیت د قرآن دے، وے لیکئ او دا زما حدیث دے دا خبره زه کوم. لهذا قرآن او حدیث د متن او شرحي حیثیت لري، صرف دومره فرق شته چه قرآن معجز دے، کمال اعجاز پکښې پروت دے او احادیثو کښې کمال شته او اعجاز پکښې نشته.

(۲) دویمه وجه دا ده چه قرآن کریم په تواتر سره ثابت دے او احادیثو کښې بعض متواتر دی او بعض مشهور دی او بعض اخبار احاد دی خو چه په صحیح سند سره یو حدیث ثابت شو نو هغه هم یقیني دے او چه کوم په ضعیف سند ثابت وي نو هغه بیا گماني او شکي دے. هغے له بیا په شریعت کښې دومره اعتبار نشته. ددے وجه نه کوم خلق چه دا خبره کوي چه مونږ به اول قرآن اخلو او بیا روستو به حدیث اخلو نو دا د اهل زیغو طریقه ده. سیدنا عمر فاروق ﷛ فرمائیلي دي :

[إِنَّهُ سَيَأْتِيْ نَاسٌ يُجَادِلُوْنَكُمْ بِشُبُهَاتِ الْقُرْآنِ فَخُذُوْهُمْ بِالسُّنَنِ، فَإِنَّ أَصْحَابَ السُّنَنِ أَعْلَمُ بِكِتَابِ اللّٰهِ].

(شرح السنة للبغوی (۱۹۲/۱) والدارمی (۶۲/۱رقم : ۱۱۹)

(زردے چه تاسو ته به څه خلق راشي چه تاسو سره به د قرآن کریم په متشابهاتو جگړے کوي. نو دوی په احادیثو سره راگیر کړئ ځکه چه ځوك په حدیثو پوهیږي نو هغوی په قرآن ښه پوهیږي) او ددے شبهاتو ډیر زیات مثالونه دي، مبتدعین چه بدعت ثابتوي هم د قرآن متشابهات راخلي لکه وائي : اولیاؤ ته غائبانه آواز جائز دے ځکه (ادعوا) راغلے دے (ثم ادعهن) راغلے دے. دارنگه وائي چه (واذا قرئ القرآن فاستمعوا له) نه مونږ ثابتوو چه مقتدي به فاتحه په مانځه کښې نۀ وائي.

(ادعوا ربکم تضرعاً وخفیة) نه ثابتوي چه آمین به په پټه وائي. دا ټول د قرآن کریم د شبهاتو نه استدلال دے. نۀ بلکه دے باب کښې به حدیثو ته رجوع کوي چه رسول الله ﷺ ددے آیتونو څه تفسیر کړیدے، که حدیثونو کښې نۀ وي راغلے نو تیك ده بیا ئے ته پیش کولے شے، هرکله چه حدیث کښې تفسیر راغلو نو بیا د رسول الله ﷺ نه ولے مخکښې کیږي. لکه هغه وئیلي دي چه دعا په پټه غواړئ او قرآن هم دا وئیلي دي مگر په بعض ځایونو کښې جهر اُوکړئ نو د الله نبي زمونږ نه په قرآن ښه پوهیدو نو بس هغه ته به په دے باب کښې رجوع کیږي.

لهذا معلومه شوه چه احادیث په منزله د شرح دے، په قرآن کریم کښې د احکامو په باب کښې بعض اجمال دے نو احادیثو کښې د هغے پوره تشریحات موجود دي.

ددې وجه نه امام شافعي رحمه الله فرمايلي دي :
[كُلُّ مَا حَكَمَ بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فَهُوَ مِمَّا فَهِمَهُ مِنَ الْقُرْآنِ]
(هره خبره چه رسول الله ﷺ په هغې فيصله کړيده (او خبره ئې کړيده) نو هغه ئې د قرآن نه معلومه کړيده)

او دا ډيره اُوچته خبره امام شافعيؒ کړيده ځکه چه د رسول الله ﷺ عام احاديث اُوګورې نو د قرآن کريم نه اخستې شويدي. د هر حديث مأخذ په قرآن کښې شته. ليکن بعض ماخذونه بالکل ظاهر وي خپله به رسول الله ﷺ د حديث سره آيت اُولوستلو او په بعض ځايونو کښې به ئې ورسره آيت نۀ لوستلو. خو د قرآن د آيت نه به خامخا ماخوذ وو، او کله چه ته په قرآن کښې ډير مهارت حاصل کړې نو بيا هر حديث د قرآن نه راويستلې شې لکه د [اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ] ددې حديث ماخذ دا آيت دې :
﴿ وَمَا اُمِرُوْا اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ﴾.

دغه شان حديث د جبريل چه بخاري مشکاة وغيره کتابونو کښې راغلې دې نو د هغې ماخذ د قرآن کريم په ډيرو آيتونو کښې راغلې دې. د بني الاسلام علی خمس ددې ماخذ هم په ډيرو آيتونو کښې شته. نو هرکله چه د هر حديث ماخذ په قرآن کريم کښې شته نو احاديث به د قرآن نه غير نشي ګڼړلې کيدې. الله تعالىٰ فرمائي :
﴿ اِنَّا اَنْزَلْنَا اِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا اَرَاكَ اللّٰهُ ﴾ (النساء:١٠٦) (اې پيغمبره ! تا ته الله تعالىٰ کتاب نازل کړو په حق سره دې دپاره چه د خلقو ترمينځ به فيصلې کوې په هغه څه چه الله تعالىٰ تا ته خودلې دي)

نو بما اراك الله کښې اشاره ده احاديثو ته، پيغمبر له الله تعالىٰ يوه رائې ورکړې وه او کامل عقل ئې ورکړې وو، په هغې باندې به ئې کار کولو. او د قرآن تفسير به ئې کولو. او هر حديث اګرکه د آسمان نه نۀ دې نازل، بعض احاديث رسول الله ﷺ په خپل صوابديد وئيلې دي ليکن نبي چه به يوه خبره اُوکړه او د الله تعالىٰ به خوښه وه نو څه به ئې ورنه نۀ وئيل او کومه خبره به چه د الله خوښه نشوه نو هغه ته به ئې اُووئيل دا خبره بدله کړه. نو رسول الله ﷺ ته ئې اجازه ورکړې وه چه زما د دين شرح کوه کومه خبره چه زما خوښه نۀ وه نو د هغې اصلاح به درله زه کوم.

د ﴿ وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ﴾ معنىٰ هم دا ده چه رسول الله ﷺ د خپلو خواهشاتو مطابق خبرې نۀ کولې، تولې به ئې د الله تعالىٰ د رضا خبرې کولې. او داسې معنىٰ نۀ ده چه رسول الله

ﷺ څه خبره کوی نو دا به د بره نه نازلی وی. دا تفسیر په دغه کښې آیت کښې کمزورے دے. څوک چه دا خبره کوی چه ټول احادیث د بره نه نازل شویدی دے کښې ډیر نقصانات دی چه هغه د حدیثونو په کتابونو کښې بیانولے شی.

دارنګه ددے آیت نه هم معلومیږی چه حدیث شارح د قرآن دے. ارشاد دے:

﴿ وَمَا اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ اِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِی اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ﴾ (النحل:٦٤).

(مونږ په تا باندے دا کتاب نۀ دے نازل کړے مګر ددے دپاره چه دوی په کومه خبره کښې اختلاف کوی چه ته ئے ورته ښکاره بیان کړے) نو هغه به د قرآن کریم شرح او وضاحت کولو. او نبیﷺ هم فرمائی:

[اَلَا اِنِّیْ اُوْتِيْتُ الْقُرْآنَ وَمِثْلَهٗ مَعَهٗ] (ابوداود).

(ما ته قرآن کریم او ددے په شان شے ددے سره راکړے شویدے) چه هغه احادیث دی. ددے نه معلومه شوه چه احادیث د قرآن کریم نه زیاتی شے دے او هغه جدا مستقل د دین وضاحت کونکی دی.

خو بعض خلقو د رسول الله ﷺ د احادیثو هیڅ قدر اُونۀ پیژندلو. کله وائی چه احادیث ظنی دی او کله وائی چه حدیث د قرآن په مقابله کښې راشی نو حدیث به غورزوو. حال دا چه مونږ وایو: دا کوم حدیث دے چه د قرآن خلاف راغلے وی؟، صحیح حدیث هیڅ کله د قرآن کریم خلاف نۀ راځی، دا ډیره غلطه نظریه ده.

د الله د رسول خبرے څنګه د قرآن خلاف راشی؟، دا خو بیا د دین ګډوډوالے شو. کله ورته دا قاعده کیدی چه زیادت د خبر واحد په کتاب الله باندے جائز نۀ دے ځکه دے سره نسخ د قرآن کریم راځی او په خبر واحد باندے قرآن څنګه منسوخ کړے شی؟. دا یوه چټی او د احادیثو دبے احترامی کولو دپاره جوړه شوے قاعده ده. چه بعض احناف علماؤ ایخوستے ده او ددے په وجه ډیر احادیث د رسول الله ﷺ غورزولے شویدی. دے قاعدے ته هیڅ ضرورت نشته بلکه زیادت د خبر واحد په کتاب الله بالکل جائز دے. زیادت ته څوك نسخ نۀ وائی بلکه نسخ خو رفع د حکم سابق وی. یعنی منسوخ کیدل خو دیته وائی چه مخکنے حکم ختم شی او د هغے په ځائے بل حکم راشی. او په زیادت کښې خو مخکنے حکم هم باقی وی ورسره څه قید یا شرط زیات شی.

حاصل دا شو چه ددے ډیر مثالونه دی چه مستقل کتاب لیکلو ته ضرورت لری. خو لنډه دا چه د رسول الله ﷺ احادیثو ته رجوع کول پکار دی هغه چه د قرآن کریم کوم

تفسیر کوی بس هغه غوره کول پکار دی، هغه به اعلیٰ تفسیر وی۔

**فائده**: بیا کله به رسول الله ﷺ د یو آیت تفسیر اُوکړی نو بل تفسیر به پکښ جائز نهٔ وی او کله کله داسے وی چه رسول الله ﷺ به صرف د یو مثال بیانولو په شکل یو تفسیر اُوکړی او په هغے کښ به نفی د نورو تفاسیرو نهٔ وی لکه ددے مثال په سورة الفاتحه (غیر المغضوب علیهم ولا الضالین) کښ راځی چه نبی ﷺ فرمائی: ددے نه مراد یهود او نصاریٰ دی۔ نو پدے کښ عام علماء فرمائی چه د رسول الله ﷺ دا تفسیر په طریقه د مثال دے او دا معنیٰ نهٔ ده چه صرف یهود او نصاریٰ مراد دی او نور څوك نهٔ دی مراد۔ بلکه یهود او نصاریٰ اول مراد دی او بیا پدے کښ منافقان، کافران او روستو امت کښ چه کوم گمراهان راځی هغه ټول داخلیدے شی۔ لکه ددے خبرے تفصیل به خپل ځائے کښ راشی ان شاء الله تعالیٰ۔

بیا دا خبره واوره چه نبی ﷺ د هر آیت تفسیر نهٔ دے کړے چه مثلاً د الحمد تفسیرئے کړے وی چه د (الحمد) معنیٰ دا ده او د (لله) معنیٰ دا ده او د رب العالمین معنیٰ دا ده، یعنی د هر آیت تفسیرئے نهٔ دے کړے بلکه رسول الله ﷺ د احکامو تفسیر کړیدے او د بعض مشکلو ځایونو تفسیرئے کړیدے چه هغے باندے امت په خپل ذهن چلولو سره نشی پو هیدلے، په خپل عقل ئے نشی معلومولے۔ او باقی تفسیرئے امت ته پریخوستے دے چه تاسو ئے په خپل فکر، لغت د عربیٔ باندے په خپل تدبر هغه معلوم کړئ لکه قرآن کریم کښ هم داسے خبره راغلے ده: ﴿وَاَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡكَ الذِّکۡرَ لِتُبَیِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَیۡهِمۡ وَلَعَلَّهُمۡ یَتَفَكَّرُوۡنَ﴾ [النحل:٤٤] (ما تاته قرآن در اُولیږلو چه ته به ئے خلقو ته بیان کوے او خپله به هم دا خلق پکښ سوچ کوی) نو دلته الله تعالیٰ د عام قرآن کریم د تفسیر حواله د امت په تدبر باندے ورکړه ځکه چه دا د عربیٔ کتاب دے، نو په لغت د عربو کښ چه د یو آیت کومه معنیٰ راوتله نو بس هغه به مراده وی۔ ددے وجه نه قرآن کریم سړے په خپل عقل او تدبر سره استعمالولے شی لکه دا خبره به روستو اصولو کښ راشی ان شاء الله تعالیٰ۔ او ددے خبرے تفصیل په [التفسیر والمفسرون ٧/٢] کښ اُوگوره۔ ډیر دلائل ئے پدے خبره ذکر کړیدی چه نبی ﷺ د هر آیت تفسیر نهٔ دے کړے۔ او صحابه کرامو په هر آیت کښ رجوع رسول الله ﷺ ته نهٔ ده کړے بلکه کوم آیت چه به ورته د مقصد په لحاظ مشکل شو نو په هغے کښ به ئے رجوع اُوکړه۔

**۳- دريمه طريقه :**

[فَإِنْ لَمْ يَجِدْهُ فِي السُّنَّةِ رَجَعَ إِلَى أَقْوَالِ الصَّحَابَةِ] ۔

كه په سنت كښې ورته يو تفسير ملاؤ نشو نو بيا به د صحابه كرامو اقوالو ته رجوع أوكړي او د دوى اقوالو ته به ځكه رجوع كوى : [فَإِنَّهُمْ أَدْرَى بِكِتَابِ اللّٰهِ لِمَا شَاهَدُوْهُ مِنَ الْقَرَائِنِ وَالْأَحْوَالِ عِنْدَ نُزُوْلِهِ وَلِمَا اخْتَصُّوْا بِهِ مِنَ الْفَهْمِ التَّامِّ وَالْعِلْمِ الصَّحِيْحِ وَالْعَمَلِ الصَّالِحِ] [الاتقان ٢/٤٦٧] ۔(ځكه چه صحابه كرام په قرآن ډير ښه پوهيدل، ناشنا ناشنا علمونه الله تعالىٰ وركړى وو۔

وجه دا ده (۱) ځكه چه دوى د قرآن د نازليدو په وخت قرائن او احوال ليدلى وو) چه دا آيت كوم ځائے نازل شو او په كومه موقعه او د چا په باره كښې نازل شو۔ لهذا دوى سره به پوهه زياته وى۔ځكه چه يو مجلس كښې خبره أوشى نو د مجلس والا پرے د تولو نه زيات پوهيږى۔او دا خبره د تشريح محتاج نۀ ده۔

(۲) دويمه وجه : دوى له الله تعالىٰ صحيح فهم او پوهه او عقل وركړے وو او صحيح علم ئے وركړے وو او نيك عمل پكښې موجود وو) او دا قانون دے چه چا له الله تعالىٰ صحيح عقل او صحيح علم او عمل صالح وركړى نو هغه له الله تعالىٰ په قرآن كريم باندے بصيرت وركوى۔ د صحابه كرامو ذهنونه هم په اعلىٰ درجه كښې وو او علمونه ئے هم أوچت وو او عمل صالح ئے هم ډير وو۔ ددے وجه نه بس هغوى په قرآن ښه پوهيدل۔

(نوكومو اصولينو چه بعض صحابه كرامو ته غير فقيه وئيلى دى لكه انس بن مالك، عبد الله بن عمر، ابو هريره وغيره رضى الله عنهم – نو دا خبره ئے غلطه كړيده)۔

(۳) بله وجه دا ده چه د دوى د رسول الله ﷺ سره ډيره مينه وه او د كثرتِ محبت د وجه نه سړے د خپل محبوب په خبره ښه پوهيږى، د چا سره چه ډيره مينه زياته وى نو د هغه په گرانو عبارتونو او اشارو باندے به هم پوهيږے۔

(٤) او بل طرفته د قرآن او حديث سره ئے هم بے حده مينه وه ولے به نۀ وى چه دا ئے د كاميابئ راز گڼړلو نو د هغے ډيرا اهتمام به ئے كولو، د هغے غم ورسره وو، صحابه كرامو له چه الله تعالىٰ كوم علمونه وركړى وو نو عام امت د هغے نه عاجز دے۔ هغوى كوم تفسير نۀ دے ليكلے او څه كتاب ئے نشته نو ځكه مونږ ته داسے ښكاره كيږى (عياذاً بالله) چه گنے هغوى به په څه نۀ پوهيدل۔

ددے وجه نه على بن ابى طالب ﷺ به فرمايل : كه زه چرته په سورة الفاتحه باندے تفسير

اُولیکم نو یو اُوښ به ئے یو نۀ سی۔ او خپلے سینے ته به ئے اشاره کوله [اِنَّ هٰهُنَا عِلْمًا ] (دے ځائے کښې علم پروت دے) [يَا لَيْتَ لَوْ وَجَدْتُّ لَهٗ اَهْلَهٗ]۔ (ارمان چه ما د هغے اهل خلق موندلے) نو ما به ورته بیان کړے وے۔ [احياء علوم الدين ۱۲۹/۱]

○ سیدنا فاروق اعظم ﷺ سورة الفاتحه په دولس کاله کښې په تفسیر سره ختمه کړے وه (قرطبی) او سیدنا ابن عمرؓ په اته کاله کښې ددے تفسیر کړے وو۔(الموطأ لمالك)

داسے علوم ورته الله تعالیٰ ورنصیب کړی وو۔ ډیر خلق وائی مونږ په قرآن او حدیث نۀ پوهیږو، ځکه پرے نۀ پوهیږی چه څه غم ئے ورسره نۀ وی، په هدایه، کنز او نورو کتابونو باندے خو ښه پوهیږی ځکه چه د هغے غم او اهتمام ورسره وی۔ او همیشه دپاره اهتمام او غم انسان ته خبره آسانوی۔

ددے وجه نه امام حاکمؒ په مستدرك کښې وائی :

[اِنَّ تَفْسِيْرَ الصَّحَابِيِّ الَّذِيْ شَهِدَ الْوَحْيَ وَالتَّنْزِيْلَ لَهٗ حُكْمُ الْمَرْفُوْعِ]۔

(د هغه صحابی تفسیر چه وحی او د قرآن کریم د نزول موقعے ته حاضر وی نو هغه په حکم د مرفوع حدیث کښې وی) ۔

[لَاسِيَمَا عُلَمَائُهُمْ كَالْاَئِمَّةِ الْاَرْبَعَةِ]۔

(خاصکر په صحابه کرامو کښې چه کوم علماء دی لکه څلور خلفائے راشدین (ابوبکر، عمر، عثمان او علی رضوان الله علیهم اجمعین شو) د دوی تفسیر ته به اول رجوع کولے شی ، ځکه دوی له الله تعالیٰ په دین او په خپل کتاب باندے ډیر بصیرت ورکړے وو۔ دارنګه عبد الله بن عباس ﷺ، او عبد الله بن مسعود ﷺ شو۔ سیدنا عبد الله بن عباس ﷺ هغه صحابی دے چه رسول الله ﷺ ورته داسے دعا کړے وه : [اَللّٰهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ وَعَلِّمْهُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ ] [تهذيب الآثار للطبرى ۲۸۶/۵) مناهج المفسرين (۱/۱۰) (التفسير والمفسرون (۱۴/۲] (اے الله ! دۀ ته په دین پوهه ورکړه او د خپل کتاب او سنت علم ورکړه)

او په یو روایت کښې دی : [اَللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ التَّاوِيْلَ]

[مسند احمد، المعجم الكبير للطبرانى ۲۳۸/۱۰ - اضواء البيان ۲۰۰/۳] ۔

(اے الله ! دۀ ته د کتاب الله تفسیر زده کړه) نو الله تعالیٰ دا دعا د رسول الله ﷺ د ابن عباسؓ په باره کښې قبوله کړے وه چه هغه ته حبر الامة او ترجمان القرآن وئیلے شی۔ اعمشؒ د ابووائلؒ نه نقل کوی چه یوه ورځ علی بن ابی طالب ﷺ عبد الله بن عباس ﷺ په موسم د حج خلیفه مقرر کړو نو خلقو ته ئے په مِنیٰ کښې خطبه اُووئیله او په خطبه کښې ئے سورة

البقره- او يو روايت کښې دی سورة النور- اُولوستلو او دهغې داسې مزيدار تفسير ئې شروع کړو چه که هغه روميان، ترکيان او ديلم والا اَوريدلے وے نو اسلام به ئې راوړے وے.
[التفسير والمفسرون ٢/ ١٤]

عبد الله بن عباس ﷺ له دا فهم په قرآن او سنت ولے ورکړے شوے وو، ددے دوه درے اسباب دی د فائدے دپاره بيانولے شی.

(١) يو سبب خدمت د نبی ﷺ وو. چه يوه ورځ رسول الله ﷺ بهر ته وتلے وو، (قضائے حاجت ئې کولو) نو واپس چه راغلو، عبد الله بن عباس ورته لوټه ايخودے وه، تپوس ئې اُوکړو.

[مَنْ وَضَعَ هٰذَا] (دا چا ايخودے ده ؟) ميمونه رضی الله عنها جواب ورکړو چه ابن عباسؓ.
نو رسول الله ﷺ ورته دعا اُوکړه :
[اَللّٰهُمَّ فَقِّهْهُ فِی الدِّيْنِ وَعَلِّمْهُ التَّاوِيْلَ]
[بخاری ومسلم وغيره].

(اے الله په دين پو هه ورکړه او د خپل کتاب علم ورکړه) ددے نه يوه فائده دا معلومه شوه چه تفسير کښې نقل ضروری نهٔ دے بلکه خپل تدبر سره هم تفسير کول جائز دی کله چه د اصول الشرع او لغتِ عربی سره برابر وی)

دويمه فائده دا معلومه شوه چه د دين پو هه ډير اهم شے دے ځکه ورته رسول الله ﷺ د دنيا دعا اُونکړه بلکه د دين د فقاهت او د خپل کتاب د پو هے دعاء ئې ورته اُوکړه.

دريم دا چه خدمت د استاذانو، د مشرانو د سپين ګيرو، د اهل حقو دا سبب د ښه علم او ښه پو هے دے او الله سبحانه وتعالیٰ په دين باندے سړی له بصيرت هله ورکوی کله چه د خدمت ماده پکښې موجوده وی. ډير کرته د ډير کوشش نه د استاذ يوه دعا د سړی دپاره فائده منه وی، دغه شان د مور او پلار دعاء. او دا تجربه ده چه کوم خلق د استاذانو ښيرو وهلی دی او د استاذانو او علماؤ احترام پکښې نهٔ وی، بے ادبه وی نو هغوی الله تعالیٰ د خپل هدايت نه محروموی پاتے لا علم !.

(٢) دويم سبب : د ابن عباسؓ خپل اهتمام او کوشش وو. يوه ورځ ابن عباسؓ يو انصاریؓ ته اُووئيل : راځه چه دواړه علم زده کړو. هغه اُووئيل : مشران صحابه موجود دی، ما او تا نه به څوك د مسائلو تپوس اُوکړی ! ابن عباسؓ ځان له دعلم پسے ګرځيدو، يو ورځ د يو صحابی اُبی بن کعبؓ کور ته لاړو، بهر ناست وو هغه رااُوتلو، ورته ئې اُووئيل : ماته به دے

دروازه وهلے وے ! ابن عباسؓ ورته اُووئيل : مونږ خلقو له تکليف نهٔ ورکوو مونږ محتاج يو۔

لنډه دا چه ډير احاديث ئے راجمع کړل او خلقو ده ته توجه شروع کړه۔ مسجد نبوی کښے به ناست وو، نو دده هغه انصاریؓ ملګری به فرمائيل : [رَأْیُ ابْنُ عَبَّاسٍ اَفْقَهُ مِنِّیْ] (د ابن عباس رأيه زما نه ډيره حقه وه)۔ او ما اُووئيل چه رشتيا دا د بيت النبوة (د نبی د کورنئ) نه دے۔ نو لږه زمانه بعد دهٔ ته خلق محتاج شول۔ نو ددے نه دا فائده حاصله شوه چه دے وړو طالب العلمانو ته روستو زمانه کښ خلق محتاجه کيږی نو طالب العلم له پکار دی چه د شيطان دے وسوسه کښ رانشی چه وائی : مونږ نه خو څه شيخ القرآن او شيخ الحديث نشی جوړيدے نو بس سرسری علم اُوکړی يا ئے سر ته اُونهٔ رسوی او پريے ئے دی۔ دا اُوس چه کوم کشران طالبان خلقو ته سپك ښکاری همدا به خطيبان، امامان د دين او مفتيان او فيصله کونکی او داعيان د دين او د قرآن او حديث بيانونکی به وی او همدا عزتمند او قيمتی خلق دے۔ د دوی قدر پکار دے۔

(۳) دريم سبب : د مشرانو دعاء وه۔

نو بيا د ابن عباسؓ نه تفسيری روايات زيات نقل دی او ګويا کښ هغه د تفسيرونو اصل مرکز دے، اکثر تفاسير د هغه نه نقل کيږی۔ او د هغه بيا ښه ښه شاګردان دی، هغوی ته ئے نقل کړيدے لکه عکرمهؒ، مجاهد بن جبرؒ وغيره۔

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : [نِعْمَ تُرْجُمَانُ الْقُرْاٰنِ ابْنُ عَبَّاسٍ] ۔ (ښه ترجمان او مفسر د قرآن کريم ابن عباس دے) ۔

علی بن ابی طالب به د ابن عباس په تفسير باندے ثناء او صفت وئيلو۔ او دا به ئے فرمايل : [كَاَنَّمَا يَنْظُرُ اِلَى الْغَيْبِ مِنْ سِتْرٍ رَقِيْقٍ] (التفسير والمفسرون ۲/۱٤)

(ګويا کښ ابن عباس غيبو ته د نرئ پردے نه اخوا ګوری)۔

دارنګه عبد الله بن مسعود ﷺ په تفسير ښه پوهيدو هغه خپله فرمائی : [وَالَّذِیْ لَا اِلٰهَ غَيْرُهٗ مَا نَزَلَتْ آيَةٌ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ اِلَّا وَاَنَا اَعْلَمُ فِيْمَنْ نَزَلَتْ وَاَيْنَ نَزَلَتْ وَلَوْ اَعْلَمُ اَحَدًا اَعْلَمُ بِكِتَابِ اللّٰهِ مِنِّیْ تَنَالُهُ الْمَطَايَا لَاَتَيْتُهٗ] [بخاری، الاتقان ۲/٤۹٤ والبرهان ۲/۱۵۷) وشرح مقدمة التفسير لصالح بن عبد العزيز آل الشيخ)

(قسم په هغه الله چه د هغه نه سوا حقدار د بندګئ نشته، د الله تعالیٰ د کتاب نه يو آيت نهٔ دے نازل شوے مګر ما ته معلومه ده چه د چا په باره کښ نازل شويدے او په کوم ځائے

کښې نازل شویدې او که ما ته یوتن د الله تعالیٰ په کتاب باندې ما نه زیات پو هه معلوم وې او هغه ته سورلۍ رسیدلې شوې نو زهٔ ورته راتلم) او د هغه نه مې د تفسیر علم زده کولو.

ددې نه معلومه شوه چه که هر څومره علم تا له الله تعالیٰ درکړی او بیا هم تا نه څوك پو هه وی نو هغه ته به کینې او د هغه د علم نه به فائده اخلې او ځان به کامل نهٔ ګنړې. او که په آیتونو کښې درته کوم مشکلات راشی نو د مشرانو استاذانو نه تپوس کوه هغوی له الله تعالیٰ بصیرت ورکړې وی.

او د صحابه کرامو د قرآن د زده کولو ناشنا طریقه وه.

عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی : [كَانَ الرَّجُلُ مِنَّا إِذَا تَعَلَّمَ عَشْرَ آيَاتٍ لَمْ يُجَاوِزْهُنَّ حَتّٰى يَعْرِفَ مَعَانِيَهُنَّ وَالْعَمَلَ بِهِنَّ] [المفسرون (٢/٢٢) البرهان فی علوم القرآن للزرکشی (١٥٧/٢) وتاریخ القرآن لمحمد طاهر الکردی [٢٠١/١] .

یو تن به په مونږ (صحابه کرامو) کښې داسې وو چه کله به ئې لس آیتونه زده کړل نو د هغې نه به نهٔ تیریدو تردې چه د هغې معنی ګانې به ئې زده کړې او په هغې به ئې عمل زده کړو) چه مثلًا دا آیت مونږ ته څه راښائی او د څه خبرې دعوت راکوی. او دا ډیره عجیبه طریقه ده چه طالب له پکار دی چه صرف د تفسیر زده کولو سوچ اُونکړی بلکه د هغې نه هدایت واخلی او عمل پرې اُوکړی. لکه زمونږ د تفسیر هم دا خصوصیت دې چه انسان ته هدایت ورپه ګوته کوی.

ابو عبد الرحمن السلمی رحمه الله فرمائی :

[حَدَّثَنَا الَّذِينَ يَقْرَأُونَنَا الْقُرْآنَ اَنَّهُمْ كَانُوا يَسْتَقْرِأُونَ مِنَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم وَكَانُوا اِذَا تَعَلَّمُوا عَشْرَ آيَاتٍ لَمْ يَخْلُفُوهَا حَتّٰى يَعْمَلُوا بِمَا فِيهَا مِنَ الْعَمَلِ فَتَعَلَّمْنَا الْقُرْآنَ وَالْعَمَلَ جَمِيعًا]

[تاریخ القرآن للکردی ٢٠١/١) الاتقان فی علوم القرآن ٦٨/٢]

(مونږ ته بیان کړیدی هغه صحابه کرامو چه مونږ ته ئې قرآن کریم زده کړیدې چه دوی به د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه قرآن کریم وئیلو او د هغوی طریقه دا وه چه لس آیتونه به ئې زده کړل نو د هغې نه به نهٔ تیریدل تردې چه ځان به ئې پرې پو هه کړو او چه په هغې کښې به کوم عمل موجود وو هغه به ئې هم عمل کښې راوستو). ددې وجه نه بعض خلق وائی چه په یو روایت کښې راغلی دی جندب بن عبد الله رضي الله عنه فرمائی : [فَتَعَلَّمْنَا الْإِيمَانَ قَبْلَ اَنْ نَتَعَلَّمَ الْقُرْآنَ فَازْدَدْنَا بِهٖ اِيمَانًا] [سنن ابن ماجه بسند صحیح]

(مونږ ایمان زده کړو مخکښې د قرآن زده کولو نه نو په قرآن زده کولو سره بیا زمونږ ایمان زیات شو) ددې روایت نه بعض خلق غلطه فائده اخلي چه وائي: تاسو خلقو ته ایمان نهٔ دې زده کړې او ترجمې ورته کوئ. دا خبره من وجه صحیح او ومن وجه غلطه ده. پدې وجه غلطه ده چه ایمان به انسان د کوم ځائے نه زده کوي، ایمان خو د همدې قرآن نه زده کیږي، د قرآن نه علاوه به انسان د کوم ځائے نه ایمان زده کړي. او د صحابه کرامو غرض دا وو چه مونږ اجمالي ایمان زده کړو چه الله، رسول، قرآن مو اُومنلو نو بیا مو د قرآن په زده کړه سره ایمان زیات شو. نو دا قانون دے چه اول به اجمالي ایمان راوړے چه مثلًا قرآن کریم د الله کتاب دے نو ددې ایمان نه روستو به ددې تفصیل د همدې قرآن نه زده کوې بل ځائے د تفصیل نشته. نو بس په قرآن عمل شروع کړه نو ایمان به دِې زیاتیږي او کله چه د انسان په الله تعالیٰ، رسول الله ﷺ او قرآن او قیامت باندې ایمان نهٔ وي نو که هغه زر کرته قرآن اُووائي نو هیڅ فائده نهٔ ورکوي، فائده هله ورکوي چه اول کښې اجمالي ایمان راوړي پدې یره به قرآن ته کیني چه ما پسې قیامت راروان دے او الله تعالیٰ به رانه تپوس کوي چه زما د کتاب نه دِې ځان ولې نهٔ دې خبر کړے؟ نو دغسې انسان د قرآن کریم نه فِائده اخستې شي. لهذا مطلب دا شو چه اجمالي ایمان مقدم دے په علم د قرآن باندې او بیا تفصیلي ایمان بغیر د قرآن نه نهٔ زده کیږي.

ددې مخکښې تفصیل نه دا خبره واضحه شوه چه صحابه کرام په قرآن کریم ښه عالمان وو چه په هر لس آیتونو کښې به هغوی علم او عمل هر څه زده کړي وو نو هغوی چه کوم تفسیر کوي، هغې ته به رجوع کیدې شي.

بیا که په یو تفسیر د صحابه کرامو اتفاق وي نو مفسرین کرام همه اختیاروي او د هغې خلاف بل څه تفسیر بیانول روا نهٔ دي، البته که د یو آیت په تفسیر کښې د صحابه کرامو اقوال مختلف وي نو د روستو زمانې مفسرین د نورو دلائلو په رنړا کښې ګوري چه کوم یو تفسیر ته ترجیح ورکړې شي؟ نو کوم چه د لغت او د اصول د شرع سره زیات موافقت لري، هغې ته به ترجیح ورکولے شي او خاصکر چه په صحیح سند سره هم ثابت وي.

**فائده:** ددې وجه نه د اهل السنة والجماعة دا ضروري عقیده ده چه [فَهُمُ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ عَلٰى فَهُمِ السَّلَفِ] (د قرآن او حدیث فهم او پوهه به د سلفو یعني د صحابه کرامو د فهم مطابق کولے شي). دا به په سورة النساء (١١٥) کښې راشي چه د رسول الله ﷺ تابعداري به هم کوي او د مؤمنانو به هم کوئ لکه: ﴿وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى

وَيَتَّبِعُ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى﴾ دے آیت کښې همدغه مقصد دے۔ نو مطلب دا شو چه د قرآن به داسے معنیٰ نکوی چه د سلفو فهم هغې ته نۀ وی رسیدلے او د حدیث به داسے معنیٰ نۀ کوی چه سلفو هغه شان معنیٰ نۀ وی کړی۔ ستا د فهم مطابق معنیٰ به نۀ کوے او ددے په قرآن او حدیث کښې ډیرمثالونه موجود دی لکه مثلًا : آیت کښې دی : ﴿ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَا اَوْ دَيْنٍ ﴾ (د مړی د طرف نـه بـه اول وصیت نافذ کولے شی بیا به قرض) ظاهری فهم خو زمونږ همدغه دے لیکن علی بن ابی طالب ﷛ فرمائی : اول به قرض ادا کولے شی بیا به وصیت نافذ کولے شی ځکه چه رسول الله ﷺ داسے کړیدی۔نو قرآن کښې ئے وصیت ولے مخکښې ذکر کړو؟ ددے حکمة دا دے چه د قرض طلبگار شته او د وصیت طلبگار نشته نو د هغې د اهمیت دپاره وصیت مقدم شو۔

که پدے اصولو باندے عمل اُونشی نو بیا د انسان نه خارجی تکفیری جوړیږی لکه د بعض خوارجو دا طریقه وه چه په گناه باندے به ئے سړی ته کافر وئیلو۔ او ان الحکم الا لله نعرے به ئے وهلے او مطلب د آیت به ئے غلط بیانولو۔ او ددے بے شماره مثالونه په بیان د تفسیر کښې راځی۔

(۳) **دریمه طریقه** : (اقوال التابعین)

[ثُمَّ اِذَا اَعْيَاكَ ذٰلِكَ فَارْجِعْ اِلٰى اَقْوَالِ التَّابِعِيْنَ لَاسِيَّمَا مُجَاهِدُ بْنُ جَبْرٍ فَاِنَّهٗ كَانَ آيَةً فِى التَّفْسِيْرِ]

(بیا که په مخکنو طریقو کښې تفسیر نۀ ملاویدو نو د تابعینو اقوالو ته رجوع اُوکړه خاصکر د مجاهد رحمه الله تفسیر ځکه چه دا په تفسیر کښې یوه ناشنا نخه وه) ځکه چه د مجاهدؒ تفسیرونه ډیر غوره دی۔ وجه دا ده چه مجاهدؒ خپله فرمائی : [عَرَضْتُ الْمُصْحَفَ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ ثَلَاثِيْنَ مَرَّةً، اَقِفُ عِنْدَ كُلِّ آيَةٍ وَاَسْاَلُهٗ عَنْهَا] (ما عبد الله بن عباس باندے قرآن کریم دیرش کرته پیش کړو، د هر آیت سره به اُودریدم او د هغې په باره کښې به مے ترے تپوس کولو) چه د آیت څه معنیٰ ده او څه باره کښې نازل دے او څه حکم ئے دے۔

سفیان الثوری رحمه الله وئیلی دی : [اِذَا جَاءَكَ التَّفْسِيْرُ عَنْ مُجَاهِدٍ فَحَسْبُكَ بِهٖ]

[الاتقان، والبرهان،ومباحث فی علوم القرآن]

(کله چه تا ته د مجاهد تفسیر راورسیدو نو بس دغه دے کافی دے)۔ دغه شان د عکرمہؒ، سعید بن المسیبؒ، عطاءؒ، حسن بصریؒ او مسروقؒ تفسیر ته به رجوع کولے شی۔

**مسئله** : آیا د صحابه کرامو او تابعینو قول حجت دے په باب د تفسیر کښې او که نۀ ؟ نو دا قانون زده کړه چه که په یو تفسیر باندے صحابه کرامو یا تابعینو اجماع کړی وی نو

دا بیا حجت دے او کہ چرے هغوی نه اجماع په یو تفسیر نقل نهٔ وی نو بیا دا د تائید په درجه کښې وی او مستقل دلیل نهٔ وی چه د هغے خلاف کول ناروا وی۔ اگرکه د صحابه کرامو تفسیر ته زړه ډیرمائله کیږی د تابعینو په تفسیر باندے ځکه چه په هغے کښې احتمال شته چه هغوی به د نبی ﷺ نه اَوریدلے وی یا به ئے د خپل ملگری صحابیؓ نه اوریدلے وی چه هغه به د نبی ﷺ نه اَوریدلے وی۔ دارنگه صحابی د اهل الکتاب نه نقل کم کوی او تابعین ئے ډیر کوی نو زړه هغے ته ډیر مائل کیږی۔ او دا بیا اصولی مسئله ده چه آیا اقوال د صحابه کرامو حجت دے او که نهٔ؟ هغه به خپل ځائے کښې بیانیږی۔

**تکمیل** : دا تفسیر د صحابه کرامو او تابعینو به مونږ کوم ځائے کښې مونده کوو؟۔ نو ددے مرکز تفسیر د ابن جریر الطبریؒ دے، دا په سند سره د صحابه کرام او تابعینو نه تفسیر نقل کوی او دا په اسلام کښې اولنے تفسیر لیکلے شویدے او بهترین تفسیر دے او رو ستو تفاسیر بیا ددهٔ نه نقل کوی۔ دویم تفسیر ابن کثیر رحمه الله دے چه دا د تفسیر ابن جریرؒ خلاصه ده او غالباً اخذ ئے د ابن جریرؒ نه کړیدے۔ ۳- دریم تفسیر الدر المنثور د علامه سیوطی دے، دا هم د آیت کریمه متعلق چه کوم اثر د صحابه کرامو او تابعینو نه نقل وی هغه راوړی، دارنگه د متقدمینو په تفاسیرو کښې تفسیر د ابن مردویه، تفسیر ابن ابی حاتم، تفسیر د ابن ابی شیبه، تفسیر د عبد الرزاق الصنعانی، تفسیر د ابن المنذر، تفسیر د مجاهد، تفسیر د سفیان الثوری، تفسیر القطان دے که دا ټول نهٔ ملاویږی نو بیا ددے ټولو خلاصه تفسیر ابن کثیر او تفسیر الدر المنثور کښې شته۔ او د بعض تفاسیرو د مصنفینو او کتابونو تفصیلی معلومات په آخر ددے کتاب کښې اُوګوره۔

۵- **پنځمه طریقه** : [تَفۡسِیۡرُ الۡقُرۡآنِ بِاللُّغَةِ الۡعَرَبِیَّةِ]

[وَاِذَا اخۡتَلَفُوۡا فَیَرۡجِعُ فِیۡ ذٰلِكَ اِلٰی لُغَةِ الۡقُرۡآنِ اَوِ السُّنَّةِ اَوۡ عُمُوۡمِ لُغَةِ الۡعَرَبِ]۔

(کله چه د صحابه کرام او تابعینو په تفسیر د یو آیت کښې اختلاف راشی نو پدے کښې به رجوع کولے شی لغة د قرآن او سنت ته او یا عام لغت د عربو ته)

ځکه چه قرآن کریم په لغت د عربو نازل دے، نو په لغت عربی کښې چه کومه معنیٰ د لفظ وه بس هغه به مراد وی۔

لیکن دے سره دا خبره زده کړه چه علامه سیوطیؒ په الاتقان کښې لیکلے ده چه بعض خلق پدے کښې خطائی کوی چه د قرآن کریم داسے تفسیر کوی چه هغه خو د لغت عربی مطابق وی او د لغت معنیٰ وی لیکن په هغے کښې نظر نهٔ کوی متکلم بالقرآن ته او نهٔ

هغه چا ته چه په هغه قرآن نازل شويدے او نۀ حالت د مخاطبينو ته بلکه صرف د لفظ نه تاويږي راتاويږي او حال دا چه د يو آيت به داسے معنیٰ لغوي کولے شي چه هغه د حالاتو د مخاطبينو او د حالت د نبي ﷺ او د الله تعالىٰ د مراد سره زيات موافقت لري۔

نو حاصل دا شو چه په لغت عربي کښې کومه معنیٰ د آيت وه بس همغه به مراد وي لکه د الحمد لله رب العالمين چه په لغتِ عربي کښې څه معنیٰ وي بس همدغه به مراده وي، او ددے ډير مثالونه دي لکه لفظ د جاموس (ميښه) په لغت عربي کښې د څا دپاره استعماليږي بس هغه به شرعاً هم مراد وي او جاموس په لغت عربي کښې يوه نوعه د بقر (غوا) ده۔ لهذا دا به د غوا په حکم کښې وي۔ يا په قرآن اوحديث کښې لفظ د خف يا جورب راشي نو په لغت کښې خف (موزے ته وئيلے شي) او جورب جورابے ته وئيلے شي نو بس همدا مطلق به مراد وي پدے کښې به دا قيدونه نشي لګولے چه پيره به وي او جلد به ورته اچولے شوے وي يا به د څرمنے نه جوړے وي او درے ورځے به پکښې مزل کيدے شي او پدے طريقه ئے مونږ ته خبره راسپارلے ده چه لغتِ عربي کښې کومه معنی او مطلب پروت وي نو بس هغه به د الله تعالىٰ هم مراد وي په هغے باندے عمل کولو سره به د انسان غاړه آزاديږي۔

او داسے نور مثالونه واخله۔

**٦ - طريقه : [اَلتَّدَبُّرُ وَالْاِسْتِنْبَاطُ]**

شپږمه طريقه د تفسير دا ده چه د قرآن کريم په سياق او سباق او روندش د کلام کښې او موضوع د سورتونو کښې او د آيتونو په مناسبتونو کښې انسان تدبر او سوچ اُوکړي او بيا د هغے نه رازونه د الله تعالىٰ د کتاب معلوم کړي او پدے وجه الله تعالىٰ په تدبر، تفکر او تعقل کولو باندے حکم کړيدے لکه چه فرمائي :

﴿لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ﴾ ﴿كِتٰبٌ اَنْزَلْنَاهُ اِلَيْكَ مُبَارَكٌ لِيَدَّبَّرُوْا آيَاتِهٖ﴾ (ص:۲۹) ﴿اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْآنَ﴾ (محمد، والنساء) ﴿وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ وَمَا يَعْقِلُهَا اِلَّا الْعَالِمُوْنَ﴾ (العنکبوت:۴۳) ﴿لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ﴾ (النساء:۸۳)

او دا هغه شے دے چه نبي ﷺ عبد الله بن عباس رضي الله عنه ته پدے سره دعا کړے وه : [اَللّٰهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ وَعَلِّمْهُ التَّاوِيْلَ] لکه مخکښې ذکر شو۔

او علي بن ابي طالب رضي الله عنه دے ته اشاره کړيده پدے قول خپل سره : [اِلَّافَهْمًا اُوْتِيَهٗ رَجُلٌ فِيْ

كِتَابِ اللّٰهِ] هغه ته اُووئيلے شو تاسو ته رسول الله ﷺ څه وصيت كړے وو؟ نو هغه اُووئيل مونږ سره يو دا قرآن دے پدے بأندے ئے راته وصيت كړيدے او نور هيڅ نشته۔
او بل هغه پوهه ده چه يو سړی ته ئے الله تعالیٰ په خپل كتاب كښ وركړې۔ اشاره كوی چه زه چه دا خبرے بيانوم نو دا د الله تعالیٰ د كتاب فهم او استنباط دے۔ او پدے تدبر سره په انسان باندے د الله تعالیٰ د كتاب رازونه راكولاويږی او پدے سره د مفسرينو مراتب د يو بل نه جدا كيږی، د چا تدبر او فكر چه څُخت او زيات وی نو هغه ته الله تعالیٰ ډير علوم ورنصيب كوی۔ نو د قرآن كريم نكتے او رازونه يو داسے سمندر دے چه هيڅ حد نۀ لری۔
چا ته چه الله تعالیٰ په اسلامی علومو كښ څه بصيرت وركړے وی او د عربيت په اصولو او قواعدو باندے ئے عبور او مَلكه وی نو هغه چه څومره غور او فكر كوی هغومره ورته مخے ته نوی نوی رازونه او نكتے راځی لكه چه مفسرين كرام د خپل خپل تدبر نتيجے هم په خپلو تفسيرونو كښ بيانوی ليكن دغه رازونه او نكتے تر هغه وخت پورے د قبلولو لائق وی چه د تير شوو ماخذونو او طريقو د تفسير سره ئے ټكراؤ نۀ وی نو كه څوك د قرآن كريم په تفسير كښ داسے نكته يا اجتهاد بيان كړی چه د قرآن او سنت، اجماع او لغت يا د صحابه كرامو او تابعينو نه خلاف وی يا د نورو شرعی اصولو سره ټكراؤ راځی نو د هغے هيڅ اعتبار نشته، څنے صوفيانو په تفسير كښ داسے قسم رازونه او نكتے بيان كړيدی، چه هغه د امت محققين علماؤ رد كړيدی او هيڅ اعتبارئے ورله ندے وركړے ځكه چه دا ښكاره خبره ده چه د قرآن او سنت او د شريعت د بنيادی اصولو نه خلاف د چا شخصی او ذاتی رايه هيڅ حيثيت نۀ لری۔ [الاتقان فی علوم القرآن ٢/١٨٤]

## ٣- البحث الثالث : الفرق بين التفسير والتاويل :

### دريم بحث : د تفسير او تاويل ترمينځ فرق

په عام كتابونو او تفاسيرو كښ دا دوه الفاظ زيات استعماليږی چه ددے آيت تفسير دا دے او تاويل دا دے۔ نو ددے دواړو څه فرق دے ؟ ددے پيژندلو كښ هم فائده ده۔
تفسير ماخوذ دے د فَسْر نه او فَسْر كشف (ښكاره كولو) او وضاحت ته وئيلے شی۔ او تفسير ته تفسير ځكه وائی چه پدے كښ هم د آيت معنیٰ او مطلب او رازونه واضح او ښكاره كولے شی او د هغے نه پرده لرے كولے شی۔

**اصطلاحاً** : (١) [اَلتَّفۡسِيۡرُ : مَا كَانَ عَنۡ طَرِيۡقِ النَّقۡلِ وَالتَّاوِيۡلُ مَا كَانَ عَنِ اجۡتِهَادٍ] تفسير هغه ته وئيلے شي چه په طريقه د نقل باندے وي او تاويل هغے ته وائي چه د اجتهاد نه وي يعني تفسير هغه دے چه معنیٰ د يو آيت يا حديث په طريقه د نقل ثابته وي، د نبي كريم ﷺ يا د صحابي يا تابعي وغيره مشرانو نه نقل وي. او تفسير هغه دے چه هغه په اجتهاد سره ثابته وي، په آيت كښ د سوچ او فكر كولو نه بعد مستنبطه شوي وي. دا فرق اغلبي دے او هميشه دپاره نهٔ دے ځكه چه كله نا كله تفسير هغے ته هم وئيلے شي چه په طريقه د نقل نهٔ وي.

لكه تفسير الخازن (١/ ١٠–١١) كښ اُوګوره.

بيا د تاويل څلور معاني دي (١) په معنیٰ د حقيقة سره لكه سورة الاعراف (٥٣) كښ دي : ﴿هَلۡ يَنۡظُرُوۡنَ اِلَّا تَاۡوِيۡلَهٗ يَوۡمَ يَاۡتِيۡ تَاۡوِيۡلُهٗ يَقُوۡلُ الَّذِيۡنَ نَسُوۡهُ﴾ (دوى نهٔ ګوري مګر تاويل د قرآن) يعني د حقيقت د قرآن په انتظار كښ دي. او حديث د عائشه كښ دي : [يَتَأَوَّلُ الۡقُرۡآنَ] (يعني رسول الله ﷺ به په ركوع او سجده كښ سبحانك اللهم ربنا وبحمد اللهم اغفر لي لوستلو ځكه چه عمل به ئے كولو په حقيقت د قرآن چه هغه دا آيت دے ﴿فَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ وَاسۡتَغۡفِرۡهُ اِنَّهٗ كَانَ تَوَّابًا﴾ (يعني د الله تعالىٰ تسبيحات او حمدونه وايه).

(رواه البخاري).

**٢- دويمه معنیٰ** : [صَرۡفُ اللَّفۡظِ عَنۡ ظَاهِرِهٖ لِشُبۡهَةٍ عَرَضَتۡ لَهٗ كَتَأۡوِيۡلِ اَهۡلِ الۡبِدَعِ فِي الصِّفَاتِ وَالۡاَحۡكَامِ] (يو لفظ د خپل ظاهر نه اړول (پريخودل) د وجه د يوے شبهے نه چه ورته راپيښه شويده لكه تاويل د مبتدعينو شو په باب د صفاتو د الله تعالىٰ او احكامو كښ) او دا تاويل ناجائز دے او په قرآن او حديث كښ ئے بدى راغلے ده. ددے يو مثال دا دے آيت كښ دي : ﴿اِسۡتَوٰى عَلَى الۡعَرۡشِ﴾ (الله تعالىٰ په عرش باندے استواء (برابرتيا) اُوكړه) نو دوى داسے تاويل كوى (اِسۡتَوۡلٰى عَلَى الۡعَرۡشِ) (يعني الله تعالىٰ قدرت حاصل كړو په عرش).

دوى دا تاويل ولے كوى ځكه چه د دوى مخے ته يوه شبهه راغلے ده، چه كه مونږ الله تعالىٰ په عرش باندے بره اُوګنړو نو بيا به جهت (يعني طرف) ثابت شي. او د چا دپاره چه جهت وي نو هغه جسم وي او هر جسم مركب وي او هر مركب حادث وي ځكه چه مركب خپل اجزاء تركيبيه ؤ ته محتاج وي. او محتاج خو حادث وي او قديم نشي كيدلے نو پدے باطله شبهه سره ئے د الله تعالىٰ د صفت تاويل شروع كړو او آيت ئے د خپل ظاهر نه واړولو. حال

دا چه دا شبهه غلطه ده ځکه چه دوی الله تعالیٰ په خپل ځان باندے قیاس کړیدے۔ حال دا چه الله تعالیٰ خپل ځان دپاره استواء ثابته کړیده نو بس ښنګه چه د هغه د شان مناسبه وی بس همغه شان استواء به د هغه دپاره منلے شی۔ او هیڅ جسمیت نهٔ لازمیږی۔

نو دا تاویل په منزله د تحریف دے۔دارنګه (ید الله) نه مراد قدرت اخلی ځکه دا شبهه ورته په زړه کښ راغلے ده چه که لاس معنیٰ ئے واخلو نو لاس خو د رګونو او وینو او پلو او هډوکو نه مرکب وی او مرکب خو محتاج وی خپلو اجزاؤ ته نو الله تعالیٰ به محتاج شی او حال دا چه الله تعالیٰ خو غنی ذات دے نو دا شبهه ئے هم غلطه ده۔ وجه دا ده چه یو ستا لاس دے او بل د الله تعالیٰ لاس دے دواړو کښ فرق دے۔ ستا لاس محتاج دے او د الله تعالیٰ لاس کښ هیڅ حاجت نشته بلکه ﴿ بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ﴾ (المائدة:٦٤) [يَدُ اللّٰهِ مَلْيءٌ سَحَّاءٌ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ] الحديث [متفق عليه] ۔دغه شان الله تعالیٰ ځانله محبت، رضا، غضب ثابت کړیدی او متکلمین د هغے تاویلات کوی۔ دغه شان په احکام شرعیه ؤ کښ هم تاویلات کوی لکه په باب د طلاقو، نکاحونو، رضاعتونو کښ غلط غلط تاویلونه خلق کوی او ظاهری معانی پریدی او غیر ظاهر معنیٰ اخلی د یوے شبهے د وجه نه۔

**۳- دریمه معنیٰ** : [صَرْفُ اللَّفْظِ عَنْ ظَاهِرِهٖ لِدَلِيْلٍ عَرَضَ لَهٗ وَهُوَ التَّاوِيْلُ الصَّحِيْحُ ، هُوَ تَاوِيْلُ اَهْلِ الْعِلْمِ] (یو لفظ د ظاهر نه اړول د وجه د یو دلیل نه چه د هغه مخے ته راغلے وی) یعنی د دلیل په بنا باندے د قرآن او حدیث ظاهری معنیٰ پریخودل وی۔ او دا صحیح تاویل دے او دا د صحیح علماؤ تاویل دے۔لکه قرآن کریم کښ دی : ﴿ وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيْلَهٗ إِلَّا اللّٰهُ وَالرَّاسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ﴾ [آلعمران:۷]۔

(یعنی نهٔ پوهیږی په تاویل د متشابهاتو مګر الله تعالیٰ او هغه علماء چه راسخین فی العلم دی) [فَاِنَّ الرَّاسِخِيْنَ يَرُدُّوْنَ الْمُتَشَابِهَاتِ اِلَى الْمُحْكَمَاتِ بِالدَّلِيْلِ] ۔ (ځکه راسخین علماء متشابهات محکماتو ته راړوی په دلیل سره)۔

لکه ددے مثالونه به په دغه آیت د سورة آلعمران کښ راځی۔

یو مثال ئے دا دے چه قرآن کښ دی : ﴿ اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الْاَرْضِ﴾ [البقرة :۲٦۷] (نو ظاهری معنیٰ دا ده چه هر شے چه د زمکے نه راوځی نو بس هغے کښ به زکوٰة لازم وی که وریشے وی او که غنم او جوار وی او که لرګی او درمے وی او که سبزی وی او که هر بوټے وی، او لړ وی او که ډیر۔

لیکن ډیر علماء ربانیین ددے (مما اخرجنا لکم من الارض) نه صرف څلور څیزونه مراد کوی

چه غنم، وریشے، او کجور او انګور دی)

دوی دا آیت خاص کوی ددے څلورو څیزونو پورے او آیت د ظاهر نه اړوی ځکه چه دوی وائی مونږ سره پدے باره کښ اُوه (۷) احادیث دی او د قرآن کریم نور اشارات دی نو دا تاویل صحیح او حق دے۔ او د اهل زیغو(د چا په زړه کښ چه کوږ والے وی) طریقه دا ده چه د یو تنظیم یا مذهب او پارټی د وجه نه په قرآن او حدیث کښ ټکراؤ پیدا کوی او بیا د خپل مزاج مطابق معنیٰ کوی۔

**٤- معنیٰ** : تاویل په معنیٰ د تفسیر سره دے یعنی تاویل او تفسیر یو شے دے لکه دا اصطلاح د ابن جریرؒ او قاسمیؒ وغیره علماؤ ده چه هغوی ځائے په ځائے وائی : [تَاوِيْلُ قَوْلِهٖ تَعَالٰى كَذَا] نو دا درے واړه معانی د تاویل صحیح دی۔ او په دویمه معنیٰ باندے تاویل کول صحیح نهٔ دی۔

## ٤- البحث الرابع : بحث إعمال الرأى فى القرآن :

### [ څلورم بحث : په قرآن کښ رائے استعمالول ]

د مخکښی بحث د متعلقاتو نه دا خبره هم ده چه په قرآن کریم کښ رایه استعمالول څنګه دی ؟ یعنی په خپله رایه او عقل سره د یو آیت تفسیر او معنیٰ کول څنګه دی ؟ نو ددے تشریح دا ده چه په روایتونو او آثارو کښ ددے بدی هم راغلے ده او صفت ئے هم راغلے دے۔ نو ددے دواړو تطبیق به بیانیږی ۔ اول ئے بدی اُوګوره ! :

١- سیدنا ابوبکر صدیق ﷛ نه چا تپوس اُوکړو چه د ﴿ وَفَاكِهَةً وَّاَبًّا﴾ کښ د (اَبًا) څه تفسیر دے؟ ۔ (ددے معنیٰ هغه له ورتلله ځکه چه دا عربی لفظ دے په معنیٰ د ګیاه ،وره) لیکن د سائل غرض دا وو چه ددے تعیین راته اُوکړه چه دا کومه ګیاه مراد ده؟ نو ابوبکرصدیق اُوفرمایل : [اَىُّ سَمَاءٍ تُظِلُّنِىْ وَاَىُّ اَرْضٍ تُقِلُّنِىْ اِذَا قُلْتُ فِىْ كِتَابِ اللّٰهِ مَا لَا اَعْلَمُ] (کوم آسمان به په ما سورے اُوکړی او کومه زمکه به ما اُوچت کړی کله چه زه د الله په کتاب کښ هغه خبره اُوکړم چه ما ته د هغے علم نهٔ وی)۔

دا وو د صحابه کرامو د زړونو یره چه د الله تعالیٰ نه دومره یریدل او څومره چه زړونه سختیږی نو انسان په قرآن کریم کښ په زړورتیا سره خبرے کوی او هیڅ پرواه ئے نهٔ وی۔

٢- دارنګه د هغه نه د کلاله متعلق تپوس اُوشو چه د کلاله څه تفسیر دے؟کوم چه په

سورة النساء کښې راغلې دے۔ نو هغه جواب اُوکړو : [ أَقُوْلُ فِيْهِ بِرَأْيِ فَإِنْ كَانَ صَوَاباً فَمِنَ اللّٰهِ وَإِنْ كَانَ خَطَاءً فَمِنِّيْ وَمِنَ الشَّيْطَانِ ] (الدارمی۲/۲٦٥) والضعيفة : [٤٦٥٣]

(زه دے بـاره کښې خپله رايه ورکوم که حقه وی نو د الله تعالیٰ د طرف نه به وی او که خطاء وی نـو زمـا او د شيـطـان د طرف نه به وی) نو اُوګوره مخکښې وائی زه د الله تعالیٰ په کتاب کښې خبرے نۀ کوم او دلته ئے د کلاله جواب ورکړيدے۔

○ دارنګه حديث کښې دی : [مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهٖ فَأَصَابَ فَقَدْ اَخْطَأَ]
(ابوداود والنسائی والترمذی) ۔

(چا چه قرآن کښې رايه استعمال کړه او حق ته هم اُورسيدو نو دا بيا هم خطاء دے)۔

په بل روايت کښې دی : [وَمَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهٖ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهٗ مِنَ النَّارِ ] (الترمذی)۔ (چا چه په قرآن کريم کښې په خپله رايه خبرے اُوکړے نو ځان له دِے په اُور کښې ځائے تيار کړی)

نـو ددے روايتـونـو نـه هـم د رائے د استعمالولو بدی معلوميږی۔ او کله د رائے فضيلتونه راځی لکه د ابن عباسؓ په باره کښې ئے فرمائيلی وو : [اَللّٰهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ وَعَلِّمْهُ الْحِكْمَةَ] (اے الله ! دۀ حـکـمـت ورزده کـړه) نـو پـه دين پوهه او حکمت خو څه نوی احکام په هغه نۀ نـازليـدل بـلکه ددے نه مراد خپل عقل او رائے استعمالول دی۔ دارنګه الله تعالیٰ په تدبر او فـکـر او تـعـقـل باندے حکم کړيدے او بدی ئے بيان کړيده د هغه چا چه تدبر نۀ کوی نو که چرتـه رايـه استـعـمـالـول بند شی نو بيا د تدبر او فکر کولو څه معنیٰ جوړيږی؟۔ نو اُوس ددے تطبيق دا دے چه :

## رائے په دوه قسمه ده

۱ -[اَحَدُهُمَا مَا كَانَ جَارِيًا عَلٰى مُوَافَقَةِ كَلَامِ الْعَرَبِ وَمُوَافَقَةِ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ]۔

(يـوه هـغـه رائے ده چه د عربو د کلام سره برابره وی او دغه شان د قرآن او سنت سره برابره وی) يعنی د قرآن او سنت د اصولو سره موافقه وی۔ [فَهٰذَا لَا يَجُوْزُ اِهْمَالُهٗ لِعَالِمٍ] نو عالم به ضرور داسے رايه استعمالوی او نۀ به ئے ترك کوی۔ او ددے يو څو وجوهات دی :

۱ - اوله وجه : [اِنَّ الْكِتَابَ لَابُدَّ مِنَ الْقَوْلِ فِيْهِ بِبَيَانِ مَعْنًى وَاسْتِنْبَاطِ حُكْمٍ وَتَفْسِيْرِ لَفْظٍ وَفَهْمِ مُرَادٍ وَلَمْ يَأْتِ جَمِيْعُ ذٰلِكَ عَمَّنْ تَقَدَّمَ، فَلَابُدَّ مِنَ الْقَوْلِ بِمَا يَلِيْقُ فِيْهِ]

(يـعنی قرآن کريم کښې خو خبرے خامخا ضروری دی ځکه چه يا به د يو معنیٰ بيان کوی يـا بـه يو حکم مستنبط کوی، يا به د يو لفظ تفسير کول پکار وی او په مراد باندے به ځان

پوهه کول وی او دا تولے خبرے خو د نبی ﷺ او د صحابه کرامو نه نقل نۀ دی چه هغوی د هر آیت معنیٰ کړی وی او د هر آیت نه ئے استنباط د حکم کړے وی او د هر لفظ تفسیر ئے کړے وی او مونږ ته ئے بیان کړے وی لهذا ثابته شوه چه په قرآن کریم کښې لائقے خبرے کول پکار دی ځکه چه کله په قرآن کښې عقل او رایه نۀ استعمالوی، د هغے حکمتونه او رازونه نۀ معلومولی نو څنګه به پرے پوهه شی؟ ځکه چه د قرآن تول تفسیر خو د سلفو نه نقل نۀ دے نو خپله رایه به پکښې ضرور استعمالوی۔

۲- دویمه وجه: [اِنَّهٗ لَوۡ کَانَ کَذٰلِكَ لَلَزِمَ اَنۡ یَّکُوۡنَ الرَّسُوۡلُ ﷺ مُبَیِّنًا ذٰلِكَ کُلَّهٗ بِالتَّوۡقِیۡفِ فَلَا یَکُوۡنُ لِاَحَدٍ قَوۡلٌ وَّلَانَظَرٌ وَالۡمَعۡلُوۡمُ اَنَّهٗ عَلَیۡهِ السَّلَامُ لَمۡ یَفۡعَلۡ ذٰلِكَ بَلۡ بَیَّنَ مَا لَامَحَالَ لِلۡاِجۡتِهَادِ فِیۡهِ]

(که خبره همدارنګه وے نو بیا به دا خبره لازمه وه چه نبی ﷺ به دا تول بیان کړی وی په توقیف باندے (د توقیف معنیٰ دا ده چه بل چا ته به ئے پکښې اجازه نۀ ورکولے چه ما چه څه وئیلی دی بس هغه کوئ) نو بیا به په قرآن کریم کښې د هیچا خبره او هیڅ غور او فکر او نظر له اعتبار نۀ وے او حال دا چه دا خبره خو معلومه ده چه نبی ﷺ د هرے خبرے تشریح نۀ ده کړے بلکه هغه خبرے ئے تشریح کړیدی چه کوم کښې اجتهاد نۀ چلیږی لکه دا خبره مونږ مخکښې بیان کړه۔ او الله تعالیٰ خو د فکر او تدبر امر پدے وجه کړیدے چه انسانان په خپل سوچ سره رازونه او حکمتونه معلوم کړی او د هغوی مراتب پکښې جدا جدا شی۔ لکه تشریح ئے مخکښې تیره شوه۔

۳- دریمه وجه: [اَلصَّحَابَةُ کَانُوۡا اَوۡلٰی بِهٰذَا الۡاِحۡتِیَاطِ مِنۡ غَیۡرِهِمۡ وَقَدۡ عُلِمَ اَنَّهُمۡ فَسَّرُوا الۡقُرۡاٰنَ عَلٰی مَا فَهِمُوۡا۔ وَغَیۡرُ ذٰلِكَ مِنَ الۡوُجُوۡهِ]

(بیا خو صحابه کرام د نورو خلقو نه ډیر لائق وو چه دا احتیاط ئے کړے وے او حال دا چه دا خبره معلومه ده چه صحابه کرامو هم د خپل فهم مطابق د قرآن کریم تفسیر کړیدے) او په لعلهم یتفکرون ئے عمل کړیدے۔

نو معلومه شوه چه قرآن کریم کښې داسے عقل او رائے چلول چه د قرآن او حدیث او د اصولو د شریعت مطابق وی جائز بلکه بهتر عمل دے لکه مثلًا په یو آیت کښې یوه فائده وی، چه نۀ پکښې د قرآن سره او نۀ د حدیث سره ټکراؤ راځی او نۀ د لغت عربی خلاف وی نو انسان دا بیانولے شی لکه مثلًا داسے اُووئیلے شی چه الحمد لله ئے اُووئیل او الشکر لله ئے ولے اُونۀ وئیل؟ ددے فائده بیان کړے نو دا د نبی ﷺ او د صحابه کرامو نه خو نقل نۀ ده

لیکن د عربی د لغت مطابق ده نو داسے فوائد بیانول د الله تعالیٰ د کتاب حکمتونه او رازونه دی او دا فهم د قرآن کریم دے چه چا له ئے الله تعالیٰ ورکوی پس د خواریٔ او محنت او تدبر نه۔

**۲- دویمه رائے** : [اَلثَّانِیُ : اَلرَّأْیُ الْغَیْرُ الْجَارِیُ عَلٰی مُوَافَقَةِ الْعَرَبِیَّةِ اَوْ غَیْرُ الْجَارِیُ عَلَی الْاَدِلَّةِ الشَّرْعِیَّةِ فَهٰذَا هُوَ الْمَذْمُوْمُ مِنْ غَیْرِ اِشْکَالٍ]۔

(دویمه هغه رأیه ده چه د لغت عربی یا د دلائل شرعیه ؤ موافق نهٔ وی) نو دا رایه مذمومه (ناکاره) ده نو د داسے رائے استعمالول په قرآن کریم یا حدیث نبوی کښ ناجائز دی۔ او په داسے قسم رایه استعمالولو سره به په آیتونو یا حدیثونو کښ ټکراؤ راځی، نو که چرے ټکراؤ راتلو معلومیږی به چه دا قسم رایه صحیح نهٔ ده لکه مثلاً آیت: ﴿ یَا عِیْسٰی اِنِّیْ مُتَوَفِّیْکَ﴾ (اے عیسی! زه تا متوفی کوم) نو دلته دا معنیٰ کول چه اے عیسیٰ زهٔ دِے مړ کوم، صحیح نهٔ ده۔ وجه دا ده چه دا د لغت عربی سره برابر نهٔ ده، ځکه په لغتِ عربی کښ د توفی معنیٰ ده [اَخْذُ الشَّیْءِ وَافِیًا] د یو شی پوره اخستل۔ دارنګه دا معنیٰ د دلائل شرعیه ؤ هم موافق نهٔ ده ځکه چه د قرآن او د حدیث نه دا ثابته ده چه عیسی عليه السلام نهٔ دے مړ شوے بلکه روستو زمانه کښ به د آسمان نه راکوزیږی۔ نو پدے معنیٰ اخستو کښ د قرآن او احادیثو سره ټکراؤ پیدا کیږی۔

او ددے مثالونه بے شماره دی چه ځائے په ځائے به ورته په تفسیر د قرآن کریم کښ اشاره کیږی۔ لنډه دا چه هر مبتدع چه د قرآن یا حدیث نه د خپل بدعت دپاره دلیل نیسی نو دا به ضرور د قرآن د بل آیت یا د حدیث سره ټکراؤ راولی۔ کله وائی اولیاؤ ته آوازونه کول او مددونه غوختل جائز دی۔ دلیل دا ورکوی چه قرآن کښ راغلی دی : ﴿ اَلَآ اِنَّ اَوْلِیَاءَ اللّٰهِ لَاخَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَاهُمْ یَحْزَنُوْنَ﴾ او ﴿ فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِیْ مِنْ شِیْعَتِهٖ﴾ موسی عليه السلام ته بنی اسرائیلی آواز نهٔ وو کړے څه او حال دا چه دا د صحیح آیت سره ټکراؤ دے

﴿ وَلَاتَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَایَنْفَعُکَ وَلَایَضُرُّکَ فَاِنْ فَعَلْتَ فَاِنَّکَ اِذاً مِنَ الظّٰلِمِیْنَ﴾ (یونس: ١٠٦)

نو داسے قسم دلیلونه نیول په قرآن کښ د خپلے غلطے رائے استعمالول دی۔

ددے وجه نه پدے قسم رایه استعمالولو کښ عمر فاروق رضي الله عنه فرمائیلی دی : [اِنَّمَا اَخَافُ عَلَیْکُمْ رَجُلَیْنِ رَجُلٍ یَتَأَوَّلُ الْقُرْآنَ عَلٰی غَیْرِ تَاْوِیْلِهٖ وَرَجُلٍ یُنَافِسُ الْمُلْكَ عَلٰی اَخِیْهِ] [مناهل العرفان ٥٩/٢]

(زما د دوه کسانو نه په تاسو باندے خطره ده یو د هغه سړی نه چه د قرآن کریم معنی به کوی په غیر د خپلے حقیقی معنیٰ نه) یعنی حقیقی او خپله معنیٰ به ئے پریدی او بل طرفته به ئے اړوی او خلق به گمان کوی چه گنے قرآن ئے اُووئیلو او حال دا چه هغه به ترے غلط مطلب اخستے وی او په عوامو باندے دا ډیر سخت امتحان دے ځکه چه عوام غریبانان او ساده لوح مسلمانان دوکه کړی چه مونږ هم قرآن یا حدیث پیش کړو۔ لکه ډیر متأخرین او تنظیمونو او پارټیانو والا آیتونه او حدیثونه پیش کوی خو غلط مطلبونه ترے اخلی۔

هر تنظیم والا (واعتصموا بحبل الله جمیعاً) پیش کوی۔ څوك ووټونه کوی او آیت پیش کوی ﴿اِنَّ اللّٰهَ یَأْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمَانَاتِ اِلٰی اَهْلِهَا﴾ وائی : ووټ یو امانت دے دا به صحیح امیدوار دپاره استعمالوے داسے د دروغو استدلالونه کوی۔

(او دویم هغه کس دے چه بادشاهی سره مینه لری د یو ورو مسلمان په مقابله کښې) دے هم کوشش کوی چه زه د هغه نه بادشاهی واخلم او زه بادشاه شم، او د بادشاهی او عهدے دپاره قتل وقتال کوی نو دا ډیر فساد پیدا کوی۔

مسروق بن الاجدع رحمه الله فرمائی :

[اِتَّقُوا التَّفْسِیْرَ فَاِنَّمَا هُوَ الرِّوَایَةُ عَنِ اللّٰهِ]

(تاسو د تفسیر نه ځان اُوساتئ ځکه دا خو د الله تعالیٰ نه روایت نقل کول دی) یعنی لکه څنګه چه څوك په رسول الله ﷺ دروغ وائی نو څومره غټ مجرم او گناهګار دے چه حدیث کښې ئے سزا دا خودلے شویده چه ځان دپاره دِے د اُور نه ځائے تیار کړی نو دغه شان که څوك په تفسیر کښې په الله تعالیٰ باندے دروغ جوړ کړی نو هغه به څومره غټ مجرم وی۔ او پدے خبره کښې رد دے په هغه چا چه هغه کښې اهلیت د تفسیر کولو نهٔ وی، صرف کالجی وی، یا یوه درجه نیمه ئے وئیلی وی او خلقو ته ئے ترجمے شروع کړی وی دا صحیح طریقه نهٔ ده ځکه چه اول په قرآن باندے ځان جوخت پوهه کول ضروری دی، بار بار به ئے ترجمے کړی وی او د ګرامر په لحاظ د غلطے او صحیح ترجمے فرق او تمییز به کولے شی نو بیا به ئے بل ته بیانوی، بعض خلقو قرآن کریم معمولی کتاب ګرزولے دے، پدے کښې ډیره خطره ده چه انسان په الله تعالیٰ دروغ جوړ کړی اګرکه دده اراده به د دروغو نهٔ وی۔ خو خطاءً به دروغ اُووائی ځکه پداسے انسان باندے غالب ګمان د خطاء کیدو دے او کله چه په تا باندے غالب ګمان د دروغو وئیلو وی نو دا داسے دی لکه چه تهٔ قصداً دروغ وائے لیکن که

یو سړے په عام عربی ګرامر پوهه وی او ترجمه ئے د استاذانو نه یا د صحیح تفسیرونو نه جوخته لفظ په لفظ یاده کړی وی او غالب ګمان ئے دا وی چه خطاء به نهٔ وی او بیا هم کله خطاء شی په بعض ځائے کښې نو ان شاء الله چه الله تعالیٰ به ئے نهٔ راګیروی۔

ابراهیم نخعیؒ هم فرمائی: [كَانَ اَصْحَابُنَا يَتَّقُوْنَ التَّفْسِيْرَ وَيَهَابُوْنَهٗ]

(زمونږ ملګرو (یعنی صحابه کرام او تابعین عظامو) به د تفسیر کولو نه ځان ساتلو او ترے یریدل به) چا به چه ترے د تفسیر تپوس اُوکړو نو هغوی به په بل عالِم باندے حواله ورکوله چه فلانی عالم له ورشه هغه به درته مطلب بیان کړی۔ یو په هغوی کښې سعید بن المسیبؒ او خپله ابراهیم نخعی رحمه الله هم وو۔

د سلفو ددے خبرو غرض دا دے چه په باب د تفسیر کښې احتیاط پکار دے او دا مطلب ئے نهٔ دے چه قرآن له ګوتے مهٔ وروړئ لکه ډیر باطل پرست وائی چه ګناهګار نشئ، کله وائی ددے دپاره څوارلس علومه ضروری دی، دا شیطانی وسوسے دی۔ بلکه ددے اقوالو مطلب دا دے چه عربی لغت ډے ښه نهٔ دے یاد او تفسیر ډے بار بار نهٔ دے زده کړے او په ځان ډے پوره یقین نشته او صحیح تفسیرنه اخذ نشے کولے نو بیا به خلقو ته تفسیرونه نهٔ کوے۔ هسے نه چه نقصان کښې پریوځے۔

امام مجاهدؒ فرمائی: [لَايَحِلُّ لِاَحَدٍ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِاَنْ يَّتَكَلَّمَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ اِذَا لَمْ يَكُنْ عَالِماً بِلُغَاتِ الْعَرَبِ] [الاتقان ۲/۴۷۷) والخلاصة الحامعة فی قواعد التفسیر النافعة لحامد بن عبد الله العلی) (۱/۲) والبرهان (۱/۲۴۱ – بحث: شروط المفسر]۔

(هر هغه چا له چه ایمان لری په الله او په ورځ د آخرت دا جائز نهٔ دی چه د الله تعالیٰ په کتاب کښې خبرے اُوکړی کله چه د عربو په لغاتو عالِم نهٔ وی)۔

۲- امام خازنؒ یو بهترین عبارت وئیلے دے او د رائے دوه قسمه ئے ذکر کړیدی فرمائی:

[قَالَ الْعُلَمَاءُ: اَلنَّهْيُ عَنِ الْقَوْلِ فِي الْقُرْآنِ بِالرَّأْيِ اِنَّمَا وَرَدَ فِيْ حَقِّ مَنْ يَّتَأَوَّلُ الْقُرْآنَ عَلٰى مُرَادِ نَفْسِهٖ وَمَا هُوَتَابِعٌ لِهَوَاهُ وَهٰذَا لَايَخْلُوْ اِمَّا اَنْ يَّكُوْنَ عَنْ عِلْمٍ اَوْلَا، فَاِنْ كَانَ عَنْ عِلْمٍ كَمَنْ يَّحْتَجُّ بِبَعْضِ الْآيَاتِ عَلٰى تَصْحِيْحِ بِدْعَتِهٖ وَهُوَيَعْلَمُ، اَوْلَايَعْلَمُ وَيُفَسِّرُ الْقُرْآنَ فَكِلَاهُمَا مَذْمُوْمٌ وَكِلَاهُمَا دَاخِلٌ فِي النَّهْيِ الْوَارِدِ، فَاَمَّا التَّاوِيْلُ وَهُوَ صَرْفُ الْاٰيَةِ عَلٰى طَرِيْقِ الْاِسْتِنْبَاطِ اِلٰى مَعْنًى يَلِيْقُ بِهَا مُتَحَمِّلٌ لِمَا قَبْلَهَا وَمَا بَعْدَهَا وَغَيْرُ مُخَالِفٍ لِلْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ فَقَدْ رَخَّصَ فِيْهِ كَثِيْرٌ مِّنْ اَهْلِ الْعِلْمِ فَاِنَّ الصَّحَابَةَ قَدْ فَعَلُوْا ذٰلِكَ وَلَمْ يَسْمَعُوْهُ مِنَ النَّبِيِّ ﷺ اِنْتَهٰى]۔

(علماؤ فرمائیلی دی چه په قرآن کریم کښې په رائے سره خبرے کولو نه چه نهی راغلے ده نو دا په حق د هغه چا کښې ده چه قرآن کریم حمل کوی په خپل مراد سره او د خپل خواهش تابع وی د هغې مطابق تفسیر کوی او دا خبره به خالی نهٔ وی یا به ئے په پوهه سره کوی یا به ئے په بے علمئ سره کوی که سره د پوهے نه ئے کوی لکه د خپل بدعت د صحیح ثابتولو دپاره د بعض آیتونو نه دلیل نیسی او یا به په بے علمئ سره تفسیر د قرآن کریم کوی (جاهل او امی به وی او د قرآن تفسیر به کوی) نو دا دواړه مذموم (ناکاره) انسانان دی، او دا دواړه په نهی کښې داخل دی۔ نو د دوی دپاره په قرآن کښې خبرے کولو نه منع راغلے ده او هر چه هغه تاویل کول دی چه هغه د استنباط په طریقه آیت اړول دی یوے لائقے معنیٰ ته چه د مخکښې او روستو آیت سره ئے احتمال کیدے شی او تکراؤ نهٔ پیدا کیږی او د کتاب او سنت مخالف هم نهٔ وی نو پدے کښې ډیرو اهل علمو رخصت او اجازه ورکړیده ځکه چه صحابه کرامو پدے باندے عمل کړیدے او حال دا چه د نبی ﷺ نه ئے هغه نهٔ دے اَوریدلے انتهیٰ)۔ وجه دا ده چه د هغوی رائے د قرآن او حدیث خلاف نهٔ وه او د بدعت ثابتولو دپاره نهٔ وه۔

**خلاصه :** ددے عبارت خلاصه دا ده چه رایه په دوه قسمه ده:

(۱) اول د اهل بدعو ده او (۲) دویمه د اهل علمو ده، د اهل بدعو رائے ناروا ده۔ هغه دا ده چه د خپل بدعت د ثابتولو دپاره په قرآن کریم کښې رائے استعمالوی او بل اهل حق دی چه هغوی په قرآن کریم کښې خپل عقل استعمالوی او تطبیق راولی، او د آیت فائدے راوباسی او رازونه او حکمتونه او مناسبتونه راوباسی نو دا ناروا نهٔ ده۔

امام غزالیؒ په احیاء العلوم (۵۲۸/۱) کښې لیکی :

[وَالنَّهْیُ مُنَزَّلٌ عَلٰی اَحَدِ الْوَجْهَیْنِ (۱) اَنْ یُفَسِّرَ الْقُرْآنَ عَلٰی وَفْقِ رَأْیِهٖ لِتَصْحِیْحِ بِدْعَتِهٖ (۲) اَوْ یَتَسَارَعُ اِلٰی تَفْسِیْرِ الْقُرْاٰنِ بِظَاهِرِ الْعَرَبِیَّةِ مِنْ غَیْرِ اسْتِظْهَارٍ بِالسَّمَاعِ وَالنَّقْلِ فِیْمَا یَتَعَلَّقُ بِغَرَائِبِ الْقُرْآنِ وَمَا فِیْهِ مِنَ الْاَلْفَاظِ الْمُبْهَمَةِ وَالْمُبْدَلَةِ وَالْاِخْتِصَارِ وَالْحَذْفِ وَالْاِضْمَارِ وَالتَّاخِیْرِ وَالتَّقْدِیْمِ فَمَنْ لَّمْ یُحْکِمْ ظَاهِرَ التَّفْسِیْرِ وَبَادَرَ اِلٰی اسْتِنْبَاطِ الْمَعَانِیْ بِمُجَرَّدِ فَهْمِ الْعَرَبِیَّةِ کَثُرَ غَلَطُهٗ وَدَخَلَ فِیْ زُمْرَةِ مَنْ یُّفَسِّرُ بِالرَّأْیِ الخ)۔

حاصل ئے دا دے چه تفسیر د قرآن کریم په خپله رایه په دوه قسمه دے (۱) یو د تصحیح د بدعت دپاره دے۔ (۲) او بل تفسیر دے په جهالت باندے چه سرسری عربی الفاظو ته

اُوګوري او جخت علم ئې نهٔ وي او د قرآن کريم نه مسائل مستنبط کوي نو دا ناروا دے او ددهٔ خطائي به زياتيږي. او کله چه علماء خلق هغه تفسير کوي چه د هغوي تفسير د بدعت د ثابتولو دپاره نهٔ دے او په جهالت هم بناء نهٔ دے نو هغه جائز دے۔

## البحث المتعلق بالسابق :

[تَرْجَمَةُ الْقُرْآنِ إِلَى اللُّغَةِ الْأَجْنَبِيَّةِ]

(د ماقبل سره متعلق بحث : د قرآن کريم ترجمه نورو ژبو ته څنګه ده؟)

دا يوه فائده منه مسئله ده مختصراً دا واوره چه د قرآن کريم ترجمه په پښتو يا اردو يا انګريزي يا فارسي وغيره ژبو کښ څه حکم لري جائز ده او که نهٔ ؟۔

دے کښ دوه قوله دي : (۱) اول قول دا دے چه ترجمه د قرآن بلے ژبے ته جائز نهٔ ده۔ دليل دا وائي : [لِأَنَّهُ يُفَوِّتُ الْإِعْجَازَ]۔ ځکه چه دا کار د قرآن کريم اعجاز ختموي) لکه دا خبره شيخ الاسلام د بعض علماؤ نه په دقائق التفسير(۱/۱۸۰) او اقتضاء الصراط المستقيم (۳۰۰) کښ نقل کړيده۔

مطلب دا دے چه قرآن کريم کښ يوه معجزه پرته ده او پدے الفاظو کښ ئې يو کمال پروت دے او چه تا ئې ترجمه اُوکړه نو په ترجمه کښ خو هغه کمال نشته دے۔

(۲) دويم قول دا دے (او دا حق دے) چه ترجمه د قرآن دوه قسمه ده (۱) يو في الصلاة (په مانځه کښ) ده نو په مانځه کښ ترجمه کول ناروا دي لکه يو انسان مونځ په فارسي ژبه کښ اُووائي يا په پښتو او اردو کښ وائي او د الحمد ترجمه کوي نو دا صحيح نهٔ ده بلکه فاتحه لوستل شرط او فرض دے، ددے د لوستلو نه بغير مونځ صحيح نهٔ دے۔ ځکه چه نبي ﷺ هغه چا ته چه فاتحه ئې نه نشوه وئيلے (نوے مسلمان وو) هغه ته ئې اذکار اُوخودل چه دا وايه (سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اكبر) (رواه مسلم) لهذا په مانځه کښ ترجمه د عام اهلِ علمو په نيز جائز نهٔ ده۔ صرف امام ابوحنيفهؒ ته منسوب ده چه هغه په فارسئ کښ قراءت جائز ګڼړلو ليکن روستو زمانه کښ ئې ترے رجوع کړيده او که رجوع ئې ترے نهٔ وي کړي نو دا قول ئې کمزورے دے۔

(د بعض ائمه کرامو قول په بعض مسائلو کښ ضعيف هم راتلے شي د دليل په لحاظ اګرکه هغه ډير غټ سرے وي، لوئي شخصيت وي ليکن خبره ئې کمزورے وي او اعتبار

خبرے لرہ وی سری لہ نۀ وی، سرے بہ جنتی وی خو چہ خبرہ ئے خطاء وی نو هغے لہ بہ اعتبار نۀ وی، پدے خبرہ ښہ سوچ اُوکرہ ډیر اشکالات بہ دِے ختم شی)۔

(۲) دویم ترجمہ د قرآن دہ پہ غیر د مانځہ نہ نو دا جائز دہ۔

۱ - **دلیل** : ځکہ دے تہ د بندګانو ضرورت او حاجت دے ځکہ چہ قرآن کریم خو عرب او عجم ټولو تہ نازل شویدے او اکثر عجم خلق پہ عربی باندے نۀ پوهیږی نو هغوی دپارہ ترجمہ کول لازم دی دے دپارہ چہ د الله تعالیٰ پہ کلام پو هه شی، لهذا دا د ضروریاتو د دین نہ شوہ او دا قانون دے چہ [اَلضَّرُوْرَاتُ تُبِيْحُ الْمَحْظُوْرَاتِ]۔

(د ضرورت د وجہ نہ ممنوع څیزونہ هم جائز کیږی) ځکہ کہ ترجمہ اُونشی نو عام عجم بہ د قرآن کریم د لذت او علم او خیر نہ محروم شی۔

۲ - **دلیل** : هغہ حدیث دے چہ اهل کتابو بہ تورات پہ عبرانئ ژبہ کښ لوستلو [وَيُفَسِّرُوْنَهَا بِالْعَرَبِيَّةِ لِاَهْلِ الْاِسْلَامِ] (او مسلمانانو تہ بہ ئے د هغے تفسیر پہ عربئ ژبہ کښ کولو) نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : د اهل کتابو تصدیق هم مۀ کوئ او تکذیب ئے هم مۀ کوئ الخ [صحیح البخاری کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة : (۷۳٦۲) ۔نو دا صریح حدیث دے چہ د الله تعالیٰ د کتاب ترجمہ بل لغت تہ جائز دہ۔

**لیکن** دوہ شرطہ دی (۱) یو دا چہ دا ترجمہ بہ هغہ څوک کوی چہ پہ عربیت او د هغے پہ تراکیبو عالم وی۔ فاعل او مفعول او جملہ فعلیہ او اسمیہ او لازم او متعدی پیژنی، شے نہ چہ داسے معنیٰ اُوکړی چہ د ترکیب نحوی د عربئ خلاف وی لکہ دا قسم ترکیبونہ هم ډیر دی چہ خلقو کښ ئے یو شان معنیٰ مشهورہ وی او د ترکیب عربی پہ لحاظ سرہ بل شان معنیٰ وی لکہ ﴿ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ اَحَداً ﴾ ۔ کښ د لایشعرن ترجمہ بعض خلق داسے کوی : (خبر دِے نشی پہ تاسو یو کس) دا ترجمہ غلطہ دہ ځکہ چہ دلتہ ئے احداً فاعل اُوګرځولو او حال دا چہ فاعل خو ضمیر دے او احداً ئے مفعول دے۔ صحیح معنیٰ داسے دہ (خبر دِے نۀ کړی پہ تاسو باندے هیچا لرہ) او د یو مشر عالِم نہ ما واوریدل چہ پدے آیت کښ ئے داسے وئیل : ﴿ وَلَمْ تَظْلِمْ مِنْهُ شَيْئًا﴾ چہ پہ ((لم تظلم)) کښ ضمیر راجع دے دوہ باغونو تہ او ضمیر د واحد ئے ورتہ ځکہ راجع کړیدے چہ دا پہ اصل کښ یو باغ وو۔

نو دا خبرہ ئے د ترکیب نحوی پہ اعتبار خطاء دہ ځکہ چہ دلتہ ضمیر د واحد مؤنث مخکښ (کلتا الجنتین) تہ راجع دے او علم نحو کښ دا قانون دے چہ کلتا پہ اعتبار د لفظ سرہ واحدہ مؤنثہ دہ اګرکہ معنیٰ ئے د تثنیہ دہ۔

نو گوره هغه وائي چه دا په اصل کښ دوه باغونه نهٔ وو بلکه يو باغ وو خو ډير غټ وو نو ځکه ئې ورته دوه وئيلي دي او حال دا چه الله تعالیٰ فرمائي چه دا دوه وو، يو نهٔ وو۔ نو دا څومره غلط تفسير شو۔ددې وجه نه اهل علمود قرآن کريم هر قسم خدمت کړيدې، هغوي د قرآن کريم د هرې جملې ترکيبونه هم ليکلي دي لکه اعراب القرآن په نوم باندې تفاسير ليکلې شويدي۔ او دارنګه د قرآن کريم په بلاغت او حکمتونو او مفردات الالفاظ باندې مستقل کتابونه ليکلې شويدي۔ کله چه انسان هغه مطالعه کوي نو نهٔ به خطاء کيږي۔

۲- **شرط** : فتاوى اللجنة (١٣٢/٤) کښ يو بل شرط دا ذکر کړيدې چه قرآن کريم بغير د الفاظو نه صرف ترجمه په فارسي، يا انګريزي يا نورو لغاتو کښ ليکل جائز نهٔ دي چه آيت ورسره نهٔ وي او صرف معنیٰ وي لکه بعض خلق په انګريزئ يا بله ژبه کښ دا کار کوي نو هغوي وائي چه دا کار ځکه نهٔ دې جائز چه يو خو په بل لغت کښ هغه کمال نشته کوم چه په عربئ کښ دې او دويم دا چه پدې کښ معنیٰ بدليږي او پوره معنیٰ د عربي د لغت پکښ نهٔ ادا کيږي لهذا د تحريف خطره ده، هان البته که يو انسان د يو آيت ترجمه اُوکړي چه د آيت نه ئې فهم کړيده۔

او دارنګه د قرآن کريم بعض آداب او احکام او مقاصد په بله ژبه بيان کړي د دعوت په نيت باندې نو دا کار جائز دې۔ نو ددې وجه نه ترجمه به مستقله نهٔ ليکلې کيږي چه الفاظ د قرآن ورسره يو ځائې نهٔ وي ليکلې شوي، او که الفاظ د قرآن ورسره وو او لاندې ترجمه وه نو بيا جائز ده۔

ددې نه دا معلومه شوه چه دا کومې ترجمې علماء کوي نو دا د الله تعالیٰ د کتاب پوره تعبير بالکل نهٔ دې بلکه د الله د کتاب په الفاظو کښ چه کومه مزه او خوند او عظمت او جلال او کمال او جزالت پروت دې نو دا په ترجمه کښ نهٔ وي او دا مونږ چه کومې ترجمې کوو نو دا معمولي غوندې تعبير دې او دا هم پوره تعبير نهٔ دې ځکه چه د عربي الفاظو کښ چه کومه ژوره معنیٰ پرته وي چه هغه راګيرونکي وي ډيرو تهٔ نمنات او التزامات او اشاراتو له چه هغه په بله ژبه کښ ممکن نهٔ ده۔ بلکه دا صرف د د ادنیٰ درجه پوهې دپاره کولې شي۔ ددې وجه نه د عربي علومو پيژندل ډير ضروري دي چه د الله تعالیٰ په کتاب باندې انسان کما حقه پوهه شي او د هغې خوند او مزه حاصله کړي۔

**تنبيه** : دا خبره ياده کړه چه کومه ترجمه د قرآن ليکلې شوي وي نو د هغې دپاره د قرآن

کریم په شان احکام نهٔ وی، لهذا هغې ته په یې اودسۍ سره هم ګوتې وروړل جائز دی اګرکه د هر دینی کتاب ادب کول د ایمان نخه ده ځکه چه ترجمه په اجماع د علماؤ قرآن کریم نهٔ دے۔ والله تعالیٰ اعلم۔

## ٥- الامر الخامس : موضوع القرآن :

## [پنځم بحث : د قرآن موضوع پیژندل]

د موضوع پیژندل هم مهم بحث دے ځکه چه د یو شی موضوع اُوپیژندلے شی نو انسان د هغې په حقیقت پو هه شی او چه موضوع انسان نهٔ وی پیژندلی نو د سړی خواری ئې هسې عبثه کیږی نو د هر علم او هرے خطبې دپاره موضوع پکار ده نو دغه شان د قرآن کریم دپاره هم موضوع پکار ده ځکه چه دا سورتونه د الله تعالیٰ بیانات او تقریرونه دی چه بندګانو ته ئې کړیدی نو بیا د هر سورت بیله بیله موضوع وی او د مجموعه قرآن کریم بیله موضوع ده نو دلته اول د قرآن موضوع پیژندل دی۔

موضوع د قرآن هغه شی ته وئیلے چه د څه نه بحث کوی یعنی مقصد او دعویٰ۔ په بل تعبیر باندے د قرآن مقصد څه شے دے ؟ د کوم مقصد دپاره راغلے دے؟۔

نو پدے کښې د علماء کرامو مختلف تعبیرونه دی :

(١) اول تعبیر : شاه ولی الدهلوی رحمه الله په (الفوز الکبیرص (٣) کښې لیکلی دی (چه دا په اصول القرآن کښې یو جامع کتاب دے) :

[مَوضُوعُ الْقُرْآنِ خَمْسَةُ اُمُورٍ وَتُسَمّٰی بِعُلُوْمِ الْقُرْآنِ : ١ - عِلْمُ الْاَحْكَامِ مِنَ الْوَاجِبِ وَالْمَنْدُوْبِ وَالْمُبَاحِ وَالْمَكْرُوْهِ وَالْحَرَامِ مِنْ قِسْمِ الْعِبَادَاتِ اَوِ الْمُعَامَلَاتِ اَوْ تَدْبِيْرِ الْمَنْزِلِ اَوْ مِنَ السِّيَاسَةِ الْمَدَنِيَّةِ]۔

د قرآن کریم موضوع پنځه څیزونه دی او دیته د قرآن کریم علوم وئیلے شی (١) اول علم الاحکام دے یعنی واجبات، مندوبات، او مباحات او مکروهات او حرام پیژندل دی، که دا د عباداتو سره تعلق لری (٢) او که د معاملاتو سره (٣) او که د تدبیر المنزل (د کورونو د احکامو د برابرولو) سره تعلق لری) (٤) او که د سیاست مدنیه (د کلی او علاقې او ښار او ملك د تربیت) سره تعلق لری۔ یعنی دا پنځه شیان پدے څلورو څیزونو کښې راځی یعنی په عباداتو کښې به یا واجبات وی یا مندوبات یا مباحات یا مکروهات یا حرام۔ دغه شان په

معاملات او تدبیر او سیاست مدنیه کښې هم دغه پنځه څیزونه راځي۔ دے ټولو ته علم الاحکام وئیلے شي۔ دا اوله موضوع شوه چه پدے کښې ډیر علوم راجمع دي۔

٢ – دویم : [ عِلْمُ الْمُخَاصَمَاتِ وَالرَّدُّ عَلَى الْفِرَقِ الضَّالَّةِ الْاَرْبَعِ مِنَ الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارىٰ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُنَافِقِيْنَ]۔

(دویم د علوم خمسه ؤ نه د جګړو علم دے او په څلورو ډلو رد دے چه هغه یهود، نصارىٰ، مشرکین او منافقین دي) د دوی سره په قرآن کریم کښې جګړے ډیرے راځي او پدے تنظیمونو باندے قرآن ډیر سخت ردونه کوي۔ د دوی عیبونه راښکاره کوي او پدے علم المخاصمه معلومولو کښې ډیر فوائد دي چه ١ – د هغوی اصلاح په کښې غرض وي، چه دا بد صفات د ځان نه اُوباسئ۔

٢ – مسلمانانو ته خبر ورکوي چه دا ستاسو دشمنان دي، وے پیژنئ او د دوی په باره کښې دهوکه نشئ او که دا صفتونه تاسو کښې وي نو توبه ترے اُوباسئ۔ او که دا عیبونه تاسو کښې نهٔ وي نو بیا د الله تعالیٰ شکر اُوکړئ۔ دا د قرآن کریم تربیت او تزکیه ده چه مسلمانانو له ئے کوي۔ او ددے نورے فائدے زمونږ تفسیر «حکمة القرآن» کښې اُوګورئ۔

٣ – دریم : [عِلْمُ التَّذْكِيْرِ بِآلَاءِ اللّٰهِ مِنْ بَيَانِ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِيْنَ وَمِنْ بَيَانِ صِفَاتِ اللّٰهِ تَعَالىٰ] ۔ (کوم نعمتونه چه الله تعالیٰ ذکر کړیدي په هغے علم راوستل لکه الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکو پیدائش بیان کړیدے او د الله تعالیٰ د صفاتو بیان ئے کړیدے چه دا څیزونه د الله تعالیٰ نعمتونه دي او د الله تعالیٰ د قدرت عظیمے نخے دي نو الله تعالیٰ ځکه ددے تذکره بار بار کړیده۔ او الله تعالیٰ د خپلو صفاتو بیان کړیدے چه ما داسے داسے کارونه کړیدي اے بندګانو ! دے ته فکر اُوکړئ او ددے نه نصیحت واخلئ۔

٤ – څلورم : [عِلْمُ التَّذْكِيْرِ بِاَيَّامِ اللّٰهِ يَعْنِيْ بَيَانَ الْوَقَائِعِ الَّتِيْ اَوْجَدَهَا اللّٰهُ سُبْحَانَهٗ مِنْ جِنْسِ تَنْعِيْمِ الْمُطِيْعِيْنَ وَتَعْذِيْبِ الْمُجْرِمِيْنَ]۔

(الله تعالیٰ مونږ له تذکیر راکوي په تیر شوو ورځو یعني هغه واقعات ئے بیان کړیدي چه الله سبحانه په پخوانو قومونو باندے راوستي دي هغه دا چه الله تعالیٰ خپل اطاعت والو ته څومره نعمتونه ورکړیدي او څوك چه ئے نافرمان او مجرمان وو نو هغوی له ئے څنګه عذابونه ورکړیدي۔ لکه دا په سورة ابراهیم (٥) کښې راغلي دي : ﴿ وَذَكِّرْهُمْ بِاَيَّامِ اللّٰهِ ﴾ ۔ د انبیاء علیهم السلام او د هغوی د تابعدارو سره الله تعالیٰ څنګه احسانات اُوکړل او د هغوی مقابله کښې ئے کفار او د انبیاء علیهم السلام مخالفین ئے څنګه هلاك کړل۔ ددے نه

عبرت واخلئ۔ دا علم هم الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ ډیر ذکر کوی۔

٥- پنځم : [وَعِلْمُ التَّذْكِيرِ بِالْمَوْتِ وَمَابَعْدَهُ مِنَ الْحَشْرِ وَالنَّشْرِ وَالصِّرَاطِ الخ) ۔(او الله تعالیٰ بندګانو ته د مرګ او د مرګ نه روستو د حشر او نشر او صراط او جنت جهنم تذکره کړیده) لکه ﴿ وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ﴾ (الانبياء) ۔ او ﴿ وَاِنْ مِنْكُمْ اِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلٰى رَبِّكَ حَتْماً مَقْضِيًّا﴾ (مريم) ۔او ﴿ يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُوْنَ لَاتَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ﴾ (الحاقة)۔

نو الله تعالیٰ د قیامت حالات بیانوی۔

دا پنځه قسمه علوم دی دا مجموعه د قرآن کریم موضوع ده چه د قرآن کریم عامے خبرے پدے پنځو خبرو کښ راګیرے دی۔

بیا فرمائی :

[وَاِنَّمَا وَقَعَ الْعُلُوْمُ الْخَمْسَةُ عَلٰى طَرِيْقَةِ الْعَرَبِ الْاَوَائِلِ لَا عَلٰى اُسْلُوْبِ الْمُتَاَخِّرِيْنَ مِنَ الْاِخْتِصَارِ الْمُخِلِ وَوَضْعِ الْقُيُوْدِ الْغَيْرِ الضَّرُوْرِيَّةِ]۔

(او الله تعالیٰ چه ددے پنځه علومو بیان کړیدے نو دا د عربو اوائلو په طریقه، نۀ د متأخرینو په طریقه چه هغوی ډیر اختصار په کلام کښ کوی او غیر ضروری قیدونه بیانوی) بلکه د اولنو (قدیم) عربو طریقه دا وه چه خبره به ئے سیده ساده، آسانه، بغیر د قیدونو نه ذکر کوله او په بابونو او فصلونو به ئے نۀ تقسیموله چه دا اول باب شو او دا دویم باب او دا ئے فصل شو۔

[وَاخْتَارَ اللّٰهُ سُبْحَانَهٗ فِيْ اِلْزَامِ الْخَصْمِ مِنْ آيَاتِهٖ بِالْمَشْهُوْرَاتِ الْمُسَلَّمَةِ وَالْخِطَابِيَاتِ النَّافِعَةِ لَاتَنْقِيْحُ الْبَرَاهِيْنِ عَلٰى طَرِيْقِ الْمَنْطِقِيِّيْنَ] آه۔ [الفوز الکبیر ص :٣]۔

(او دارنګه الله تعالیٰ چه په خپلو دشمنانو رد کوی نو مشهورے خبرے راوړی چه ټول خلق ئے منی او د هر چا د عقل موافق وی) مثلًا چه ما آسمان پیدا کړیدے او زمکے او رزقونو او خوراکونو ته اُوګورئ، شپه او ورځ او نمر او سپوږمئ، هواګانو، بارانو ته فکر اُوکړئ۔ (او هغه خبرے بیانوی چه د مخاطبینو د حالاتو مطابق وی او فائده مند خطابات وی او د منطقیانو په طریقه نۀ وی چه هغوی قیاسونو او اَشکالو سره خبره ثابتوی) چه دا شکل اول دے او دا شکل ثانی او دا ثالث او دا رابع دے۔ او بیا ددے نتیجے راوباسی۔

٢- دویم قول : بعض علماء وائی : د قرآن کریم موضوع جهاد فی سبیل الله دے چه جهاد ته دعوت ورکوی۔ دا خبره من وجه صحیح ده چه قرآن کریم انقلابی کتاب دے جهاد ته به کښ دعوت شته لیکن د ټول قرآن کریم جهاد موضوع جوړول مناسب نۀ دی۔

۳- **دريم قول**: بعض علماء كرام فرمائي : د قرآن موضوع توحيد ده لكه دا خبره زمونږ مشائخ غوره كوي او شيخ الاسلام ابن قيمؒ او ملاعلي القاريؒ هم فرمايلي دي : [اَلْقُرْآنُ كُلُّهٗ فِي التَّوْحِيْدِ]۔ (ټول قرآن په باره د توحيد كښې نازل دے) ځكه فرمائي چه قرآن كښې به يا د الله د عظمت بيان وي يا به د هغه د يو والي بيان وي يا به د نفي د شريك بيان وي چه د الله تعالىٰ سره شريكان او برخه داران نشته او يا به د هغه مشركانو د حال بيان وي چا چه د الله تعالىٰ سره برخه داران جوړ كړيدي او الله تعالىٰ هغه هلاك كړيدي او يا به د هغه مؤمنانو حال وي چا چه توحيد منلے دے يا به د توحيد دلائل وي، يا به د مشركانو دليل وي په خپل شرك باندے۔ لهذا ټول قرآن په باره د توحيد كښې شو۔ د توحيد بحث به لږ روستو راشي ان شاء الله تعالىٰ۔

٤- **څلورم قول**: صاحب د تفسير تسهيل علامه ابن جزيؒ وئيلي دي : [اَلْمَقْصُوْدُ بِالْقُرْآنِ دَعْوَةُ الْخَلْقِ إِلَى عِبَادَةِ اللّٰهِ وَإِلَى الدُّخُوْلِ فِيْ دِيْنِهٖ ثُمَّ إِنَّ هٰذَا الْمَقْصَدَ يَقْتَضِيْ أَمْرَيْنِ لَابُدَّ مِنْهُمَا وَإِلَيْهِمَا تَرْجِعُ مَعَانِي الْقُرْآنِ كُلِّهٖ : اَحَدُهُمَا: بَيَانُ الْعِبَادَةِ الَّتِيْ دُعِيَ الْخَلْقُ إِلَيْهَا، وَالْأُخْرٰى، وَذِكْرُ بَوَاعِثَ تَبْعَثُهُمْ عَلَى الدُّخُوْلِ فِيْهَا وَتُرَدِّدُهُمْ إِلَيْهَا فَأَمَّا الْعِبَادَةُ فَتَنْقَسِمُ إِلٰى نَوْعَيْنِ وَهُمَا أُصُوْلُ الْعَقَائِدِ وَأَحْكَامُ الْأَعْمَالِ وَأَمَّا الْبَوَاعِثُ عَلَيْهَا فَأَمْرَانِ وَهُمَا التَّرْغِيْبُ وَالتَّرْهِيْبُ] [التسهيل لعلوم التنزيل لابن الجزى الباب الثالث فى المعانى ۱/۸]۔

(چه موضوع د قرآن كريم دا ده چه دعوت وركوي خلقو ته چه د الله بندگي او عبادت اُوكړئ او بل د الله تعالىٰ په دين كښې داخل شئ۔ بيا دا مقصد د دوه خبرو تقاضا كوي چه هغه ضروري دي او هغے ته د ټول قرآن كريم مقاصد راجع كيږي (۱) يو دا چه بيان د هغه عبادت چه خلقو ته د هغے دعوت وركړے شويدے چه عبادت څه شے دے د هغے تشريحات بيانوي لكه مونځ، روژه، زكوٰة او امربالمعروف او جهاد او نور عبادات شو۔ (۲) دويم باعث پدے عباداتو څه شے دے ؟ چه داسے كارونه ئے ذكر كړيدي چه د هغے د وجه نه د عبادت سره د انسان شوق پيدا كيږي او بنده ورته واپس كوي۔ ځكه عبادت گران كار دے نو ددے دپاره باعث ضروري دے۔ بيا عبادت دوه اقسامو ته تقسيم دے يو اصولي عقائد دي او دويم احكام دي او باعث هم دوه څيزونه دي چه هغه (۱) ترغيب (۲) او ترهيب بيانول دي۔ يعني خلقو ته دا رغبت وركوي چه كه تاسو عبادات اُوكړل نو الله تعالىٰ به درنه رضا شي او جنتونه به دركړي او كه اُومو نكړل نو الله به درنه ناراضه وي او جهنم به ستاسو ځائے وي۔ يعني يره ئے بيان كړيده۔

٥- **پنځم قول** : زما په نظر کښې د قرآن کريم موضوع دا ده :
[مَعْرِفَةُ اللّٰهِ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالىٰ وَالْإِيْمَانُ بِالآخِرَةِ وَاتِّبَاعُ الرَّسُوْلِ ﷺ وَيُعَبَّرُ عَنْ ذٰلِكَ بِالتَّوْحِيْدِ وَالرِّسَالَةِ وَالْمَعَادِ]۔

(د الله سبحانه پيژندل او په ورځ د آخرت ايمان لرل او د رسول الله ﷺ اتباع کول۔ او ددے درے واړو نه داسے تعبير هم کيږي چه موضوع د قرآن توحيد، د رسول الله ﷺ رسالت او ورځ د قيامت ثابتول دي) مطلب دا چه دا خبره ثابتوي چه الله تعالىٰ څومره لوئي دے، څومره مهربانه دے، شريکان نۀ لري او څومره څومره کارونه ئے کړيدي او څومره قادر دے، الله تعالىٰ بندګانو ته خپل تعارف کړيدے لکه دا په تفسير کښې په يا ايها الناس اعبدوا کښې ذکر دي۔ ددے وجه نه څوك چه قرآن په صحيح معنو اُولولی نو هغه الله اُوپيژني نو څوك چه قرآن لولي او بيا هم د الله تعالىٰ سره شريکان او برخه داران جوړوي نو پو هه شه چه دۀ قرآن نۀ دے وئيلے او دويمه موضوع د قرآن کريم د آخرت بيان دے چه دا يوه درنه ورځ راتلونکے ده او دا د قرآن کريم ډير ناشنا ترتيب او طريقه ده چه يو ځائے کښې څه اعمال ذکر کړي نو سمدست د آخرت يره بيان کړي چه الله تعالىٰ ته ورتلل دي، آخرت ته ډيے توجه برابروي او ددے په وجه سره په تا باندے عمل کوي نو څوك چه د آخرت نه منکر شو يا ئے په آخرت باندے جُخت او مضبوط يقين پيدا نۀ شو او دارنګه د آخرت نه ئے يره پيدا نشوه او د هغے دپاره ئے تيارے شروع نکړو نو پو هه شه چه دا د قرآن کريم د حقيقت نه خبر نشو۔

دريمه موضوع د قرآن کريم اتباع الرسول ده، چه د محمد رسول الله ﷺ شان او قدر اُوپيژنئ، د هغه تابعداري اُوکړئ د هغه په تابعدارئ کښې کاميابي ده، دا وجه ده چه قرآن کريم د رسول الله ﷺ شان او قدر او د هغه ذاتي صفات او د هغه په تابعدارئ کښې ئے خير او هدايت بيان کړيدے او د هغه صدق او رشتينوالے ئے بيان کړيدے۔

خلاصه دا شوه چه قرآن کريم د الله تعالىٰ معرفت او بندګئ او تعلق ته دعوت ورکوي، او د آخرت دپاره تياري او د هغه ورځے هيبت او عظمت او د محمد رسول الله ﷺ شان او د هغه عظمت او د هغه د سنتو تابعدارئ ته دعوت ورکوي۔ بيا په چا کښې چه دا درے واړه خبرے کاملے مکملے راغلے نو دا پوره کامياب دے۔

ډير داسے خلق شته چه توحيد پيژني ليکن د رسول الله ﷺ معرفت او شان ئے نۀ وي پيژندلے، په هغه باندے بل څوك دپاسه کوي او د هغه طريقے ورته معمولي ښکاري۔ او بعض خلق داسے دي چه توحيد او رسالت ئے ښه پيژندلے وي ليکن د آخرت نه پوره طريقے

سره یره نکوی د هغے دپاره تیاریے نکوی، او بعض خلق د سره نه د الله تعالیٰ د توحید نه خبر نهٔ وی، شریکان د الله تعالیٰ سره جوړوی نو دا دریے واړه خبرے ځان کښې راوستل او پدیے باندیے ځان په صحیح معنو کښې پوهه کول لازم دی۔ او په همدیے کښې د کامیابئ راز دیے۔

## بحث التوحید

د توحید بیان خو ډیریے تشریح ته حاجت لری لیکن ددیے مقام مناسب چه پکار راځی دا دیے چه په احادیثو کښې د توحید لفظ ډیر استعمال دیے لیکن په قرآن کریم کښې دا لفظ نهٔ دیے استعمال بلکه مجرد ئے استعمال دیے چه (وحده) لفظ دیے۔ بلکه په قرآن کریم کښې د توحید نه تعبیر کیږی په (الایمان والیقین) سره۔ لکه یؤمنون بالغیب او (وما یؤمن اکثرهم بالله الا وهم مشرکون) دغسے نور الفاظ واخله۔ لیکن زمونږ استاذان د توحید لفظ ډیر استعمالوی۔ وجه دا ده چه که د ایمان لفظ استعمال کړی نو بیا خو مشرکان هم دعوه د ایمان لری لیکن ایمان سره ئے شرك یوځائے کړیدیے نو په توحید لفظ سره د هغوی نه جدائی راځی۔ او رد په شرك راځی۔

او په احادیثو کښې خو دا لفظ ډیر استعمال دیے خو د قرآن په اصطلاح کښې د ایمان لفظ ډیر مشهور دیے او د ایمان نه مراد به ایمان شرعی وی چه په ټولو ایمانیاتو باندیے ایمان راوړل دی۔ د توحید لفظ د شلو نه په زیاتو احادیثو کښې راغلے دیے لکه [أَهَلَّ بِالتَّوْحِيْدِ](ابو داود :١٨١٣ بسند صحيح) ۔(یعنی نبی ﷺ لبیك اللهم لبیك اُووئیلو) دیے ته ئے توحید وئیلے دیے۔ دارنګه [قَرَأَ فِيهِمَا بِالتَّوْحِيْدِ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ وَقُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ] [سنن ابی داود :١٩٠٩] ۔ نو دیے سورتونو ته ئے سورة التوحید وئیلے دیے۔ د ترمذی په حدیث کښې راغلی دی:

(يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ أَهْلُ التَّوْحِيْدِ] [الترمذی: ٢٥٩٧ صحيح]۔

(د جهنم نه به توحید والا راوځی)

لنډه دا چه کوم مبتدعین دا وائی چه د توحید لفظ استعمالول بدعت دیے نو دا خبره د هغوی جهالت دیے۔

د توحید معنیٰ ده الله تعالیٰ یواځے ګنړل۔ دا صیغه د مصدر ده د باب تفعیل نه معنیٰ ئے ده یو شے یواځے ګنړل یعنی دا عقیده به لریے چه الله تعالیٰ یواځے دیے۔ [اِعْتِقَادُ وَحْدَانِيَّةِ اللّٰهِ

تَعَالیٰ]۔
(د الله تعالیٰ د یو والی عقیده ساتل)۔
۲ – دویمه معنیٰ ده : [اِفْرَادُ اللّٰهِ بِالْعُبُوْدِيَّةِ]۔
(الله تعالیٰ لره یواځې بندګي کول) او دا اصلي توحید دے او دا هغه توحید دے چه ټولو انبیاء علیهم السلام دے ته دعوت ورکړیدے۔ ددے قیدونو فائدو ته اُوګوره که یو انسان اِفراد اُونکړو یعنی الله رب العالمین ئے په بندګئ یواځې نکړو او د هغه سره ئے شریکان جوړ کړل نو دا مؤحد نهٔ دے، مؤمن نهٔ دے بلکه کافر دے۔
(بالعبودیة) : او که یو سړے نهٔ د الله تعالیٰ عبادت کوی او نهٔ د غیر الله کوی نو دا دهری دے لکه د دهریهٔ هم دا طریقه ده چه نهٔ د الله تعالیٰ بندګی کوی او نهٔ د غیر الله او څوك چه په د باباګانو او اولیاؤ دپاره په عبادتونو رد کوی نو دوی ډیر خوشحالیږی۔ بعض خلق په دوی باندے دهوکه شی چه دا خو غټ مؤحدین دی او دے ته نهٔ ګوری چه دوی خو درله الله تعالیٰ نهٔ منی۔
نو خلاصه دا شوه چه عبادت به کولے شی او بیا به خالص یواځې الله لره کولے شی چه شرك ورسره نهٔ وی۔
مرجئه د مبتدعینو یوه باطله فرقه تیره شویده هغوی به دا وئیل چه صرف کلمه اُووایه (لا اله الا الله) بس تهٔ موحد شوے لکه اُوس هم ډیر خلق دا قسم نیمګړے توحید منی چه وائی قبر ته سجده مهٔ لګوه او د ولی د قبر نه ئے مهٔ غواړه بس تهٔ غټ موحد ئے، حال‌دا چه دا د توحید یوه معمولی حصه ده اصلی توحید دا دے چه د الله تعالیٰ دپاره خالص او ښائسته بندګی اُوکړے شی ځکه ستا خِلقت او پیدائش د خالص عبادت دپاره شویدے۔
﴿ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ ﴾ الذاریات:٥٦)۔
نو صحیح موحد به هغه څوك وی چه هغه کښې د الله تعالیٰ عبادتونه او د الله تعالیٰ دپاره مالی او بدنی مجاهدے زیاتی وی او د ذکر او د اخلاص پابند وی۔ مګر ددے سره یو دریم شرط هم مراد دے چه [اَنْ تَكُوْنَ عَلٰى وَفْقِ السُّنَّةِ]۔دا عبادت به د محمد رسول الله ﷺ په طریقه وی او د هغه د سنت مطابق به وی) که څوك د سره عبادت د الله تعالیٰ نهٔ کوی نو دا خو کافر دے او که څوك یواځې د الله تعالی عبادت کوی لیکن د سنت مطابق نهٔ وی نو دا به مبتدع وی او د هغه عملونه الله تعالیٰ ته قبول نهٔ دی۔
**تنبیه** : بعض خلق وائی د توحید معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ یو کول او الله تعالیٰ خو

بندگان نشي یو کولے بلکه هغه خو پخپله یو دے نو وائی چه دا لفظ استعمالول تیك نهٔ دی۔ مگر ددے خلقو دا خبره غلطه ده۔

وجه دا ده چه د توحید معنیٰ مونږ مخکښ اُوکړه چه د توحید معنیٰ دلته دا نهٔ ده چه الله لره یو کول بلکه دلته ئے معنیٰ د یو گنړلو ده۔یعنی الله تعالیٰ یواځے گنړل ځکه چه توحید او شرك د زړه صفت دے۔ الله تعالیٰ خو په واقع کښ یواځے ذات دے هیڅ شریك او برخه دار نهٔ لری لیکن که بنده ئے په زړه کښ هم یواځے اُوگنړی څنګه چه الله تعالیٰ په واقع کښ یواځے دے نو دیته توحید وئیلے شی او پدے سره د بنده زړه صفا شو او که د بنده زړه گنده وی نو د الله تعالیٰ دپاره په زړه کښ شریکان گنړی اگرکه په واقع کښ د الله تعالیٰ شریکان نشته۔ ﴿تَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ نو د بنده په شریکانو گنړلو سره د الله تعالیٰ دپاره په واقع کښ شریکان نهٔ پیدا کیږی خو بنده خپل زړه گنده کړو۔ پدے وجه مشرکانو ته خبیثان او نجس وئیلے شویدی چه دوی خپله عقیده او زړه گنده کړیدے۔ په الله تعالیٰ باندے ئے بد گمانی پیدا شویده۔

## اقسام التوحید

د بعض سلفو نه نقل دی چه هغوی توحید درے قسمونو ته تقسیموی او دا یوه اصطلاح ده او په اصطلاحاتو جوړولو کښ څه بخل نهٔ وی نو هغوی ددے ماخذ قرآن او حدیث کښ موندلے دے ځکه ئے درے اقسام ذکر کړیدی او بعضو څلور موندلی دی او شیخ الاسلام ابن قیّم په القصیدة النونیة کښ هم ډیر اقسام د توحید ذکر کړیدی او زمونږ د تتبع مطابق د توحید د شلو نه زیات اقسام دی چه بعض د هغے نه دا دی :

(۱) [تَوحِيدُ الرُّبُوبِيَّةِ] دے ته (التوحید العلمی او التوحید الاعتقادی) هم وئیلے شی، توحید ربوبیت دے ته وائی چه الله تعالیٰ یواځے رب او پالونکے د عالَم گنړل، هغه خالق، مالك، رازق، تربیت کونکے، مرض راوستونکے، لرے کونکے، ژوندے کونکے مړ کونکے، باران کونکے بندوونکے او د هغه د ارادے او مشیّت نه بغیر هیڅ کار نهٔ کیدونکے گنړل۔ دا هم ډیر ضروری توحید دے لیکن دا یو داسے توحید دے چه فطرةً ئے هر انسان منی سویٰ د دهریه ؤ نه، مشرکان او کفار ئے هم منی لکه قرآن پدے گواه دے چه مشرکانو ته به کله اُووئیلے شی چه زمکے او آسمانونه چا پیدا کړیدی نو دوی به وئیل چه الله تعالیٰ۔ اختیارات د چا په لاس کښ دی دوی وائی الله۔ رزق څوك درکوی، غوږونه او سترگے چا درکړیدی او تدبیر د کارونو

څوك كوي؟ نو دوي اقرار كوي چه الله۔ (سورة يونس)

(۲) – دويم: [تَوْحِيْدُ الْاُلُوْهِيَّةِ] دے ته توحيد العبادة او توحيد طلبي ارادي هم وئيلے شي۔ يعني په ټولو اقسامو سره به صرف يواځے بندګي د الله تعالىٰ كيدے شي نهٔ د بل چا۔ د ولي بابا، بزرګ، شيخ، پير او مرشد بندګي كول شرك دے، د هغه د الو هيت تعظيم كول شرك دے۔ او ددے خبرے اراده او مطالبه الله تعالىٰ د بندګانو نه كوي۔ ﴿ يَا اَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا رَبَّكُمْ ﴾ (البقرة)۔

**د صوفياؤ طريقه** دا ده چه هغوي هميشه دپاره توحيد ربوبيت ذكر كوي۔ او حال دا چه توحيد ربوبيت يواځے مقصود نهٔ دے بلكه د توحيد ربوبيت سره صرف د الله تعالىٰ معرفت حاصل شي او بيا به ددے نه پس توحيد الو هيت ته ورځے، ځكه چه توحيد ربوبيت يوه وسيله ده دپاره د توحيد عبادت او ثمره ئے توحيد الو هيت دے يعني هركله چه تا الله تعالىٰ خالق، مالك، رازق اُوپيژندلو نو اُوس به د هغه يواځے بندګي كوے۔ نو دوي صرف وسيله بيانوي او نتيجه او ثمره ئے نهٔ بيانوي۔ ددے وجه نه دا دعوت ناقص او نيمګړے دے۔ ځكه يو انسان وائي چه د اولياؤ نه څه نهٔ كيږي او د قبرونو او بتانو او باباګانو نه څه نهٔ كيږي او هغوي مدد نهٔ شي كولے ليكن د الله تعالىٰ بندګي هم نهٔ كوي نو دا توحيد ئے ناقص او نيمګړے دے او يواځے پدے سره دهٔ ته نجات نهٔ ملاويږي څو پورے ئے چه عبادت نهٔ وي شروع كړے۔

دارنګه د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه چه دا قول نقل دے: ﴿كُلُّ عِبَادَةٍ فِي الْقُرْآنِ فَهُوَ التَّوْحِيْدُ﴾۔

(هر عبادت چه په قرآن كښ ذكر دے هغے نه مراد توحيد دے) ددے هم دا مطلب دے چه په قرآن كريم كښ كوم ځائے عبادت ذكر شويدے نو د هغے نه مراد به دا توحيد الالوهية وي يعني بندګي به يواځے الله تعالىٰ دپاره كولے شي۔

(۳) دريم: [تَوْحِيْدُ الْاَسْمَاءِ وَالصِّفَاتِ]۔

(د الله تعالىٰ ټول نومونه او صفتونه د الله تعالىٰ د شان مناسب منل او دارنګه دا صفتونه نور مخلوق له نهٔ ثابتول او پدے كښ تحريف او تاويل او تعطيل نهٔ كول او بيا پدے صفتونو او نومونو د الله تعالىٰ باندے عبادت كول او ددے سره تعلق جوړول دا توحيد الاسماء والصفات دے۔ لكه مثلًا د الله تعالىٰ رحمت، د هغه استواء على العرش، د هغه يد (لاس) د هغه علو(اُوچتوالے)، د هغه محبت، د هغه غضب، د هغه آسمان د دنيا ته

راکوزیدل، د هغه قدم کیخودل وغیره ټول صفات چه الله تعالیٰ ځانله ثابت کړیدی یا د هغه نبی ﷺ هغه دپاره په احادیثو کښې ثابت کړیدی دا ټول منل، د اهل السنة والجماعة عقیده ده۔ او ډیر متکلمین او معتزله پدے کښې تاویلونه کوی او ددے نه انکار کوی۔ اهل سنة محضه په کښې هیڅ قسم تاویل نۀ کوی بلکه بغیر د تاویل نه ئے منی او تشبیه ئے د مخلوق سره هم نۀ ورکوی، کیفیت ئے نۀ بیانوی او حقیقةً ئے منی او اهل سنت غیر محضه یعنی مبتدعین اهل سنة پکښې تاویلات کوی او معتزله او معطله ترے انکار کوی۔ او ماتریده او اشاعره د الله تعالیٰ اُووه او اته صفتونه منی نو دے خلقو کښې توحید الاسماء والصفات کمزورے دے۔

او دا قسم توحید د خواصو بندګانو دے چه د الله تعالیٰ د صفاتو نه خوند او مزه اخلی د هغے ورد او وظیفه کوی، د هغے په وسیله د الله تعالیٰ نه دعاګانے غواړی۔ او ددے مطابق خپل ځان او خپل حال جوړوی لکه مثلًا په الرحمن صفت کښې سوچ اُوکړه د هغه رحمتونه او نعمتونه اوبے شماره احسانات په خپل ځان او په ټول مخلوق کښې اُوګوره نو د الله تعالیٰ ددے صفت سره به ډیر مینه پیدا شی۔ دغه شان الله تعالیٰ وکیل (ذمه وار) ذات دے نو په صحت او مرض او غریبئ او مالدارئ کښې ځان په الله تعالیٰ اُوسپاره او دا عقیده جوړه کړه چه الله تعالیٰ به ما نۀ ضائع کوی نو د الله تعالیٰ سره به ډیر تعلق پیدا شی۔

حدیث کښې دی: [إِنَّ لِلّٰهِ تِسْعًا وَتِسْعِيْنَ اسْمًا مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ] [متفق علیه] ۔(د الله تعالیٰ دپاره یو کم سل نومونه دی چا چه دا اُوشمارل نو جنت ته به داخل شی) د من احصاها معنیٰ ده [مَنْ حَفِظَهَا وَآمَنَ بِهَا وَعَمِلَ بِمُقْتَضَاهَا وَدَعَا بِوَسِيْلَتِهَا] ۔(چا چه دا نومونه په یادو یاد کړل او بیا ئے پدے باندے ایمان راوړو او بیا ئے ددے د تقاضا مطابق عمل اُوکړو او د هغے په وسیله ئے د الله تعالیٰ نه دعاګانے کولے) نو جنت ته به داخلیږی۔

دا هغه شرعی غوره وسیله ده۔

د الله تعالیٰ د سلونه زیات بلکه بے شماره صفتونه او نومونه دی چه دنیا کښې بندګانو ته ټول نۀ دی ښکاره شوی او په قیامت کښې به هغه راښکاره کیږی لیکن پدے یو حدیث کښې صرف د یو کم سلو دغه فضیلت راغلو۔ چه دا سبب د جنت د داخلیدو ګرځی۔

**فائده**: د الله تعالیٰ صفات په درے قسمه دی:

۱ – بعض هغه صفتونه دی چه الله تعالیٰ پورے خاص وی د مخلوق دپاره ئے استعمالول جائز نۀ وی لکه لفظ د الله تعالیٰ او الرحمن، الصمد، الرب، خالق الاشیاء، خالق العالَم شو۔

دا صرف د الله تعالیٰ د خصوصیاتو نه دے۔

۲- دویم هغه صفات دی چه د بندگانو پورے خاص وی د الله تعالیٰ دپاره نهٔ وئیلے کیږی لکه فلان کثیر الاولاد، (ډیر اولادو والا) کثیر الازواج (ډیرو ښځو والا) فُلَانٌ يَنَامُ (فلانے خوب کوی) فُلَانٌ فِیْ بَدَنِهٖ وَجَعٌ ۔ (د فلانی په بدن درد دے) دغه شان د خوراك، څکاك او د کمزورتیا صفات به الله تعالیٰ دپاره نشی وئیلے۔

۳- دریم هغه صفات دی چه د الله تعالیٰ او د بندگانو ترمینځ مشترك وی لکه رحیم او رؤوف، سمیع، بصیر، علیم، وغیره۔ چه دا د بندگانو دپاره هم استعمالیږی او د الله تعالیٰ دپارهٔ هُم لیکن دا اشتراك صرف په ظاهری نوم کښ دے او نور په حقیقی صفاتو کښ شرکت نشته یعنی د الله تعالیٰ رحمت او د هغه رأفت او د هغه سمع او بصر او د هغه علم د مخلوق د علم نه بالکل جدا دے لکه څنگه چه د الله تعالیٰ ذات د مخلوق د ذات نه جدا دے۔ ځکه مخلوق په رحمت او سمع او بصر او علم کښ اسبابو ته محتاج دے او الله تعالیٰ بغیر د اسبابو نه علیم او قدیر دے۔ د بندگانو رحمت رقة القلب ( د زړه نرموالی) ته وئیلے شی او د الله تعالیٰ د رحمة حقیقت صرف الله تعالیٰ معلوم دے، د بندگانو پشان نهٔ دے۔

٤- **توحيد الحاكمية** : یعنی الله تعالیٰ یواځے حاکم، شارع او قانون ساز کنټرول، قانون جوړول د هغه پورے خاص دی ځکه چه دا ټول کائنات او مخلوقات او انسانان د هغه دی نو بس قانون او نظام به هم د هغه چلیږی ۔ مثلًا ته یو عاقل سړے ئے ستا ښځه او بچی دی، هغوی له کورتا جوړ کړو، رزق ورله تهٔ راوړے او د کور خلق ډے د بل چا قانون چلوی او ستا خبره ډے نهٔ منی او په خپله طبع ژوند تیروی نو دا څومره ظلم دے۔ ته به څومره غصه او خفه کیږے، ښځه به طلاقه کړے او د بچو نه به جدا شے۔

نو دغه شان الله تعالیٰ دا کارخانه د عالَم جوړه کړه او بندگانو ته په کښ ژوند او رزق او اسباب ورکوی او دا بندگان رالگی قانون او ازم او طریقه د بل چا چلوی نو دا څومره لوئی مشرك دے۔ الله تعالیٰ ورته کافر، ظالم او فاسق وئیلے دے۔ ﴿ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ فَأُولٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُوْنَ﴾ [المائدة: ٤٤] ۔ د قانون په باره کښ د انسانانو طریقے او مذهبونه او عقیدے مختلفے دی۔

د بعض کافرانو دا عقیده ده چه قانون سازی به د ملك بادشاه جوړوی، هغه ته ددے پوره واك او تصرف حاصل دے۔

بعض کفار وائی چه قانون ساز به عوام وی، عامو خلقو چه کومه رائے ورکړه او په کومه

خبره ئې اتفاق راغلو نو بس دغه به قانون وي لکه همدا مقصد د جمهوريت دے چه الحاکمية للعوام۔ قانون ساز به عوام وي که عوامو بے حيائي راوستل غوختل نو هغه به نافذ کولے شي او که هغوی دين غواړي نو دين به ورله راوستے شي۔ نو ځوك چه د جمهوريت آوازونه کوي او دے طرف ته دعوتونه ورکوي نو شعوري يا غير شعوري طور سره ئې ځانونه د ايمان نه خلاص کړل۔ بعض سياسيان وائي : د جمهوري آئين احترام فرض دے۔ او پدے باندے حلف او قسم ترے اخلي چه ددے احترام به کوم، کله ليکي : عوام طاقت کا سرچشمہ)۔

کله اخبارونو کښ ليکي : جمہوریت بحال کرو۔ لهذا دے خبرے ته متوجه کيدل پکار دي، ډيرو تنظيمونو والو کښ دا مرضونه موجود دي او د اسلام دعوے کوي او حال دا چه د اسلام دپاره همدا خلق لوئی رکاوټ دے، د اسلام په نوم باندے مالونه راټولوي، او خپله خيټه سنبالوي۔ ولا حول ولا قوة الا بالله۔ والله المستعان۔

تاريخ گواه دے چه د جمهوريت په طريقه هيڅ کله اسلام نۀ راځي بلکه د جمهوريت طريقه کفارو د اسلام د نۀ راتلو دپاره جوړه کړيده ځکه عوام خلق خو غالباً بے حيائي او گمراهي خوښوي چه د دوی خواهشات پکښ آزاد وي۔

لهذا هيڅ کله به اسلام نۀ راځي۔ لکه دے خبره باندے هر عقلمند پوهيږي او پوهه شويدی۔

د يهود او نصاراؤ دا عقيده وه چه حاکم به احبار او رهبان وي يعني مليان او پيران به قانون جوړوي که دوی څه حلال کړل بس هغه به حلال وي او که دوی څه ته حرام اُووئيل نو بس هغه به حرام وي۔ او که دوی کوم شي ته ښه اُووئيل هغه به ښه وي او که بد ئې ورته اُووئيل، هغه به بد وي۔ دا د يهود او نصاراؤ د الله تعالیٰ سره شرك وو په حاکمية او شرع کښ۔

پدے باندے الله تعالیٰ بار بار ردونه کوي۔

﴿ اِتَّخَذُوْا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَاباً مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ [التوبة : ۳۱] ۔

(دوی خپل مليان او پيران د الله نه سویٰ قانون ساز نيولی دی)

﴿ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَنْ لَّانَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَاباً مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ [آلعمران : ٦٤]۔

(اے اهل کتابو راشئ یو داسے خبرے ته چه زمونږ او ستاسو ترمینځ برابره ده هغه دا چه د الله نه سوئ به د بل هیڅا بندګی نهٔ کوو او بعض بعضو لره د الله نه سوئ قانون نهٔ جوړوو)

﴿ اَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوْا لَهُمْ مِنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللّٰهُ ﴾ [الشوری:۲۱]۔

(آیا دوی دپاره داسے معبودان دی چه د دین نه ئے ورله هغه شے مقرر کړیدے چه د هغے اجازت الله تعالیٰ نهٔ دے کړے)۔

دیته ارباب من دون الله وئیلے شی او دوی ته شارعان بغیر اذن الله وئیلے شی۔ دوی ئے د الله تعالیٰ په شان ګڼړلی وو۔ چه د هغوی حلال به ئے حلال او حرام به ئے حرام ګڼړل او قرآن بعینهٖ دیته شرك اُووئیلو۔ دیته شرك فی التحلیل والتحریم هم وائی۔

او دا مرض زمونږ پدے امت کښې په جامد مقلدینو کښې هم موجود دے چه هغوی د خپل مجتهد، امام نه قانون ساز جوړوی چه هغه ورته څه روا کړی هغه روا ګڼړی او چه څه ورته حرام کړی هغه حرام ګڼړی د دلیل تپوس ترے نهٔ کوی لکه دوی لیکلی دی:

[لَايُسْئَلُ عَنْ مُجْتَهِدٍ عَنِ الدَّلِيْلِ] [حاشية رد المحتار كتاب الطهارة ۱/۸۰]۔

د مجتهد نه به د دلیل تپوس نشی کولے) ته به وائے ګویا کښې دا چرته الله تعالیٰ رالیږلی پیغمبران دی۔ دا بعینهٖ د ددے یهودو مرض وو۔ چه خپلو ملیانو ته به ئے دا نهٔ وئیل چه دا مسئله تا د کوم ځائے نه اُوکړه آیا پدے دلیل شته او که نهٔ او حال دا چه زمونږ په دین کښې خو امر راغلے دے۔ ﴿ فَتَبَيَّنُوْا ﴾ (الحجرات:٦)۔

(تحقیق کوئ) او ځان صحیح خبرے ته رسوئ۔

بل ځائے امر دے: ﴿ فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَاتَعْلَمُوْنَ بِالْبَيِّنَاتِ ﴾ [النحل:٤٣]۔

(که خپله نهٔ پو هیږئ نو د علماؤ نه د بینات (واضح دلیلونو) تپوس کوئ) هغوی به درته د قرآن او حدیث نه مسئله راوباسی۔

﴿ وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ﴾ [الاسراء:۳٦]

(مه روانیږه د هغه شی پسے چه ستا په هغے علم نهٔ وی) لهذا زمونږ په دین اسلام کښې د علماؤ خپله درجه ده او د انبیاء علیهم السلام خپله درجه ده، علماء به علماء ګڼړو د دین بیانونکی به ئے ګڼړو، او د دین چراغان او شمعے او بلپونه به ئے ګڼړو چه مونږ ته ئے دین بیان کړیدے او شارعان به ئے نهٔ ګڼړو۔

کـه هـغـوی یـوه خبـره د دلیـل نـه خطاء اُوکړه نو هغه به ورسره نۀ منو او د عالِم به احترام کوو۔ او دا د اهل سنت والجماعة طریقه ده چه دوی وائی الحاکمیة لله عزوجل۔

شارع او حاکم او قانون جوړونکے به صرف الله تعالیٰ وی او قانون جوړول به د الله تعالیٰ پورے خاص وی۔ د لاډمیکالے قانون د شرع خلاف قانون دے چه دا د انګریزانو یو چانسلر او ماهر وو، دۀ انګریزانو له یو قانون جوړو کړو چه هغه اُوس په ټوله دنیا باندے رائج دے۔ دا غلط قانون دے۔ لهذا مسلمانان به صرف د الله تعالیٰ قانون منی او د هغے د قائمولو کوشش به کوی۔

اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنَا لِقِيَامِ شَرْعِكَ الْمَتِيْنِ وَلِخِدْمَةِ دِيْنِكَ الْقَوِيْم آمین !

د توحید نور اقسام په الفوائد کښ اُوګوره۔

## ٦- الامر السادس :

[اَلْكِتَابُ وَالسُّنَّةُ يَجْرِيَانِ عَلَى الظَّاهِرِ وَعَلَى الْمَعْهُوْدِ عِنْدَ عَامَّةِ الْعَرَبِ]۔

(٦- بـلـه قـاعـده دا ده چه قرآن او حدیث به په ظاهر باندے روان پریخودلے شی او په هغه څـه چـه عـامـو عـربـو تـه معلومه ده) یعنی عربو چه د یو لفظ کومه معنیٰ په هغه زمانه کښ مراد کوله نو بس هغه به د الله تعالیٰ او د رسول مراده وی۔

علامه شاطبیؒ او قاسمیؒ ددے خبرے تشریح داسے کوی :

[لَابُدَّ فِیْ فَهْمِ الشَّرِيْعَةِ مِنِ اتِّبَاعِ مَعْهُوْدِ الْاُمِّيِّيْنَ وَهُمُ الْعَرَبُ الَّذِيْنَ نَزَلَ الْقُرْآنُ بِلِسَانِهِمْ فَاِنْ كَانَ لَهُمْ عُرْفٌ مُسْتَمِرٌّ فَلَايَصِحُّ الْعُدُوْلُ عَنْهُ فِیْ فَهْمِ الشَّرِيْعَةِ وَاِنْ لَمْ يَكُنْ ثَمَّ عُرْفٌ فَلَايَصِحُّ اَنْ يُّجْرِیَ فِیْ فَهْمِهَا مَا لَاتَعْرِفُهُ وَهٰذَا جَارٍ فِی الْاَلْفَاظِ وَالْمَعَانِیْ وَالْاَسَالِيْبِ الخ]۔ القاسمی [۱/۹٤]۔

(حاصل ئے دادے چه په شریعت باندے که څوك ځان په صحیح معنو کښ پو هه کول غواړی نو هغه دپاره ذا ضروری ده چه د هغه عربو د اصطلاح تابعداری به کوی چه قرآن کریم د هغوی په ژبه او اصطلاح باندے نازل شویدے که یوه خبره په هغوی کښ مشهوره وه بس په آیت او حدیث کښ به هم د هغه لفظ همغۀ معنیٰ او مراد وی څنګه چه هغوی کښ مشهوره وی۔ د هغے نه به اَوړیدل د شریعت د فهم نه جدائی وی۔ او دا په ټولو الفاظو او معانیو او طریقو کښ جاری خبره ده)۔

یعنی آیت او حدیث به د بندګانو په خپله اصطلاح باندے نشی حمل کولے۔ او دارنګه

قرآن او حدیث به په ظاهر باندې پرېخودلې شي او د هغې نه به بغیر د دلیل نه اَوړېدل صحیح نۀ وي. د اولې خبرې مثال لکه: ((کلمه)) لفظ شو چه دا په اصطلاح د متأخرینو کښې هغه یو مفرد لفظ ته وئیلې شي چه د یوې معنیٰ دپاره وضع شوې وي او حال دا چه د قرآن او د حدیث په اصطلاح کښې ((کلمه)) ټولې جملې ته وئیلې شي. لکه کلمة التوحید. مستقله جمله ده.

دارنګه کله ټول قرآن باندې هم د کلمې اطلاق شویدې لکه:
﴿وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا﴾ [الانعام:۱۱۵].

دارنګه ((بینه)) لفظ په اصطلاح د متأخرینو کښې دوه ګواهانو ته وئیلې شي او په اصطلاح د قرآن او حدیث کښې [كُلُّ مَا يَتَبَيَّنُ بِهِ الْحَقُّ] ته وئیلې شي یعنی (هر هغه شے چه حق پرې ښکاره کیږي) .دوه ګواهان وي او که یو وي او که ډیر وي، ماشومان وي او که غټ، مسلمان وي که کافر. نو د دوی ګواهي به صحیح وي.

دغه شان حدیث کښې راځي: [اَلْوِتْرُ حَقٌّ، وَاجِبٌ]
[الدارقطنی ۲/ ۳٤۰ والطیالسی].

(وتر حق او ثابت دی) په شریعت کښې د واجب معنیٰ ده ثابت، او لازم که دا په درجه د فرضیت کښې وي او که د وجوب یا سنیت کښې وي. او د احنافو په اصطلاح کښې واجب هغه درجه ده چه د فرضو نه خکته وي او د سنتو نه بره وي نو دوی چه کله حدیث کښې د واجب لفظ اُوویني نو زر اُووائي اُوګوره حدیث کښې راغلي دي چه وتر واجب دي. او د واجب نه مراد خپله اصطلاح اخلي نو دا د حدیث صحیح فهم نۀ دے.

بیا فرمائی :[فَلَايَسْتَقِيْمُ لِلْمُتَكَلِّمِ فِيْ كِتَابٍ اَوْ سُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ اَنْ يَّتَكَلَّفَ فِيْهِمَا فَوْقَ مَا يَسَعُهٗ لِسَانُ الْعَرَبِ] .(په قرآن او حدیث کښې د هیڅ خبرې کونکی دپاره دا جائز نۀ دي چه په دے کښې هغه خبرے په زوره داخلې کړي چه د عربو د ژبے سره سمون نۀ خوري).
[تفسیر القاسمی :۱/٦٦].

او دا قاعده هم ډیره مهمه ده چه اعتبار به ظاهر د قرآن کریم او سنت دپاره وي مګر که د ظاهر خلاف یو دلیل موجود شي نو بیا به د ظاهر نه اړولې شي ددے وجه نه ابوالحسن الاشعريؒ په الابانه ص (٦٨) کښې لیکی : [وَالْقُرْآنُ عَلٰى ظَاهِرِهٖ وَلَيْسَ لَنَا اَنْ نُزِيْلَهٗ عَنْ ظَاهِرِهٖ اِلَّا لِحُجَّةٍ وَاِلَّا فَهُوَ عَلٰى ظَاهِرِهٖ].

(او قرآن کریم به په خپل ظاهر باندے بناء وي او مونږ دپاره دا جائز نۀ دي چه د ظاهر نه ئے

وارو مکيږي په دليل سره او که دليل نۀ وي بيا به دا په خپل ظاهر باندے جاري وي)۔
او تفتازاني په شرح العقائد النسفي ص (۱۱۹) کښې ليکي :
[وَالنُّصُوْصُ مِنَ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ تُحْمَلُ عَلٰى ظَوَاهِرِهَا مَا لَمْ يَصْرِفْ عَنْهَا دَلِيْلٌ قَطْعِيٌّ وَالْعُدُوْلُ عَنْهَا إِلٰى مَعَانٍ يَدَّعِيْهَا اَهْلُ الْبَاطِنِ اِلْحَادٌ] ۔ (او د کتاب او سنت نصوص او الفاظ به په خپل ظاهر باندے حمل وي ترڅو چه دليل قطعي د هغے نه بل طرف ته اړول نۀ وي کړي۔ او د ظاهر نه عدول کول هغه معني ګانو او مقاصدو ته چه اهل الباطن (متصوفه، صوفياء) د هغے دعوه کوي دا په دين کښې الحاد دے) يعنې څوک چه د قرآن او حديث ظاهر په غير د موجب نه پريدي او د ځان نه داسے مطلبونه او مقاصد او اشارات مراد کوي چه هغه د قرآن او سنت مخالف وي نو دا انسان مُلحد دے لکه باطنيه فرقے به د اقيموا الصلاة معنىٰ دا کوله چه نيت پاك کړه، او دغه شان د نورو نصوصو د خپلے رائے مطابق معاني کوي لکه ډيرو تفاسيرو کښې داسے غلط قسم اشارات او معاني موجودي دي چه د نصوصو سره ئے ټکراؤ راځي۔

**فائده نفيسه :**

د اهل ظواهرو لفظ د درے قسمه خلقو دپاره استعماليږي۔

(۱) يو قسم هغه خلق دے چه د باطنيه ؤ په مقابله کښې وي نو پدے معنىٰ باندے ټول اهل سنت اهل ظواهر دي۔ چه په آيت او حديث کښې ظاهري او عرفي معاني اخلي او باطني غلط مطلبونه نۀ مراد کوي۔

(۲) دويم اهل ظواهر هغه فرقه ده چه مخکښې تيره شويده چه هغوي به قياس او تعليل نۀ منلو يعني وائي چه په شريعت کښې قياس او علت او حکمت له اعتبار نشته۔ لکه په دوي کښې يو داود ظاهريؒ او ابن حزم ظاهريؒ دے د دوي اکثر مسائل حق او صحيح دي بعض مسائل ئے تفردات دي او د نصوصو خلاف دي۔

(۳) دريم قسم اهل ظواهر هغه خلقو ته وئيلے شي چه په مقابله د اهل تاويل کښې وي يعني په قرآن او حديث کښې بے ځايه تاويلات نۀ کوي بلکه نصوص په خپل ظاهر باندے پريدي او پدے معنىٰ باندے هم ټول اهل سنت محضه اهل ظواهر دي۔ او مبتدعين ددے په خلاف دي۔

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله فرمائي : [إِنَّ صَرْفَ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ عَنْ ظَاهِرِهِمَا إِلٰى بَاطِنٍ يُخَالِفُ الظَّاهِرَ وَإِلٰى مَجَازٍ يُنَافِي الْحَقِيْقَةَ لَابُدَّ فِيْهِ مِنْ اَرْبَعَةِ اَشْيَاءَ]۔(يعني قرآن او حديث

د خپل ظاهر نه باطن ته اړول چه د ظاهر خلاف وي يا داسے مجاز ته اړول چه د حقيقت ضد وي نو ددے دپاره څلور خبرے ضروري دي. مطلب دا چه ته حقيقت پريدے او مجازي معنىٰ اخلے او ظاهري معنىٰ پريدے او باطني معنىٰ اخلے نو څلور دلائل به پرے راوړے:

[ ١ - اَحَدُهَا اَنْ يَّكُوْنَ ذٰلِكَ الْمَعْنَى الْمَجَازِيُّ مُسْتَعْمَلاً فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ وَيَجُوْزُ اَنْ يُّرَادَ بِهٰذَا اللَّفْظِ ]

(اول دليل دا چه دغه معنىٰ مجازي به په كلام د عربو كښ مستعمله وي او دارنګه دا به جائز وي چه د دغه لفظ نه مراد كړے شي او مناسبت ئے هم وي)

[ ٢ - اَلثَّانِيْ : اَنْ يَّكُوْنَ مَعَهٗ دَلِيْلٌ يُّوْجِبُ صَرْفَ اللَّفْظِ عَنْ حَقِيْقَتِهٖ اِلٰى مَجَازِهٖ وَاِلَّا فَاِذَا كَانَ يُسْتَعْمَلُ فِيْ مَعْنًى بِطَرِيْقِ الْحَقِيْقَةِ وَفِيْ مَعْنًى بِطَرِيْقِ الْمَجَازِ لَمْ يَجُزْ حَمْلُهٗ عَلَى الْمَعْنَى الْمَجَازِيِّ بِغَيْرِ دَلِيْلٍ يُوْجِبُ الصَّرْفَ بِاِجْمَاعِ الْعُقَلَاءِ ]

(دويم دا چه ددۀ سره داسے دليل وي چه هغه به لفظ د خپلے حقيقي معنىٰ نه مجازي معنىٰ ته اړول لازموي. كه دليل نۀ وي موجود او داسے وي چه دغه لفظ كله په حقيقي معنىٰ كښ استعماليږي او كله په مجازي معنىٰ كښ نو هلته به ئے په مجازي معنى باندے حمل كول جائز نۀ وي كله چه دليل نۀ وي او پدے خبره د ټولو عقلاؤ اجماع او اتفاق دے).

[ ٣ - اَلثَّالِثُ : اَنَّهٗ لَابُدَّ اَنْ يَّسْلَمَ ذٰلِكَ الدَّلِيْلُ الصَّارِفُ عَنْ مُعَارِضٍ، وَاِلَّا فَاِذَا قَامَ دَلِيْلٌ قُرْاٰنِيٌّ اَوْ اِيْمَانِيٌّ اَنَّ الْحَقِيْقَةَ مُرَادَةٌ اِمْتَنَعَ تَرْكُهَا ].

(دريم دا چه دغه دليل چه لفظ د معنىٰ حقيقي نه معنى مجازي ته نقل كوي ددے مقابل كښ به بل دليل نۀ وي او د معارض دليل نه به سالم وي كه داسے نۀ وي بلكه قرآني يا ايماني دليل موجود وي چه دلته حقيقي معنىٰ مراد ده نو بيا به د حقيقي معنىٰ پريخودل او مجازي معنىٰ اخستل ممنوع وي).

[ ٤ - اَلرَّابِعُ : اِنَّ الرَّسُوْلَ ﷺ اِذَا تَكَلَّمَ بِكَلَامٍ وَاَرَادَ بِهٖ خِلَافَ ظَاهِرِهٖ وَضِدَّ حَقِيْقَتِهٖ فَلَابُدَّ اَنْ يُّبَيِّنَ لِلْاُمَّةِ اَنَّهٗ لَمْ يُرِدْ حَقِيْقَتَهٗ ] (مجموع الفتاوى (١ / ٣٦٠) (مخلصاً).

(څلورم دا چه رسول الله ﷺ كله يوه خبره اُوكړي او د هغه مراد دا وي چه ددے خبرے ظاهري معنىٰ نۀ ده مراد او ددے د حقيقي معنىٰ ضد مراد دے نو بيا خو په هغه باندے دا لازمه ده چه امت ته به ددے بيان كوي چه زما حقيقي معنىٰ نۀ ده مراد) ځكه چه اصل په استعمال كښ خو حقيقت دے او د حقيقت نه چه عدول كيږي معنىٰ مجازي ته نو د دغے

بیان ضروری دے۔ ددے مثال دا دے لکه حدیث کښې دی چه [اِنَّ هٰـذِهِ الْقُبُوْرَ مَمْلُوْئَةٌ ظُلْمَةً] ۔(دا قبرونه د تیارو نه ډك دی) نو د قبر ظاهری او حقیقی معنیٰ همدا کنده ده چه مړے پکښې قرارے کوی نو که څوك دا وائی چه ددے قبر نه دا قبر محسوس نهٔ دے مراد بلکه ددے نه مراد برزخ دے (لکه چه بعض بدعتیان پدے زمانه کښې دا خبره کوی)۔

نو مونږ وایو په قرآن او په حدیث کښې خو لفظ د قبر ذکر دے نو که چرته ددے نه دا کنده او دا قبر د نبی ﷺ مراد نهٔ وے نو بیا په هغه لازمه وه چه امت ته ئے وئیلی وے چه اے خلقو ! پدے کنده او پدے قبر کښې عذابونه نشته، دا عقیده مهٔ ساتئ۔

لهذا قرآن او حدیث به په ظاهر پریخودے شی او کله چه تا دا قاعده زده کړه نو بیا به په تا باندے په قرآن او حدیث کښې هیڅ اشکال نهٔ راځی۔ او بغیر د تقدیراتو راویستلو نه به قرآن کریم لګیږی۔ ددے ډیر مثالونه تفسیر کښې ځائے په ځائے اُوګورئ۔

## ۷- الامر السابع : معرفة اسباب النزول :

[ اوم بحث : اسباب النزول پیژندل دی]۔

یعنی د آیتونو د نازلیدو سبب پیژندل او دیته شان النزول هم وئیلے شی۔ ددے د پیژندلو د فائدے متعلق شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله فرمائی : [مَعْرِفَةُ سَبَبِ النُّزُوْلِ یُعِیْنُ عَلٰی فَهْمِ الآیَةِ فَاِنَّ الْعِلْمَ بِالسَّبَبِ یُوْرِثُ الْعِلْمَ بِالْمُسَبَّبِ ]۔

(د آیت شان نزول پیژندلو سره د آیت فهم او پوهه کښې آسانی راځی ځکه چه کله په سبب باندے انسان پوهه شی نو دے سره په مسبب باندے هم پوهه حاصلیږی)۔ او ډیر کرت کله چه انسان سبب د نزول نهٔ وی پیژندلے نو په اشکالاتو او شبهاتو کښې واقع کیږی، واضح آیت وی او انسان ئے په مطلب پوهه نشی۔

یو اثر کښې راځی چه حاصل ئے دا دے : سیدنا عمر فاروق ﷺ یوه ورځ یوائے ناست وو او ځان سره ئے سوچ کولو چه دا امت به څنګه اختلاف کوی او حال دا چه زمونږ الله تعالیٰ یو دے او کتاب یو دے او نبی یو دے او قبله یوه ده او سره ددے نه چه په دے امت کښې بیا هم اختلاف پیدا کیږی ددے به څه سبب وی ؟

نو عبد الله بن عباس رضی الله عنهما ددے دا جواب ورکړو :

[اِنَّـا اُنْـزِلَ الْـقُرْآنُ عَلَيْنَا فَقَرَأْنَاهُ، وَعَلِمْنَا فِيْمَ نَزَلَ وَاِنَّهُ سَيَكُوْنُ بَعْدَنَا اَقْوَامٌ يَقْرَؤُوْنَ الْقُرْآنَ وَلَا يَدْرُوْنَ فِيْمَ نَزَلَ فَيَكُوْنُ لَهُمْ فِيْهِ رَأْيٌ، فَاِذَا كَانَ لَهُمْ فِيْهِ رَأْيٌ اخْتَلَفُوْا، اقْتَتَلُوْا]۔

(چه کله په مونږ قرآن کریم نازلیدو نو مونږ د هغې نه خبر وو چه دا د څه په باره کښې نازل دے او کوم وخت کښې نازل دے او کوم موقعه کښې نازل دے۔ (یعني اسباب النزول باندے پوهه یو) (دا وجه وه چه د صحابه کرامو داسې ډیر اختلافات نهٔ پیدا کیدل) او روستو زمانه کښې به داسې خلق راشي چه ظاهري الفاظ د قرآن به لولي لیکن اسباب النزول به ورته معلوم نهٔ وي نو د هغوی دپاره به په قرآن کښې رأیه وي یعني خپلے طبع او رائے سره به قرآن لګوي نو په غلطو تاویلاتو او تحریفاتو کښې به واقع کیږي نو د هغې په وجه به ئے اختلاف پیدا کیږي۔ او بیا به خبره قتل وقتال ته رسي)۔ نو عمر فاروق ابن عباس لره پدے جواب زورنه او رټنه ورکړه (چه زه درنه د اختلاف سبب تپوسم او ته راته وائي چه اسباب النزول نه به خبر نهٔ وي ددواړو څه مناسبت دے ؟) نو ابن عباس ترے لاړو او عمر فاروق د هغه په خبره کښې سوچ شروع کړو بیا ئے ورپسے جواب وراُولیږلو او دا ئے ورته اُووئیل چه ستا خبره بالکل صحیح ده۔ (ابوعبید عن ابراهیم التیمی - القاسمی ۱/ ۲۶)۔

ځکه چه قرآن کریم ذو وجوه دے، ډیر مخونه او ډیر طرفونه لري، هر طرف ته ئے مخ اړوي نو چه بنده اسباب د نزول نهٔ وي پیژندلي نو په غلطو مطلبونو اخستو اخته شي لکه ډیر کفار، مشرکین او اهل بدع، ګمراهان د قرآن کریم نه استدلالونه کوي او د خپلو غلطو عقیدو اثبات پرے کوي۔

لهذا کله چه انسان اسباب النزول اُونهٔ پیژني نو هغه به په ډیرو اشکالاتو کښې واقع کیږي لکه د بخاري کتاب التفسیر کښې حدیث دے : مروان بن الحکم یو ځل دا آیت کریمه : ﴿ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَا اَتَوْا وَيُحِبُّوْنَ اَنْ يُحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا ...... الآية﴾ [آلعمران : ۱۸۸ ] اُولوستلو او اشکال پرے راغلو او دا ئے اُووئیل : [لَئِنْ كَانَ كُلُّ امْرِئٍ فَرِحَ بِمَا اُوْتِيَ وَاَحَبَّ اَنْ يُحْمَدَ بِمَا لَمْ يَفْعَلْ مُعَذَّبًا، لَنُعَذَّبَنَّ اَجْمَعُوْنَ] [متفق علیه]۔ که چرته هر سړے په هغه څه خوشحالیږي چه کوم شے ورته ورکړے شوے وي او دا خوښوي چه ددهٔ صفت ډِے اُوکړے شي په هغه څه چه هغه ئے نهٔ وي کړے نو بیا خو مونږ ټولو له عذاب دے) یعني انسان یو کار نهٔ دے کړے او غواړي چه خلق ددهٔ صفت اُوکړي چه دا ډیر اُوچت سړے دے او

دا کار ئے کړیدے نو که پدے باندے مونږ ته الله عذاب راکوی نو بیا خو به مونږ ټولو دپاره عذاب وی ځکه مونږ ټول دا غواړو چه سړی نیکی نهٔ وی کړی او دا تمنا لری چه خلق دده صفت اُوکړی۔ جهاد ئے نهٔ دے کړے او خلق ورته مجاهد اُووائی۔

نو ددے آیت د مطلب معلومولو دپاره ئے د ابن عباسؓ پسے سړے اُولیږلو۔ نو ابن عباسؓ ورته دا بیان کړه چه دا آیت په باره د اهل کتابو کښ نازل دے چه کله د دوی نه نبی ﷺ د یو شی په باره کښ تپوس اُوکړو نو هغوی د پیغمبر نه پټ کړو او د هغه شی خلاف جواب ئے ورکړو او پیغمبر ته ئے وراُوخودل چه دوی د هغه څیز په باره کښ هغه ته خبر ورکړو د کوم په باره کښ چه هغه تپوس کړے وو۔ نو بیا ئے د هغه نه پدے باندے صفتونه طلب کول) انتهیٰ ۔ چه زمونږ صفت اُوکړه چه مونږ تا ته څنګه ښه جواب درکړو۔

یعنی یو سړے غلط دین بیان کړی او بیا د خلقو نه صفتونه کول غواړی لکه دا د ډیرو ملیانو عادت دے۔ د خلقو ایمانونه او عقیدے تباه کړی او بیا وائی مونږ د دین ډیرخدمت اُوکړو۔ نو مطلب دا شو چه دا آیت د هغه چا په باره کښ نازل دے چه غلط دین بیانوی او حق پټ کړی او بیا د خلقو نه صفتونه غواړی۔ او دا مطلب نهٔ دے چه یو نیك عمل ئے نهٔ دے کړے او خلق ئے په هغے باندے صفت کوی او دا پرے خوشحالیږی۔

۲ – دارنګه عثمان بن مظعون او عمرو بن معدیکرب رضی الله عنهما دواړو به وئیل : چه شراب مباح دی او دلیل ئے ددے آیت نه نیولو :﴿ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْا...... ﴾[الآية المائدة :۹۳]۔

(یعنی په ایمان والو ګناه نشته چه دوی څه خوړلی وی) یعنی شراب ئے څکلی وی۔ یعنی د شرابو حراموالے صرف د کافرو دپاره دے نهٔ د مؤمنانو دپاره۔ دا څومره لوئی صحابه کرام دی لیکن د آیت ظاهری الفاظو ته ئے کتل او شان نزول ورته نهٔ وو معلوم نو پدے وجه ئے ذهن بل طرفته لاړو او مسئله ئے خطاء شوه۔ او ددے شان نزول دا وو چه هرکله شراب حرام کړے شو نو څه خلقو ته دا شك راپیښ شو چه د هغه مسلمانانو به څه حال وی چه هغوی د الله تعالیٰ په لار کښ شهیدان شویدی یا په خپل مرګ وفات شویدی او هغوی خو به دا شراب څکل (شراب ئے خیټو کښ وو) او حال دا چه دا خو پلیت شے دے ؟) نو دا آیت نازل شو۔ [رواه احمد والنسائی وغیرهما] ۔ چه دا کسان ګناهګار نهٔ دی ځکه چه په هغه وخت کښ خو شراب حرام نهٔ وو۔ لهذا دا نجس شے نهٔ وو۔ او دغه شان خبره د بیت المقدس د قبلے په باره کښ هم راغلے ده۔

۳- مثال :﴿ إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ ﴾ [البقره:۱۱۵]۔
ددے آیت نه ظاهر کښې د سعی فرضیت نهٔ معلومیږی نو ددے وجه نه په عروهؓ باندے عائشےؓ رد اُوکړو چه ددے آیت مطلب خو دا نهٔ دے چه ګنے که څوك د صفا او مروه ترمینځ سعی اُونکړی نو هغه به ګناهګار نهٔ وی۔
بلکه دا آیت نازل شویدے په باره د انصارو کښې چه هغوی به مناة بت دپاره احرام تړلو او صفا مروه کښې سعی به ئے ګناه ګڼړله نو کله چه اسلام راغلو، دوی د رسول الله ﷺ نه ددے د سعی په باره کښې تپوس اُوکړو نو دا آیت نازل شو۔ یعنی مطلب دا شو چه تاسو چه د صفا او مروه ترمینځ په سعی کولو کښې ګناه ګڼړئ نو دا ګناه نهٔ ده۔ او دا مطلب نهٔ دے چه ګنے سعی فرض نهٔ ده۔
٤- دغه شان مروان بن الحکم د عبد الرحمن بن ابی بکر په باره کښې اُووئیل : ﴿ وَالَّذِیْ قَالَ لِوَالِدَیْهِ اُفٍّ لَّکُمَا ﴾ [احقاف] ۔ دا آیت ددهٔ په باره کښې نازل دے نو عائشےؓ پرے رد اُوکړو او ددے سبب د نزول ئے ورته بیان کړو۔ چه الله تعالیٰ زمونږ په باره کښې د قرآن نه هیڅ ئے نهٔ دے نازل کړے صرف زما عذر ئے نازل کړیدے۔ [صحیح البخاری وتفسیر القاسمی ۱/۲۵] ۔علامه قاسمیؒ ددے ډیر مثالونه ذکر کړیدی هغے ته رجوع اُوکړئ۔

**د اسباب النزول د پیژندلو اهمیت اُوګوره :**

۱- حسن بصریؒ فرمائی : [مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ آیَةً اِلَّا وَهُوَ یُحِبُّ اَنْ یَعْلَمَ فِیْمَا اُنْزِلَتْ وَمَا اَرَادَ بِهَا]۔(الله تعالیٰ هیڅ آیت نهٔ دے نازل کړے مګر زه دا خوښوم چه ما ته معلومه شوی وے چه دا کوم ځائے او کومه واقعه کښې نازل دے او څه مقصد ئے دے)۔
۲- ابن سیرینؒ فرمائی : ما د عبیدهؒ نه د قرآن د څه آیتونو باره کښې تپوس اُوکړو نو هغه اُوفرمایل : [اِتَّقِ اللّٰهَ وَعَلَیْكَ بِالسَّدَادِ، فَقَدْ ذَهَبَ الَّذِیْنَ یَعْلَمُوْنَ فِیْمَ اُنْزِلَ الْقُرْآنُ] ۔(د الله تعالیٰ نه یره اُوکړه، او په سیده لار روان شه ځکه چه هغه خلق تلی دی چه هغوی ته به دا معلومه وه چه قرآن کریم په څه کښې نازل دے ؟) نو ددے نه د اهمیت اندازه اُوکړه۔(القاسمی)۔

00000000

## فائدة متعلقة بالسابق :

## [ د مخکنی بحث سره متعلق فائده]

شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ فرمائی : بعض علماء داسے قول کوی (او په ډیرو تفاسیرو کښ هم داسے خبره بیانیږی) : [نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةُ فِيْ كَذَا]۔

یعنی (دا آیت د فلانی شی په باره کښ نازل دے) ددے دوه مطلبونه جوړیږی :

(۱) یو دا چه کله ددے نه مراد سبب نزول وی یعنی ددے آیت سبب د نزول دغه فلانے شے دے۔

(۲) او کله ددے نه مراد دا وی چه دا فلانے شے هم ددے آیت په حکم کښ داخل دے اګرکه د هغه شی په باره کښ به دا آیت نازل نهٔ وی۔ او هغه به ئے سبب النزول نهٔ وی۔

امام زرکشیؒ په البرهان (۱/ ۲۱) کښ لیکی :

[قَدْ عُرِفَ مِنْ عَادَةِ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ اَنَّ اَحَدَهُمْ إِذَا قَالَ: نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةُ فِيْ كَذَا فَإِنَّهُ يُرِيْدُ بِذٰلِكَ أَنَّهَا تَتَضَمَّنُ هٰذَا الْحُكْمَ لَاَنَّ هٰذَا كَانَ السَّبَبَ فِيْ نُزُوْلِهَا] ۔

د صحابه کرامو او تابعینو دا عادت مشهور شویدے چه کله په دوی کښ یو تن داسے اُووائی چه دا آیت د فلانی شی په باره کښ نازل دے نو ددے نه مراد ئے دا وی چه دا آیت دے فلانی شی ته هم شامل دے او دا واقعه ددے آیت کریمه د لاندے داخلیدلے شی۔ او دا مطلب نهٔ وی چه دا شے سبب د نازلیدو د آیت دے)۔

○ او دغه شان خبره شاه ولی الله الدهلویؒ په الفوز الکبیر کښ هم کړیده۔ چه کله صحابی دغه الفاظ وائی او مقصد ئے دا وی چه دا هم یو مصداق د دغه آیت ګرځیدلے شی که هغه بیا د نبی ﷺ په زمانه کښ وی او که روستو زمانه کښ وی او بیا پدے کښ دا ضروری نهٔ ده چه ټول قیدونه د آیت به د دغه قصے سره منطبق او فِټ وی بلکه اصل حکم به د دغه قصے سره برابر وی نو بس دا کافی ده ددے خبرے دپاره۔ او کله یو صحابی یوه واقعه بیانوی چه هغه د نبی ﷺ په دور کښ راغلی وی او نبی ﷺ د هغے حکم د آیت نه معلوم کړے وی او هغه آیت ئے په دغه باب کښ لوستلے وی نو بیا صحابی وائی چه دا آیت د فلانئ واقعے یا فلانی شی په باره کښ نازل دے او کله داسے وائی :[فَاَنْزَلَ اللّٰهُ

قَوْلَهٗ كَذَا] ـ (الله تعالیٰ ددے په باره کښې دا قول نازل کړو) او حال دا چه آیت مخکښې نازل شوے وی او دغه واقعه روستو راغلي وی، مطلب ئے دا وی چه دا واقعه هم د دغه آیت په حکم کښې داخلیدے شي او نبی ﷺ دغه آیت دے واقعے ته هم شامل کړیدے۔ او دا هم ممکن وی چه دوه ځل دغه آیت نازل شوے وی۔ [القاسمی نقلا عن الفوزالکبیر]۔

امام شاطبیؒ په الموافقات کښې لیکی :

[مَعْرِفَةُ اَسْبَابِ النُّزُوْلِ لَازِمَةٌ لِمَنْ اَرَادَ عِلْمَ الْقُرْآنِ بِدَلِيْلَيْنِ (١) اِنَّ عِلْمَ الْمَعَانِيْ وَالْبَيَانِ اِنَّمَا مَدَارُهٗ عَلٰى مَعْرِفَةِ مُقْتَضَيَاتِ الْاَحْوَالِ فَمَعْرِفَةُ السَّبَبِ هُوَ مَعْرِفَةُ مُقْتَضَى الْحَالِ (٢) الثَّانِيْ : اِنَّ الْجَهْلَ بِاَسْبَابِ النُّزُوْلِ مُوْقِعٌ فِي الشُّبَهِ وَالْاِشْكَالَاتِ وَمُوْرِدٌ لِلنُّصُوْصِ الظَّاهِرَةِ مَوْرِدَ الْاِجْمَالِ حَتّٰى اِنَّهٗ مَظِنَّةُ وُقُوْعِ النِّزَاعِ الخ]۔

(یعنی که څوك د قرآن علم غواړی نو شان نزول پیژندل ورله ضروری دی د دوه دلیلونو د وجه نه۔ ۱- اول دلیل دا دے چه د علم المعانی او بیان یعنی د علم بلاغت دارومدار په پیژندلو د مقتضی الحال دے یعنی موقعه او حالت به پیژنے چه دا مقام د کوم کلام تقاضا کوی نو د موقعه او د محل مطابق کلام راوړه نو کله چه سبب د نزول د آیت معلوم شی پدے سره به مقتضی الحال اُوپیژندل شی۔ او کله چه انسان سبب النزول نۀ وی پیژندلے نو بیا به د موقعه او مقام مناسب خبره نشے کولے۔

(۲) دویم دلیل دا دے چه جهالت په اسباب النزول باندے انسان واقع کوی په ډیرو شبهات او اشکالاتو کښې او هغه نصوص چه ظاهر دی هغه د اجمال ځائے ته بوزی تردے چه بیا ددے نه جګړے هم پیدا کیږی) څوك د آیت یو شان معنی کوی او څوك ئے بل شان۔ اختلافات ئے پیدا شی ځکه چه سبب د نزول ئے نۀ وی پیژندلے)۔ ددے وجه نه د قرآن کریم د پوهے دپاره دا ضروری ده چه قرآن کریم به اول د رسول الله ﷺ زمانے ته بوزے چه په هغه زمانه کښې دا آیت د څه په باره کښې نازل وو، او څه قصه وه نو کله چه تا د هغه زمانے حالت اُوپیژندلو نو بیا به ئے د خپلے زمانے سره اُولګوے او دا ډیره غوره طریقه ده، په دے سره په مفسر باندے هیڅ اشکال نۀ راځی۔ او دا طریقه مونږه هم غوره کوو۔ او د بعض مفسرینو هم دا طریقه ده لکه تفسیر خازن او تفسیر د سید قطب ((فی ظلال القرآن)) هم دا طرز دے۔

## فائده ملحقة بالسابق :

### [د مخکنی بحث سره متعلق بله فائده]

د شان نزول متعلق دوه خبرے په ذهن کښې حاضرول پکار دی :

(۱) اوله خبره : [اَلْعِبْرَةُ لِعُمُوْمِ اللَّفْظِ لَالِخُصُوْصِ السَّبَبِ فَلَا تَكُوْنُ الآيَةُ خَاصَّةً بِسَبَبِ النُّزُوْلِ، لِاَنَّ الْقُرْآنَ تِبْيَانٌ لِكُلِّ شَيْءٍ فَجَمِيْعُ الْحَوَادِثِ الْوَاقِعَةِ وَالَّتِيْ تَقَعُ قَدْ بَيَّنَهَا الْقُرْآنُ بِالْفَاظِهِ الْعَامَّةِ]

[تيسير كلام الرحمن : ۱/۱۱]۔

په قرآن کريم او حديث کښې به اعتبار عموم د الفاظو لره وی او خاص سبب پورے به نشی خاص کولے۔ يعنی قرآن کريم کښې چه عام لفظ استعمال شو نو بس په خپل حال به پريخودلے شی او د يو خاص سبب پورے به نشی خاص کولے) ځکه چه قرآن کريم خو عالمی کتاب دے د هر شی وضاحت پکښې دے۔ چه هر شی ته شامل شی۔ ددے وجه نه الله تعالیٰ پکښې د چا نوم نۀ دے اخستے بلکه عامے صيغے ئے راوړيدی لکه (الذين) او (اولئك) وغيره الفاظ۔ نو ټول حادثات چه واقع شويدی يا واقع کيږی نو قرآن کريم هغه په عام الفاظو بيان کړيدی)۔

ددے قاعدے فائده دا ده چه بعض خلق د بعض آيتونو په باره کښې وائی چه دا آيت د هغه زمانے پورے خاص وو او زمونږ دپاره نۀ دے لکه مثلًا ﴿ وَلَا تَشْتَرُوْا بِآيَاتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا﴾ ۔بعض مبتدعين وائی : دا آيت د يهودو په باره کښې دے، چه په تورات باندے به هغوی پيسے اخستلے، او د هغوی دپاره حرامے وے او زمونږ دپاره جائز دی۔ دا خبره د دوی غلطه ده ځکه چه (لا تشتروا) لفظ عام دے۔ هرکله چه د يهودو دپاره د الله تعالیٰ په کتاب پيسے اخستل حرام وو نو زمونږ دپاره به خو په طريق اولیٰ حرام وی ځکه چه دا امت غوره امت دے د داسے خسيس کارونو نه به ځان ساتی۔ او ددے په باره کښې عمر فاروق ﷛ وئيلی وو چه يهود مخکښې تير شويدی الله تعالیٰ پدے آيتونو سره تاسو قصد کوی۔ يعنی دا امت۔

ددے بل مثال : حديث کښې دی : صحابه کرامو د بئر بضاعه په باره کښې تپوس اُوکړو چه پدے کښې گندونه پريوزی نو آيا ددے نه اَودسونه کول جائز دی ؟ نبی ﷺ عام الفاظ استعمال کړل، وے فرمايل : [إِنَّ الْمَاءَ طُهُوْرٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ]۔(تولے اُوبه پاکے دی په هيڅ شی نۀ پليتيږی) مگر کله ئے چه خوند رنگ او بوئی د گندگئ په وجه بدل شی۔ بيا به پليتی

وی۔ که هغه د دغه کو هی اُوبه وی او که نوریے اُوبه وی نو خبره ئے عامه اُوکړه۔

(۲) دویمه خبره : شیخ الاسلام ابن تیمیۃؒ ذکر کړیده چه خلاصه ئِے دا ده چه څوك اراده لری چه د قرآن نه فائده واخلی نو دا دِے د سبب النزول پوریے نهٔ خاص کوی بلکه د ځان سره به ئے لګوی، ځکه پدے سره په انسان کښ ډیرے عجیبه فائدے پیدا کیږی، په هغه کښ به د آیت نه خوف او تأثر پیدا کیږی، ښائسته صفات به پکښ پیدا کیږی او بد صفات به تریے لریے کیږی د نفس تزکیه به ئے کیږی۔ ددے وجه نه د صحابه کرامو طریقه دا وه چه هغوی به د کافرانو په باره کښ آیتونه هم د خپل ځان سره لګول۔

لکه د عمر فاروق ﷺ باره کښ مشهوره ده چه هغه ته خوراك راوړیے شو او دا آیت ئے اُولوستلو۔ ﴿ اَذۡهَبۡتُمۡ طَيِّبَاتِكُمۡ فِيۡ حَيٰوتِكُمُ الدُّنۡيَا﴾ [الاحقاف: ۲۰] ۔(کافرانو ته به وئیلے شی چه تاسو په دنیا کښ مزیے اخستی دی اُوس ما نه څه غواړئ؟)

نو دومره خوف پریے طاری شو چه هغه خوراك تریے پاتے شو۔

او زمونږ د روستنو طریقه دا ده چه څه آیتونه د مشرکانو سره اُولګوو او څه د منافقانو سره او څه د یو چا سره او څه د بل چا سره او خپله تریے هیڅ فائده وانخلو۔ ددے وجه نه عام امت کښ د قرآن کریم نه خلق فائده کمه اخلی د وجه ددے مرض نه۔ نو اصلی طریقه دا ده چه آیت به ځان ته متوجه کړیے چه پدے کښ زه مراد یم۔ او که زما دا حالت شی نو زړه به څه کوم نو تا سره به غم پیدا شی او نیك اعمالو ته به دِے شوق او توجه پیدا شی۔

۲- دغه شان عمر فاروق ﷺ یوه ورځ داسے دعا اُوکړه : [اَللّٰهُمَّ اغۡفِرۡ لِيۡ ظُلۡمِيۡ وَ كُفۡرِيۡ] ۔(اے الله ما ته ظلم او کفر معاف کړه) نو چا ورته اُووئیل : ظلم خو تیك ده (ګناه ده، انسان نه واقع کیږی) خو کفر نه څنګه بخنه غواړیے ؟ (تا خو کفر نهٔ دے کړیے)۔ نو هغه اُوفرمایل : الله تعالیٰ فرمایلی دی : ﴿ اِنَّ الۡاِنۡسَانَ لَظَلُوۡمٌ كَفَّارٌ﴾ ۔(انسان غټ ظالم او کافر دے) [تفسیر الدر المنثوره/٤٥]۔

مطلب ئے دا وو چه دے کښ مونږ هم مراد یو۔ ځکه د کفر هم ډیر مراتب دی۔ او مطلب د آیت دا دے چه د انسان په ماده کښ ظلم او کفر پروت دے مګر که دا مشقت او ریاضت او مجاهده اُوکړی د ځان نه ئے اُوباسی۔ او عمر فاروق دا مجاهده کړیے وه په هغه کښ ظلم او کفر نهٔ وو لیکن بیا هم آیت د ځان سره لګوی۔ نو اُوګوره صحابه کرامو به د آیتونو نه څنګه فائده اخسته۔

۳- سورة البقره کښ په بحث د منافقینو کښ راځی : ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّقُوۡلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ

وَبِالْيَوْمِ الآخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ، يُخَادِعُوْنَ اللّٰهَ ...... وَمَا يَشْعُرُوْنَ﴾۔

محمد بن سیرینؒ به وئیل : صحابه کرام او تابعین به ددے آیت نه ډیر یریدل چه هسے نه مونږ کښې منافقت وی او مونږ به نۀ پو هیږو، ایمان به مونږ کښې نۀ وی او مونږ به دعوه د ایمان کوو۔ او په ځان به نۀ پو هیږو۔

## ۸- الامر الثامن

## ترتیب السور والآیات هل هو توقیفی ام اجتهادی ؟

### (اتم بحث : آیا د سورتونو او آیتونو ترتیب توقیفی دے او که اجتهادی دے)

یعنی سورتونو او آیتونو له چه کوم ترتیب ورکړے شویدے نو آیا په نقل بناء دے او که اجتهاد پکښې جاری کیدے شی؟ د توقیف معنیٰ دا ده چه رسول الله ﷺ امت ته خودلے دے او که نۀ صحابه کرامو پکښې اجتهاد کړیدے او دا ترتیب ئے ورکړیدے۔

[فَالصَّحِيْحُ اَنَّ تَرْتِيْبَ الآيَاتِ تَوْقِيْفِيٌّ مَنْصُوْصٌ مِنْهُ ﷺ وَاَنَّ تَرْتِيْبَ السُّوَرِ اِجْتِهَادِيٌّ]. نو صحیح خبره دا ده چه ترتیب د آیتونو توقیفی دے د رسول الله ﷺ نه په نص باندے ثابت دے، چه هغه سورة البقره کښې اول الم ذلك الکتاب او بیا الذین یؤمنون بالغیب او بیا والذین یؤمنون لوستلے دے۔ دغه شان سورة الفاتحه ئے د الحمد نه شروع کړیده او په ولا الضالین ئے ختمه کړیده۔ لهذا معلومه شوه چه ذ قرآن کریم د آیتونو اُلټه لوستل به صحیح نۀ وی بلکه ترتیب سره به تلاوت کول ضروری وی۔ او دویمه فائده ئے روستو په بحث د ربط کښې راځی۔

او په ترتیب د سورتونو کښې درے قوله دی (۱) یو دا چه دا هم توقیفی دے۔ په لوح محفوظ کښې سورتونه په همدے ترتیب لیکلے شوی وو۔ لیکن پدے قول دلیل نشته۔

(۲) دویم قول : حافظ ابن تیمیةؒ په دقائق التفسیر (۸٦/۱) کښې ذکر کړیدے : [كَمَا اَنَّ تَرْتِيْبَ السُّوَرِ لَمْ يَكُنْ وَاجِبًا عَلَيْهِمْ مَنْصُوْصًا بَلْ مُفَوَّضًا اِلَى اجْتِهَادِهِمْ وَلِهٰذَا كَانَ تَرْتِيْبُ مُصْحَفِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ غَيْرَ تَرْتِيْبِ مُصْحَفِ زَيْدٍ وَكَذٰلِكَ مُصْحَفُ غَيْرِهِ]۔

(چه ترتیب د سورتونه واجب هم نۀ دے او منصوص هم نۀ دے بلکه دا سپارلے شویدے اجتهاد د صحابه کرامو ته ددے وجه نه د عبد الله بن مسعودؓ د مصحف ترتیب جدا وو او د زید بن ثابت د مصحف ترتیب جدا وو او د نورو جدا وو)۔ لکه په روایت د بخاری کښې

راغلی دی عبد الله بن مسعود فرمائی : ما ته د یو بل مشابه شل سورتونه معلوم دی چه رسول الله ﷺ به د شپې په تهجدو کښې په یو رکعت کښې دوه دوه سورتونه جمع کول۔
[صحیح البخاری : ۷٤٢]۔

بیا ددې تشریح په روایت د ابوداود وغیره کښې داسې راغلې ده چه یو رکعت کښې به ئې الرحمن او النجم او په بل رکعت کښې اقتربت او الحاقه۔ او الطور والذاریات په بل رکعت کښې الخ او دا ډ عبد الله بن مسعود د ترتیب مطابق وو۔ او کله چه عثمان په خپل دور کښې مصحف الامام له ترتیب ورکړو نو د باقی مصاحفو د سیزلو حکم ئې اُوکړو دې دپاره چه ددې په سبب په امت کښې اختلافات پیدا نشی نو عبد الله بن مسعود ترې خپل مصحف پټ کړو چه ما دا د رسول الله ﷺ په زمانه کښې لیکلې دې او هغه راته څه نهٔ دی وئیلی نو بس دا زهٔ نهٔ سیزم۔

(۳) دریم قول : غوره خبره دا ده چه د بعضې سورتونو ترتیب توقیفی دې او د ټول قرآن ترتیب توقیفی نهٔ دې بلکه هغه په اجتهاد د صحابه کرامو دې۔ اولنی اُوږده سورتونه (السبع الطوال) په ترتیب نازل شویدی۔ دارنګه یونس، هود، یوسف یا حوامیم سبعه په ترتیب نازل شویدی۔ او بعض سورتونو دپاره صحابه کرامو په خپل اجتهاد ځائې مقرر کړیدې۔
[البرهان ١/٢٥٧) مناهل العرفان [١/٢٥٠]۔

یو روایت کښې دی (حاصل ئې دا دې) : عبد الله بن عباس ﷺ د عثمان نه تپوس اُوکړو چه څه وجه ده چه تاسو سورة التوبه د سورة الانفال پسې لګولې ده ؟ او بسم الله مو پکښې نهٔ ده لیکلې ؟ نو هغه جواب ورکړو چه نبی ﷺ به مونږ ته دا راخودله چه دا سورت فلانی ځائې کښې اُولګوئ او هغه وفات شو او د سورة التوبه باره کښې ئې مونږ ته څه نهٔ وو وئیلی نو ما اراده اُوکړه چه دا سورة التوبه د سورة الانفال سره اُولګوم ځکه چه د دواړو قصه یوه ده (موضوع او دعویٰ ئې جهاد دې) او بسم الله مې پکښې اُونهٔ لیکله، دواړه سورتونه راته یو ښکاره کیدل او مینځ کښې مې ورله کرخه راخکله ځکه چه دواړه په حقیقت کښې بیل بیل سورتونه نازل شویدی۔

دا روایت احمد (١/٣٢٩) او ترمذی راوړیدې لیکن ددې په سند کښې یزید الفارسی ضعیف راوی دې چه امام بخاری په الضعفاء الکبیر کښې ذکر کړیدې او حافظ ابن حجرؒ وئیلی دی چه دا لین الحدیث دې۔ او ددې حدیث زیات تحقیق علامه عبید الله

المبارکفوري په المرعاة کښې او علامه محمد احمد شاکر په شرح د مسند کښې کړیدي او وئیلي دي چه دا حدیث زما په نزد ضعیف جداً دے بلکه ددے دپاره هیڅ اصل نشته. او دا مخالف دے د نصوصو. وجه دا ده چه دا دلالت کوي په دے خبره چه ترتیب د سورتونو اجتهادي نۀ دے بلکه توقیفي دے.

لیکن مونږ وایو :که صحیح هم شي نو بیا هم په غور سره ترے دا معلومیږي چه ترتیب د سورتونو اجتهادي دے ځکه چه ابن عباس تپوس داسے کوي چه تاسو لۀ څه وجه ده چه تاسو سورة التوبه (چه د مثینونه ده) د سورة الانفال سره لګولے ده (چه هغه د مثانیو نه دے) دواړه به مو جدا جدا کړي وي او بل سورة الانفال به مو د مثانیو سورتونو په خوا کښې لګولے وے.

**او هر** چه د آیتونو ترمینځ ترتیب دے نو د هغے په ترتیب باندے خو نص راغلے دے، هغه به بغیر د ترتیب نه لوستل جائز نۀ وي، دا وجه ده چه په ټولو مصاحفو کښې ترتیب د آیتونو یو شان وو او ترتیب د سورتونو کښې جدا والے وو لکه مصحف د علي بن ابي طالب په ترتیب نزولي سره وو چه په اول کښې ئے اقرأ وو بیا مدثر ...... بیا دغه شان نساء، بیا بقره بیا آل عمران وغیره.

**مسئلة فقهیة** : نو پدے باندے دا فقهي مسئله مرتبه شوه چه که څوك په مانځه کښې په ترتیب سره قراء ت اُونکړي بلکه په سورتونو کښې مخکښې والے روستو والے اُوکړي نو مونځ به ئے جائز وي بغیر د څه کراهت نه. بخاري کښې راځي قتادة وائي : [ کُلٌّ کِتَابُ اللّٰهِ ]. دا ټول د الله تعالیٰ کتاب دے. او رسول الله ﷺ هم په تهجدو کښې بے ترتیبه تلاوت کړیدے. په یو رکعت کښې ئے سورة البقره اُولوستله بیا نساء بیا آل عمران نو آل عمران مخکښې دے او د نساء نه ئے روستو لوستلے دے.

○ دارنګه مخکښې تیر شو چه نبي ﷺ به دوه سورتونه په یو رکعت کښې جمع کول او هغه به د بیل بیل ځائے سورتونه وو. فتدبر. او یو صحابي به قل هو الله احد په مانځه کښې د هر سورت سره لوستله. نو دا کار چه کوم مُلیان مکروه ګنړي نو دا تشدد کوي په دین کښې او په امت باندے بے ځایه سختي راولي. هان نبي ﷺ غالباً ترتیب سره لوستلے دے نو پدے وجه دا وئیلے شي چه ترتیب سره لوستل غوره دي.

○○○○○○○○

## ۹- البحث التاسع : اللاحق بالسابق

## الربط والمناسبة

نهم بحث : د مخکښ بحث نه فائده د ربط معلومیږي۔

ربط پیژندل هم مهم علم دے۔ د ربط معنیٰ ده روستو آیت د مخکښ آیت سره تړل او د دواړو آیتونو ترمینځ مناسبت پیدا کول دي۔ چه مثلًا دا آیت ولے د مخکښ آیت پسے ذکر شو؟۔

علامه سیوطیؒ په ((الاتقان)) کښ نقل کړیدي چه اول هغه څوك چه علم المناسبة او ربط ئے راښکاره کړیدے ابوبکر النیسابوري دے چه دا به په کرسي ناست وو کله چه به ده باندے قراءت کیدونو ده به وئیل چه ولے دا آیت ددے بل آیت خوا ته راوړلے شو او دا سورة ددے بل سورة خوا کښ ولے راوړے شو او پدے کښ څه حکمة دے ؟ [وَكَانَ يُزْرِيُ عَلٰى عُلَمَاءِ بَغْدَادَ لِعَدَمِ عِلْمِهِمْ بِالْمُنَاسَبَةِ] ۔(او ده به په علماؤ د بغداد باندے عیب لګولو په دے وجه چه دوي په مناسبتونو علم نۀ لرې)۔

بیا ربط څه ته وئیلے شي : [اِظْهَارُ حِكْمَةِ التَّرْتِيْبِ]۔

(دا ښکاره کول چه پدے ترتیب کښ څه حکمة دے؟) چه پدے سره د قرآن کریم اعجاز معلومیدے شي چه دومره کمال پکښ پروت دے۔ددے وجه نه علامه ابوبکر بن العربيؒ وئیلي دي چه اکثر لطائف د قرآن کریم دا په ربط او مناسبتونو د آیتونو کښ وي۔ انتهیٰ۔

او پدے سره ډیر عجیبه ایمانیات راښکاره کیږي او عجیبه علمونه پکښ پراته وي۔ ددے وجه نه کوم مستشرقینو چه د قرآن کریم مطالعه کړیده نو ددے په باره کښ ئے څپلے رائے ورکړیدي، چا ددے کمال بیان کړیدے۔ او چا پکښ دا نقصان بیان کړیدے چه دا مفکك الاوصال دے یعني ترتیب پکښ نشته، جوړونه ئے د یو بل نه جدا جدا دي، لکه دے باره کښ یو کتاب دے [آرَاءُ الْمُسْتَشْرِقِيْنَ فِي الْقُرْآنِ الْكَرِيْم] ۔ دوه جلدونو کښ دے۔ لیکن دے خلقو په زور نظر د الله تعالیٰ په کتاب کښ سوچ نۀ دے کړے څکه ئے داسے قسم غلط خیال ښکاره کړیدے۔او تاسو زمونږ د مشائخو او زمونږ تفسیر ((حکمة القرآن)) مطالعه کړئ چه د الله تعالیٰ کتاب څومره مربوط دے او د هر آیت د بل سره څومره عجیب مناسبتونه دي۔ او ولے به پکښ داسے مناسبتونه او حکمتونه نۀ وي، آخر دا د کوم ذات

کتاب دے؟

﴿قُلْ أَنْزَلَهُ الَّذِیْ يَعْلَمُ السِّرَّ وَأَخْفٰى﴾ [طه] ـ(دا خو هغه ذات نازل کړیدے چه په رازونو او په پټو خبرو پوهه دے) ﴿أَنْزَلَهُ بِعِلْمِهٖ﴾ ـ(الله تعالیٰ پکښ خپل علم ایخودے دے) په نازلونکی ذات کښ کمال دے نو کتاب کښ به ئے ضرور کمال وی۔

**بیا ربط** او مناسبت او تړون دوه قسمه دے:

(۱) ربط د سورتونو ترمینځ۔

(۲) ربط د آیتونو ترمینځ۔

هرکله چه د مخکښ بحث نه دا معلومه شوه چه ترتیب د سورتونو اجتهادی دے، نو ددے وجه نه ربط د سورتونو ترمینځ دومره مهم نهٔ دے ځکه په ربط سره حکمت د ترتیب ښکاره کیږی او تا اُوپیژندل چه ترتیب د سورتونو خو اجتهادی دے نو ددے وجه نه د هغے حکمة بیانولو ته دومره اهمیت نهٔ دے حاصل۔ او همدا وجه ده چه اکثرو مفسرینو د سورتونو ترمینځ د ربط او مناسبت پیدا کولو ته هیڅ تعرض نهٔ دے کړے۔ او بعضو ربط د سورتونو ذکر کړیدے خو په ترتیب نزول کښ۔ او بعض مفسرین ربط د سورتونو ذکر کوی لکه ((نظم الدرر)) د بقاعی، دارنګه تفسیر روح المعانی، او دارنګه تفسیر کبیر وغیره علماء ربطونه بیانوی او زمونږ مشائخ ئے هم په تاکید سره بیانوی۔ نو مونږه ئے هم د هغوی د تابعداریٔ د وجه نه بیانوو۔ لیکن فائده پکښ کمه ده۔

او بعض ربطونه په ډیر تکلف بناء وی۔ لکه بعض علماء د سورة النحل او سورة بنی اسرائیل داسے ربط بیانوی چه مخکښ سورة کښ د هجرت واقعه بیان شوه نو په بنی اسرائیل کښ نبی ﷺ ته فرمائی چه تا ډیره سخته او تکلیف تیر کړو راځه چه اُوس آسمانو ته چکر درکړم۔نو معراج ئے پرے اُوکړو۔ نو داسے مناسبتونه بیانول مناسب نهٔ دی۔ ځکه دا د قرآن شان کمول دی، بلکه پکار ده چه په مناسبت او ربط کښ د حکمة خبرے، علمی او ایمانی خبرے بیان شی۔د داسے خبرو تکلف دے اُونشی چه د هغے دومره فائده نهٔ وی۔

او هرچه ربط د آیتونو ترمینځ دے نو دا مهم دے لیکن پدے باره کښ هم ډیره غلو او تشدد کول مناسب نهٔ دی۔ او دا ربطونه نظم الدرر، روح المعانی او تفسیر فی ظلال القرآن وغیره تفاسیر ځائے په ځائے بیانوی۔ هغوی خپلو تفسیرونو کښ دا محنت کړیدے۔ او آیتونه ربط ته محتاج هم دی ځکه چه الله تعالیٰ خپل کتاب په داسے طریقه سره رالیږلے

دے چه ظاهری ربط ئے نهٔ دے ورکړے ځکه بیا حکم د یو شی پورے خاص کیدو نو داسے عامے خبرے ئے کړیدی چه هر څه ته په کښ اشارات اُوشی۔ نو ځکه امت د کتاب الله په تدبر او غور او فکر باندے مامور شویدے۔ چه د الله تعالیٰ د کتاب نه رازونه او حکمتونه راوباسی۔

شاه ولی الله الدهلوی رحمه الله په الفوز الکبیر کښ لیکی :

[وَلَمْ يُرَاعِ اللّٰهُ سُبْحَانَهُ مُنَاسَبَةً فِى الْاِنْتِقَالِ مِنْ مَطْلَبٍ اِلٰى مَطْلَبٍ كَمَا هُوَ قَاعِدَةُ الْاُدَبَاءِ وَالْمُتَأَخِّرِيْنَ بَلْ نَشَرَ كُلَّ مَا اَهَمَّ اِلْقَاؤُهُ عَلَى الْعِبَادِ تَقَدَّمَ اَوْ تَأَخَّرَ وَعَامَّةُ الْمُفَسِّرِيْنَ يَرْبِطُوْنَ كُلَّ آيَةٍ مِنْ آيَاتِ الْمُخَاصَمَةِ وَآيَاتِ الْاَحْكَامِ بِقِصَّةٍ وَيَظُنُّوْنَ اَنَّ تِلْكَ الْقِصَّةَ سَبَبُ نُزُوْلِهَا وَالْمُحَقَّقُ اَنَّ الْقَصْدَ الْاَصْلِيَّ مِنْ نُزُوْلِ الْقُرْآنِ تَهْذِيْبُ النُّفُوْسِ الْبَشَرِيَّةِ وَدَمْغُ الْعَقَائِدِ الْبَاطِلَةِ وَنَفْيُ الْاَعْمَالِ الْفَاسِدَةِ فَوُجُوْدُ الْعَقَائِدِ الْبَاطِلَةِ فِى الْمُكَلَّفِيْنَ سَبَبٌ لِنُزُوْلِ آيَاتِ الْمُخَاصَمَةِ وَوُجُوْدُ الْاَعْمَالِ الْفَاسِدَةِ وَجَرَيَانُ الْمَظَالِمِ بَيْنَهُمْ سَبَبٌ لِنُزُوْلِ آيَاتِ الْاَحْكَامِ وَعَدَمُ تَيَقُّظِهِمْ بِمَا عُدَّ ذُكِرَ آلَاءُ اللّٰهِ]۔

(یعنی الله تعالیٰ په خپل کتاب کښ د یو مطلب نه بل مطلب ته په نقل کیدو کښ د مناسبت لحاظ نهٔ دے ساتلے لکه څنګه چه ادباء او متأخرین دا کار کوی۔ بلکه الله تعالیٰ چه بندګانو ته کومه خبره غورزوی نو هغه ئے خوره وره نازله کړیده مخکښ وی او که روستو وی۔ او عام مفسرین هر آیت د آیتونو د مخاصمو (جګړو) او آیتونو د احکامونه د یوے قصے سره تړی او دا ګمان کوی چه دغه قصه ددے آیت سبب د نزول دے۔(یعنی مطلب دا چه عام مفسرین د هر آیت ضرور ربط پیدا کوی) او صحیح او محققه خبره دا ده چه مقصد اصلی د نزول د قرآن کریم نه څه شے دے ؟ هغه تهذیب النفوس (د نفسونو پاکی) ده او باطل عقائد ختمول او فاسد اعمال لرے کول دی نو کله چه په مکلفینو (بندګانو) کښ باطل عقائد موجود وی نو آیتونه د مخاصمے (او جګړے) نازلیږی او کله چه فاسد اعمال موجود وی او د هغوی ترمینځ ظلمونه جاری وی نو دغه وخت کښ آیاتونه د احکامو نازلیږی او خمقو کښ چه غفلت موجود وی او تیقظ او تنبه (بیداری) پکښ نهٔ وی نو بیا د نعمتونو، عذابونو او قصو بیان کیږی چه خلق رابیدار شی)۔

حاصل دا شو چه آیتونه د قرآن کریم د بندګانو د حالاتو مطابق نازل شویدی نو کله چه به په بندګانو کښ عقیده باطله راغله نو الله تعالیٰ به آیت نازل کړو د هغے د تردید دپاره او که غلط اعمال به پکښ پیدا شو نو آیت به نازل شو دے دپاره چه نفسونه صفا شی نو که د...ض

آیتونو مناسبت او ربط د بعض نورو سره رانشي نو پدے کښې څه عیب نشته. او په تکلف سره ربط پیدا کول صحیح کار نۀ دے.

دغه شان علامه صدیق خان القنوجيؒ په ((فتح البیان)) کښې د یا بني اسرائیل آیت لاندے مسئله د ربط او په هغے کښې تکلف کول په تفصیل سره لیکلے ده او دا ئے وئیلی دي چه آیتونه په مختلفو موقعو او مختلف حالاتو د مخاطبینو کښې نازل شویدي نو که د بعض آیتونو ربط د ماقبل سره رانشي نو په زوره تکلف سره ربط جوړول ضروري نۀ دي. والله تعالیٰ اعلیٰ واعلم وکتابه احکم۔

## ۱۰-الامر العاشر : النسخ فی القرآن

## [په قرآن کریم کښې د نسخ بیان]

. ددے بحث اهمیت یو پدے وجه دے چه (۱) د اسلام دشمنان (ملحدین، او مستشرقین) همیشه په اسلام کښې د نسخ نه زهریله اسلحه جوړه کړیده چه ددے په ذریعه په ښکلے اسلام باندے طعنونه او بدنامے لګوي او د قرآن کریم تقدس پائیمال کوي، او ددے په باره کښې ئے خپل شبهات مضبوط کړیدي او خپل طعنونه ئے مشهور کړیدي تردے چه ډیر علم ته منسوب او اسلام ته منسوب مسلمانان ئے پدے جال کښې راګیر کړیدي.

۲- د نسخ د پیژندلو په وجه انسان ته د شریعت اسلامي سماحت او د الله تعالیٰ د حکمت نه خبریدل کیږي چه الله تعالیٰ د انسانانو څنګه تربیت او سیاست کړیدے، او په انسانانو ئے څه طریقے سره ابتلاء او ازمیښت کړیدے. چه دا ټول ددے خبرے واضح ثبوت دے چه رسول الله ﷺ دا قرآن کریم د ځان نه ندے جوړ کړے او نۀ دا شریعت هغه ایجاد کړیدے بلکه دا د حکیم حمید ذات د طرف نه دے.

۳- د ناسخ او منسوخ حکم پیژندل د اسلام د پوهے دپاره عظیم رکن دے او صحیح احکامو ته رسیدل بغیر د ناسخ او منسوخ پیژندلو نه ممکن نۀ دي، ځکه کله چه داسے دلائل موجود شي چه په ظاهر کښې ئے د یو بل سره تعارض ښکاره کیږي نو د هغے دفع کول غالباً پدے طریقه سره کیږي چه مخکښې روستو حکمونه او ناسخ او منسوخ آیتونه اُوپیژندلے شي، ددے وجه نه زمونږ سلف علماء کرامو به ناسخ او منسوخ پیژندلو له ډیر اهمیت ورکولو او د خلقو نظرونه به ئے دے طرف ته راګرځول. تردے چه ابن عباس رضی

الله عـنهمـا نـه نقل دی چه (ومن يؤت الحكمة فقد اوتی خيراً كثيراً) (البقره ۲۶۹) كښ د حكمة نه مراد

[مَعْرِفَةُ نَاسِخِ الْقُرْآنِ وَمَنْسُوْخِهٖ وَمُحْكَمِهٖ وَمُتَشَابِهِهٖ وَمُقَدَّمِهٖ وَمُؤَخَّرِهٖ وَحَلَالِهٖ وَحَرَامِهٖ ]۔ (د قرآن كـريـم نـاسـخ او مـنسوخ، محكم او متشابه او مخكنی او روستنی او حلال او حرام احكام پيژندل دی)۔

○ علی ﷺ يـوه ورځ مسـجـد تـه داخـل شـو وے ليـدل چـه يو سړے لگيا دے خلقو ته يره وركـوی، وے فرمايل : دا څوك دے ؟ خلقو اُووئيل : دا يو سړے دے چه خلقو ته نصيحتونه كـوی۔ هغه اُوفرمايل : [لَيْسَ بِرَجُلٍ يُذَكِّرُ النَّاسَ، وَلٰكِنَّهٗ يَقُوْلُ اَنَا فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ فَاعْرِفُوْنِيْ ]۔ (دا هـغـه سړے نـه دے چـه خلقو ته نصيحت كوی بلكه دا وائی زه فلانے څوی د فلانی يم ما اُوپيـژنـئ) يـعـنـی خلقو ته ځان ښائی۔ رياكار دے۔ نو هغه پسے ئے جواب اُوليږلو چه آيا ته نـاسـخ او مـنسـوخ پيـژنے ؟۔ هغه اُووئيل : نهٔ۔ ورته ئے اُوفرمايل :[فَاخْرُجْ مِنْ مَسْجِدِنَا وَلَا تُذَكِّرْ فِيْهِ]۔ (زمونږ د مسجد نه اُوځه او پدے كښ خلقو ته نصيحتونه مهٔ كوه)۔

يـوه بـلـه واقـعـه كـښ راځی چه علی كرم الله وجهه په يو قاص (قصه گو) باندے تير شو، تپوس ئے ترے اُوكړو :[اَتَعْرِفُ النَّاسِخَ مِنَ الْمَنْسُوْخِ ؟ ]۔ (آيا ته ناسخ او منسوخ پيژنے ؟) هغه اُووئيل : نهٔ، دهٔ ورته اُوفرمايل : [هَلَكْتَ وَاَهْلَكْتَ ]۔ (ځان دِے هم هلاكت ته وړاندے كړو او خلق دِے هم هلاكت كښ واچول) ځكه چه ناسخ او منسوخ درته نهٔ دی معلوم۔

## معنی النسخ

نسخ په لغت د عربو كښ په درے معنو سره استعماليږی :

(۱) كتـابت (ليـكـل) او نـقـل كـول۔ لكـه آيت كـښ دی : ﴿ اِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ (الجاثيه:۲۹)۔

(۲) په معنیٰ د ازالے او ورانولو سره لكه آيت دے ﴿ فَيَنْسَخُ اللّٰهُ مَا يُلْقِي الشَّيْطَانُ﴾ ۔(يعنی زائل او باطل كړی الله تعالیٰ هغه شے چه شيطان په زړونو د خلقو كښ اچولے وی) او عرب وائی : (نَسَخَتِ الشَّمْسُ الظِّلَّ)۔(نمر سوری لره زائل او ختم كړو) ۔

(۳) تغيير او تبديل كول۔ لكه ﴿ مَا نَنْسَخْ مِنْ آيَةٍ ﴾ ۔كښ رازی۔

**مـعـنی شـرعـی د نسخ :** عـلـماؤ د نسـخ مـخـتـلـف تعريفونه كړيدی چه د هغے تولو ذكر كول مونږ ته پدے مقام كښ مناسب نهٔ ښكاری لهذا په جامع تعريف باندے اكتفاء كوو :

۱- او هغه دا دے : [رَفْعُ الْحُكْمِ الشَّرْعِيِّ بِدَلِيْلٍ شَرْعِيٍّ مُتَرَاخٍ]۔

(یو حکم شرعی په دلیل شرعی سره پورته کول او لرے کول چه روستو راغلے وی د مخکنی حکم نه) یعنی یو حکم شرعی د انسانانو مکلفینو نه اُوچتول چه ترد ے وخت پورے هغوی پرے عمل کولو اُوس به پرے عمل نهٔ کیږی۔ او دلیل شرعی عام دے که وحی متلو وی او که غیر متلو وی یعنی کتاب الله سره هم نسخ راځی او سنت سره هم راځی۔ پدے تعریف کښې رفع لفظ سره خارج شو هغه شے چه هغه رفع نهٔ وی لکه تخصیص ځکه په تخصیص سره حکم نهٔ پورته کیږی بلکه حکم په بعض افرادو باندے بندیږی۔

۲- (یا داسے تعبیر اُوکړه : یو حکم شرعی لرے کول او پورته کول او د هغے په ځائے بل حکم شرعی نافذ کول)۔

دا تعریف د آیت ﴿مَا نَنسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَا أَوْ مِثْلِهَا﴾ (البقرة :۱۰٦) نه اخستے شویدے۔

۳- یا داسے اُووایه : (د نسخ شرعی معنیٰ ده : یو حکم شرعی لره په بل حکم شرعی سره تبدیل کول) ددے ټولو حاصل معنیٰ یوه راوځی۔ او دا تعریف د سورة النحل آیت : ﴿وَإِذَا بَدَّلْنَا آيَةً مَّكَانَ آيَةٍ﴾ نه اخستے شویدے۔

د لغوی او شرعی معنیٰ فرق دا را اُووتو چه په لغوی معنیٰ سره نسخ عام ده او شرعی معنیٰ سره خاص ده۔ یو قانون وضعی چه په ځائے د بل قانون وضعی راشی یا یو حکم شرعی په ځائے د بل حکم شرعی راشی نو دیته هم نسخ لغوی وائی لیکن دا نسخ شرعی نهٔ ده بلکه حکم شرعی چه په ځائے د بل حکم شرعی راشی نو دیته نسخ شرعی وائی۔

## د نسخ حقیقت

اهل السنة والجماعة چه د نسخ کوم حقیقت ذکر کړیدے د هغے حاصل مفهوم دا دے چه یو شرعی حکم یا یو قرآنی آیت د بل شرعی حکم یا بل قرآنی آیت په ذریعه بدلول یا په هغے کښې تغییر او ترمیم کولو ته نسخ وئیلے کیږی لیکن پدے تغییر او تبدیل سره د الله تعالیٰ په علم کښې تغییر او تبدیل نهٔ راځی ځکه چه د الله تعالیٰ علم د تغیر او تبدل او کمی بیشی نه پاك دے او د هغه په ازلی علم کښې د منسوخ انتهاء او د ناسخ د ابتداء وقت متعین وی او الله تعالیٰ د هغے فیصله کړی وی چه دا فلانے حکم به فلانی وخت پورے نافذ وی او د هغے نه روستو به بل حکم نافذ کیږی البته د هغه حکم اعلان ئے د مخکښې

نه نۀ وي کړې بلکه د منسوخ د پورته کولو او د ناسخ د راتلو په وخت کښې متعين کېږي، بندګانو ته د ناسخ په راتلو سره معلومېږي چه اولنۍ حکم محدود وقت پورې وو او اُوس د هغې موده ختمه شوه، ورنه د ناسخ د راتلو پورې به هغوي دا ابدي حکم ګڼړلې۔ نو د احکامو دا تنوع او تغير او تبدل د الله تعالیٰ په حکمت باندې بناء وي چه هغه د خپلو بندګانو د حالاتو د بدليدو رابدليدو مناسب احکام او هدايات نازلوي ورنه د الله تعالیٰ په علم کښې هيڅ قسم تغير او تبدل راتلل محال دي۔

بيا دا خبره زده کړه چه ناسخ اصل کښې الله تعالیٰ دې ليکن کله ئې نسبت هغه حکم ته کيږي چه هغه رافع (پورته کونکې) وي د بل حکم۔ لکه خلق وائي وجوب د صوم رمضان ناسخ دې د وجوب د صوم عاشوراء۔ او کله ئې نسبت دليل ته کيږي لکه وئيلې شي : [آيَةُ الْمَوَارِيْثِ نَسَخَتْ آيَةَ الْوَصِيَّةِ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِيْنَ]۔

(د ميراث آيت ناسخ دې د هغه آيت چه هغې کښې وصيت د مړي د والدين او خپلوانو دپاره لازم شوې وو)۔

## النسخ عند المتقدمين

مخکښې اصطلاح د متأخرينو علماؤ وه چه د حکم د منسوخ کيدو تقاضا دا ده چه هغه حکم په کلي طور سره ختم شي او د هغه حکم په مصداق باندې عمل باقي پاتې نشي او منسوخ نوم دې د هغه حکم چه په هغې باندې د عمل مدت ختم شي. لکه د قرآن کريم نه هم د نسخ همدا معنیٰ ثابتيږي۔ پدې اعتبار سره د منسوخ آيتونو تعداد ډيرکم دې لکه روستو به ئې تفصيل راشي ان شاء الله تعالیٰ۔

ليکن دلته يوه بله اصطلاح د متقدمينو علماؤ ده چه د هغوي په نيز نسخ يو وسيع (فراخه) معنیٰ لري چه هغه دا ده چه هغوي د عام تخصيص، د مطلق مقيد کول او د مجمل تبيين او تشريح ته هم نسخ وائي۔ بلکه په شرط او استثناء باندې هم د نسخ اطلاق کوي۔ ځکه دوي وائي چه عام او مطلق کښې د تخصيص کولو او قيد لګولو په وجه عام او مطلق په بعض مصداقاتو باندې حمل کيږي او بعض مصداقاتو باندې عمل ختميږي نو ګويا چه پدې کښې هم پورته کيدل د مخکني حکم راغلل کوم چه عام وو۔ دارنګه مُجمل او مبهم د ډيرو معنانو احتمال لرلو خو کله ئې چه تشريح او وضاحت اُوشو نو اُوس ډيرې معانو باندې عمل نۀ راځي۔ دغه شان د نسخ په بعض صورتونو د استثناء او شرط هم اطلاق کيږي

ځکه دا هم په مخکني حکم کښې تغییر او ترمیم کول دي۔ دغه شان په یو حکم کښې تخفیف راوستلو ته هم نسخ وائي۔

شاه ولي الله الدهلویؒ په خپله رساله ((الفوز الکبیر في اصول التفسیر)) کښې د متأخرین او متقدمین د اصطلاح د فرق بیانولو متعلق لیکي : ((د ناسخ او منسوخ علم هم په فن د تفسیر کښې یوه مشکله مسئله ده چه پدې باره کښې ډیر مباحث او ډیر اختلافات دي۔ او د اشکال غټ سبب د متاخرینو او متقدمینو د اصطلاح ترمینځ فرق کول دي۔ پدې باب کښې د صحابه کرام او تابعینو د کلام د استقراء نه معلومیږي چه دوی لفظ د نسخ په لغوی معنی کښې استعمالوی یعنی [اِزَالَةُ الشَّيْءِ بِالشَّيْءِ]۔(یو شیے په بل شي سره زائل کول) او اصولیین په خپله نوے اصطلاح کښې دا نۀ استعمالوی نو پدے لحاظ سره د هغوی په نیز د نسخ معنیٰ ده د یو آیت بعض اوصاف په بل آیت سره زائل کول، برابره ده چه دا ازاله او تغییر د عمل د مودے د انتهاء د بیانولو دپاره شوے وی او که د متبادرے معنی غیر متبادرے معنی ته راجع کولو دپاره شوی وی۔ یا ددے دپاره شوی وی چه دا بیان کړی چه دا فلانے قید اتفاقی دے او احترازی نۀ دے۔ یا په کوم عام لفظ کښې د تخصیص په ذریعه شوی وی، یا د جاهلیت د یو رواج یا سابقه شریعت د یو حکم د ازالے دپاره وی۔نو د دوی په نیز باندے د نسخ باب ډیر فراخه دے پدے وجه د اختلاف دائره ډیره زیاته کولاوه شویده تردے چه د منسوخ آیتونو تعداد (۵۰۰) ته اُورسولے شو او که ژور غور او فکر اُوکړے شي نو د هغے تعداد په کوم حد پورے محدود او محصور کیږی نۀ ، لیکن د متأخرینو د اصطلاح مطابق د منسوخ آیتونو تعداد ډیر کم دے خاصکر د هغه توجیه په لحاظ سره کوم چه مونږ اختیار کړیده انتهیٰ۔

د شام مشهور عالم علامه جمال الدین القاسمي المتوفی (۱۳۳۲ هجری) هم د حافظ ابن قیمؒ، علامه شاطبیؒ او د شاه ولي الله الدهلویؒ مذکوره عبارات نقل کړیدي او د هغے په رنړا کښې ئے د نسخ په باره کښې د متقدمین او متاخرینو د اصطلاحاتو فرق واضح کړیدے۔ [تفسیر القاسمي (۳۰/۱) وعلوم القرآن ۳٦٦/۲ للشیخ گوهر رحمان]۔

پدے باندے د پوهے دپاره یو څو مثالونه اُوګورئ ! عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه ﴿مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُ فِيهَا مَا نَشَاءُ لِمَنْ نُرِيدُ﴾ ۔ دا ناسخ دے ددے آیت دپاره ﴿مَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ وَمَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا﴾ ۔ (یعنی دے آیت کښې عامه خبره ده چه څوك د آخرت اراده لري نو هغه به ورکړو او که څوك د دنیا

اراده لری نو هغه به ورکړو دا منسوخ دے په مخکنی آیت چه په هغے کښې ئے دا قید لګولے دے چه (ما نشاء لمن نرید) یعنی چا ته چه اُوغواړو او څومره چه اُوغواړو لکه ددے تشریح مخکښې هم تیره شویده۔

نو دا په حقیقت کښې تقیید د مطلق دے ځکه چه مخکښې (نؤته منها) مطلق دے او معنیٰ ئے مقید ده په مشیئت د الله تعالی سره۔ دا د پوهے دپاره مثال دے ورنه دا خو جمله خبریه ده او په اخباراتو کښې نسخ نۀ واقع کیږی۔

٢- دغه شان وائی چه ﴿وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُنَ﴾ دا منسوخ دے په دے آیت: ﴿اِلَّا الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا﴾ (ځکه چه مخکښې وائی شاعرانو پسے ګمراهان روان وی او بیا وائی چه ایمان والا ددے نه مستثنیٰ دی)۔

٣- دغه شان وائی: ﴿لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَأْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا عَلٰى اَهْلِهَا﴾ [النور: ٢٧] دا منسوخ دے پدے آیت ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ مَسْكُوْنَةٍ﴾ [النور: ٢٩] ځکه چه په اول آیت کښې وائی چه د خپلو کورونو نه علاوه د بل چا کورونو ته بغیر د اجازت او د سلام اچولو نه داخلیدل منع دی۔ بیا وائی چه کوم کور د اُوسیدو نۀ وی (یعنی منډئ، ګودام وغیره وی) چه ستا مال او سامان پکښې پروت وی نو هغے ته به غیر د اجازت نه هم داخلیدل جائز دی۔ دا په حقیقت کښې ناسخ او منسوخ نۀ دی۔

٤- دغه شان وائی: ﴿اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا﴾ [التوبة: ٤١] دا منسوخ دے پدے آیت: ﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَافَّةً﴾ [التوبة: ١٢٢] ځکه چه اول آیت نه معلومیږی چه سپك او درانه ټول خلق به جهاد ته اُوځی او روستنی آیت کښې وائی: مؤمنانو له پکار نۀ دی چه ټول جهاد ته اُوځی۔ هر آیت کښې خپله خپله معنیٰ ده لیکن پدے سره ئے دا تنبیه ورکړه چه د تبوك د غزا نه روستو په ټولو خلقو باندے نفیر (وتل) واجب نۀ دی۔

٥- دغه شان وائی: ﴿قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ﴾ منسوخ دے پدے آیت: ﴿وَاعْلَمُوْا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ﴾ ځکه چه مخکښې وائی غنیمت د الله او د رسول دے او بیا وائی پنځمه پکښې د الله او رسوله ده نو دا په اصل کښې بیان د مجمل دے۔ او نسخ نۀ ده لیکن متقدمین دیته هم نسخ وائی۔

٦- وائی: ﴿وَاِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُو الْقُرْبٰى وَالْيَتَامٰى وَالْمَسَاكِيْنُ فَارْزُقُوْهُمْ﴾ دا منسوخ دے په آیت د میراث باندے۔ لکه دا خبره د ضحاكؒ او سُدیؒ او عکرمةؒ نه نقل ده او حسنؒ وئیلی دی دا منسوخ دے په زکوٰة باندے۔ سره ددے نه چه جمع بین الآیتین ممکن دے چه اول

آیت دِے حمل شی په ندب او استحباب باندے او د اولو القربی نه مراد غیر وارثین دی۔

۷- دغه شان فرمائی :﴿ وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِیْ اَنْفُسِکُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ یُحَاسِبْکُمْ بِهِ اللّٰهُ فَیَغْفِرُ لِمَنْ یَّشَاءُ﴾ [البقره ۲۸٤]دا منسوخ دے په روستو آیت : ﴿ لَایُکَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾۔

۸- دغه شان وائی :﴿ وَلَا یُبْدِیْنَ زِیْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ ۔

دا منسوخ دے په ﴿ وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ﴾ سره او حال دا چه دا نسخ نۂ ده بلکه دا تخصیص دے د مخکنی عموم۔

دغه شان نور مثالونه چه امام شاطبی په الموافقات کښ او امام جمال الدین القاسمی په تفسیر القاسمی (۱/ ۳۲) کښ ذکر کړیدی۔

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله ددے درے مثالونه ذکر کړیدی :

یو﴿ اِتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقَاتِهٖ﴾ دویم ﴿ وَجَاهِدُوْا فِی اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ﴾ یعنی د الله تعالیٰ نه اُویریږئ څنګه چه د هغه نه د یریدو حق وی او د الله تعالیٰ دپاره جهاد اُوکړه څنګه چه د جهاد حق وی) ددے دواړو آیتونو په باره کښ وئیلے شویدی چه دا په ﴿ فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾ سره منسوخ شویدی حال دا چه ددے آیتونو ترمینځ هیڅ تعارض نشته لیکن بعض خلق د حق تقاته او د حق جهاده مفهوم دا اخلی چه پدے آیتونو کښ د هغه کار حکم شویدے چه د بنده د وسع او طاقت نه بهر وی نو الله تعالیٰ په ما استطعتم) سره ددے غلط فهمئ ازاله اُوکړه او دا وضاحت ئے اُوکړو چه د تقویٰ او جهاد حق دا دے چه د خپل پوره طاقت مطابق تقویٰ او جهاد اختیار کړے شي۔ او دریم مثال ئے دا پیش کړیدے چه ﴿ وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِیْ اَنْفُسِکُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ یُحَاسِبْکُمْ بِهِ اللّٰهُ﴾یعنی که تاسو ښکاره کوئ هغه خبره چه ستاسو په زړونو کښ ده یا ئے پټه ساتئ نو الله تعالیٰ به تاسو سره په هغے باندے حساب کوی) نو ما فی انفسکم عام دے وسوسے او غیر اختیاری خیالاتو ته هم شامل دے او عقیدو او عزائمو ته هم شامل دے۔ پدے وجه صحابه کرامو اُوفرمایل : که زمونږ په زړونو کښ د هرے پټے خبرے حساب اُوکړے شی نو بیا خو مونږ نجات نشو موندلے ځکه چه وسوسے او غیر اختیاری خیالاتو نه بچ کیدل زمونږ په وسع کښ نۂ دی، نو الله تعالیٰ د وضاحت دپاره دا آیت نازل کړو﴿ لَایُکَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾ (یعنی الله تعالیٰ تکلیف نۂ ورکوی یو نفس ته مګر د هغه کار چه دا ئے طاقت لری) نو بعض صحابه کرام او تابعین وائی چه (لا یکلف الله نفساً) سره (ما فی انفسکم) منسوخ شویدے لیکن هغوی تخصیص ته د نسخ نوم ورکړیدے چه دا د هغوی خاص اصطلاح وه۔ (فتاوی ابن تیمیه طبع مؤسسه قرطبه

(۱/۱٤)۔

حافظ ابن قيم رحمه الله فرمائي : د حذيفه ﷺ او د عام سلفو د ناسخ او منسوخ نه كله دا مراد وي چه پوره حكم پورته كړے شي او د متأخرينو همدا اصطلاح ده او كله د هغوي مراد دا وي چه د عام عموم د تخصيص په ذريعه پورته كړے شي، يا د مطلق اطلاق لره د قيد لګولو په ذريعه پورته كړے شي، يا ظاهري مفهوم د بيان او وضاحت په ذريعه پريخودے شي تردے چه سلفؒ استثناء، شرط او صفت ته هم د نسخ نوم وركوي ځكه چه دا درے واړه هم ظاهري معني ختموي اود اصل مراد وضاحت كوي نو د سلفو په اصطلاح كښ د يو لفظ د معني مرادے په بل لفظ سره وضاحت كولو ته هم نسخ وئيلے كيږي، نو څوك چه د سلفو په كلام كښ غور او فكر اُوكړي نو ددے اصطلاح ډير مثالونه به اُوګوري او ډير هغه اشكالات به ئے زائل شي چه د متقدمينو اصطلاح د متأخرينو په اصطلاح باندے د محمول كولو نه پيدا كيږي۔ (اعلام الموقعين عن رب العالمين طبع بيروت (۱۹۷۷) (۳۵/۱)

حافظ ابن قيمؒ چه كوم اشكالاتو ته اشاره كړيده هغه دا دي چه په بعض تفاسيرو كښ ډيرزيات آيتونو ته ئے منسوخ وئيلي دي چه هغه د سياق سباق او د شان نزول د رواياتو نه معلوميږي چه هغے باندے اُوس هم عمل باقي پاتے دے حال دا چه په منسوخ باندے عمل جائز نۀ وي۔

لكه مثلًا د عفو او درګزر، د نرمۍ او فراخدلۍ او جبر او اكراه نۀ كولو په باره كښ چه څومره آيتونه قرآن كريم كښ راغلي دي نو هغه په قتال في سبيل الله آيتونو سره منسوخ كوي حال دا چه د عفو او بد ګوئي او رد بد نۀ وئيل او برداشت كول دا قسم صفات او اخلاق د دعوت او تبليغ او د تربيت سره تعلق لري او د داعي دپاره د دغه صفاتو خپلول ضروري دي لهذا دغه صفاتو ته منسوخ وئيل صحيح نۀ دي۔ نو كوم خلقو ته چه د متقدمينو د اصطلاح علم نۀ وي نو هغوي دے قسم آيتونو ته منسوخ وئيلو كښ حيران او پريشانه شي او په ډير تكليف كښ مبتلا شي چه دے ته څنګه منسوخ اُووئيلے شي؟۔

ليكن كومو خلقو ته چه د متقدمين او متأخرينو د اصطلاح فرق معلوم وي نو هغوي ته هيڅ اشكال نۀ راځي بلكه هغوي فوراً دا معلوموي چه پدے ځائے كښ د نسخ نه مراد تخصيص، او د ناسخ نه مراد مُخصص او د منسوخ نه مراد مخصوص عنه البعض دے، چونكه د عفو او نرمۍ او اخلاقو او د صبر د تلقين والا آيتونونه دا غلط فهمي د خلقو په

ذهن کښې راتلے شوه چه شاید په اسلام کښې به د جنګ او قتال هر شکل ممنوع وی او په هر حالت کښې به ممنوع وی، نو پدے وجه د قتال فی سبیل الله آیتونو پدے عموم کښې تخصیص اُوکړو او پدے سره ئے دغه غلط فهمی زائله کړه او دا وضاحت ئے اُوکړو چه د اسلام د غالب کولو او د اسلامی نظام قائمولو او د عدل او انصاف نظام نافذ کولو او د ظلم او فساد نظام د ختمولو دپاره د شرعی آدابو مطابق جهاد او قتال کول یوه دینی فریضه ده چه تر قیامته پورے به جاری وی۔ او پاتے شو (لا اکراه فی الدین) (فاعف عنهم) (فاعرض عنهم) فاصبر کما صبر اولو العزم من الرسل) وغیره آیتونه نو دا منسوخ نهٔ دی بلکه دا د دعوت او تبلیغ او تعلیم پورے خاص دی او سلفو دے تخصیص ته د نسخ نوم ورکړیدے۔ ورنه د متاخرینو د اصطلاح مطابق دا آیتونه محکم دی او هیڅ نسخ پکښې نشته۔ (راجع علوم القرآن ۳٦۱/۱) للشیخ ګوهر رحمان)۔

## وقوع النسخ وجوازه

(د نسخ واقع کیدل او د واقع کیدو جواز او امکان)

دا خبره دِے واضح وی چه نسخ په شریعتونو کښې جائز بلکه واقع شوے ده او دا بعینهٖ د حکمة موافق کار دے۔ او دا عقلًا هم جائز ده او سمعاً او نقلًا هم واقع ده۔

علامه جمال الدین القاسمیؒ فرمائی :

[قَدْ تَقَرَّرَ اَنَّ النَّسْخَ فِی الشَّرَائِعِ جَائِزٌ، مُوَافِقٌ لِلْحِكْمَةِ وَوَاقِعٌ، فَإِنَّ شَرْعَ مُوْسٰی نَسَخَ بَعْضَ الْاَحْكَامِ الَّتِیْ كَانَ عَلَیْهَا إِبْرَاهِیْمُ وَشَرْعَ عِیْسٰی نَسَخَ بَعْضَ اَحْكَامِ التَّوْرَاةِ، وَشَرِیْعَةُ الْإِسْلَامِ نَسَخَتْ جَمِیْعَ الشَّرَائِعِ السَّابِقَةِ، لِاَنَّ الْاَحْكَامَ الْعَمَلِیَّةَ الَّتِیْ تَقْبَلُ النَّسْخَ، إِنَّمَا تُشَرَّعُ لِمَصْلَحَةِ الْبَشَرِ وَالْمَصْلَحَةُ تَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الزَّمَانِ، فَالْحَكِیْمُ الْعَلِیْمُ یَشْرَعُ لِكُلِّ زَمَنٍ مَا یُنَاسِبُهٗ، وَكَمَا تُنْسَخُ شَرِیْعَةٌ بِأُخْرٰی، یَجُوْزُ اَنْ تُنْسَخَ بَعْضُ اَحْكَامِ شَرِیْعَةٍ بِاَحْكَامٍ أُخْرٰی فِیْ تِلْكَ الشَّرِیْعَةِ۔

(دا خبره ثابته شویده چه نسخ په شریعتونو کښې جائز ده، او موافق د حکمة ده او واقع ده، ځکه چه د موسی علیه السلام شریعت بعض هغه احکام منسوخ کړل کوم بانديے چه ابراهیم علیه السلام وو۔ او د عیسی علیه السلام شریعت بعض احکام د تورات منسوخ کړل۔ او شریعت اسلامی ټول مخکنی شریعتونه منسوخ کړل، ځکه هغه عملی احکام چه نسخ قبلوی نو هغه د انسانانو د مصلحت دپاره مشروع کیږی او د زمانے په مختلف کیدو سره هغه مصلحتونه هم مختلف کیږی، نو ددے وجه نه حکیم او علیم ذات د هرے زمانے دپاره د هغے مناسب

احکام راليږي ، او لکه څنګه چه يو شريعت په بل منسوخ کيدل جائز دي نو دغه شان د يو شريعت بعض احکام په بعضو نورو احکامو سره منسوخ کيدل هم جائز دي) بيا ئے ددے مثالونه راوړي دي :

چه مسلمانان اول کښ بيت المقدس ته په مانځه کښ متوجه کيدل بيا دا منسوخ شو کعبے ته په متوجه کيدلو سره۔ او دے خبره کښ د مسلمانانو اختلاف نشته۔

اختلاف پدے کښ دے چه آيا قرآني احکام منسوخ کيدے شي او که نهٔ ؟ اګرکه په قرآن سره منسوخ کيدل ولے نهٔ وي۔ نو ابو مسلم محمد بن بحر الاصفهاني (المتوفي ۳۲۲ هجري) مشهور مفسر معتزلي وئيلي دي چه په قرآن کښ هيڅ آيت منسوخ نشته او کومو آيتونو ته چه خلقو منسوخ وئيلي دي نو هغے کښ ئے داسے تاويلات او تخصيصات کړيدي چه د نسخ نه ئے ويستلي دي۔

ليکن د جمهورو علماؤ مذهب دا دے چه قرآن په قرآن سره منسوخ کيدے شي، او ددے نه هيڅ مانع نشته چه د يو آيت حکم دِے منسوخ شي او هغه دِ په کتاب الله کښ باقي وي او د هغے په تلاوت دِے عبادت کيدے شي۔ الی آخر ما قال۔ [تفسير القاسمي ۲۹/۱]۔

لهذا د ابو مسلم الاصفهاني قول ضعيف او شاذ دے چه د جمهور امت مخالف دے۔ او ډيرو امامانو د تفسير په هغه باندے ردونه کړيدي۔ ځکه چه د هغه په قول کښ په قرآن کريم کښ د نسخ د واقع کيدو نه انکار لازميږي۔

## د نسخ په واقع کيدو عقلي دلائل:

(۱) اول دا چه په نسخ کښ عقلًا هيڅ محظور او منع نشته ځکه چه الله تعالیٰ فاعل مختار دے د بندګانو حالاتو نه خبر دے نو کوم شے چه هغوی ته په يو وخت کښ فائده ورکوي په هغے باندے ورته امر کوي او په بل وخت کښ ضرر ورکوي نو د هغے نه منع کوي او عقل ددے يو نه هم منع نکوي۔

(۲) دويم دا چه که نسخ عقلًا جائز نشي او نقلًا واقع نشي نو بيا خو به دا جائز نشي چه شارع بندګانو ته يو حکم اُوکړي چه هغه مؤقت وي د يو وقت پورے چه د هغه وخت په ختميدو سره هغه حکم ختميږي او دا خو منکرين د نسخ هم مني نو پکار ده چه نسخ هم اُومني ځکه چه د نسخ معنیٰ هم دا ده چه اول حکم د الله تعالیٰ په نيز يو معلوم وقت پورے وو اګرکه مونږ ته د هغے علم نهٔ وو خو په نسخ سره الله تعالیٰ مونږ ته خبر راکړو۔

ددے مثال دا دے مثلًا الله تعالیٰ د رمضان په اوله ورځ اُوفرمائی : [صُومُوا اِلٰی نِهَايَةِ الشَّهرِ]۔ (تاسو روژه اُونیسئ تر میاشت ختمیدو پورے) نو دا مساوی دے ددے قول چه په ابتداء د رمضان کښ اُوفرمائی : [صُومُوا]۔(روژه اُونیسئ) او څه قید پکښ اُونهٔ لګوی او چه کله میاشت په ختمیدو شی نو بیا بل حکم اُوکړی چه [اَفطِرُوا]۔(روژه ماته کړئ) نو پدے سره اول حکم (د صوم) منسوخ شو ددے مثال او د اول مثال هیڅ فرق نشته نو دغه مثال خو منکرین هم منی نو پکار ده د نسخ مثال هم اُومنی۔

(۳) **دلیل :** که نسخ جائز او ثابت نشی نو بیا به د رسول الله ﷺ تولو خلقو ته رسالت ثابت نشی لیکن د رسول الله ﷺ تولو خلقو ته رسول کیدل خو په یقینی دلائلو ثابت دی نو معلومه شوه چه مخکنی شریعتونه اُوس باقی پاتے ندی بلکه هغه منسوخ دی پدے آخری شریعت د محمد رسول الله ﷺ سره نو ثابته شوه چه نسخ جائز او واقع ده۔ نو که نسخ ثابته نشی نو بیا خو به مخکنی شریعتونه منسوخ نهٔ وی او هغه به اُوس هم باقی وی او چه هغه اُوس باقی وی نو بیا خو د رسول الله ﷺ رسالت تولو خلقو ته نهٔ ثابتیږی۔ او دا خبره خو ظاهر البطلان ده۔

## د نسخ د ثبوت دپاره شرعی دلائل :

دا په دوه قسمه دی یو هغه دی چه رد وی په منکرینو د نسخ باندے چه یهود او نصاریٰ دی۔ دویم هغه دی چه هغه رد وی په هغه چا هغوی د نبی ﷺ په نبوت ایمان راوړے وی لکه ابو مسلم الاصفهانی وغیره د مسلمانانو نه یا په یهودیانو کښ عیسویه ډله چه هغوی د رسول الله ﷺ په رسالت باندے اقرار کوی لیکن وائی چه صرف عربو ته رسول وو۔

نو اول قسم دلائل دا دی :

## د تورات او انجیل نه د نسخ د جواز ثبوتونه :

د یهودیانو چه کومے فرقے د نسخ فی الاحکام نه انکار کوی نو د هغوی دعویٰ دا ده چه موسی علیه السلام وئیلی وو چه زما شریعت نشی منسوخ کیدے لیکن پخپله د تورات نه د هغوی ددے دعوے تکذیب معلومیږی اګرچه تورات او انجیل په خپل اصلی شکل کښ موجود نهٔ دی بلکه احبار او رهبانو په هغے کښ ډیر تحریفات کړیدی چه د هغے په وجه ئے

مشکوك کړيدی، په خپل اصلی حالت باندے صرف قرآن کريم محفوظ دے او د نسخ د جواز دپاره زمونږ قرآنی آيات کافی دی چه روستو به ذکر شی ان شاء الله تعالیٰ ليکن په الزامی طور سره د بائيبل نه څو حوالجات پيش کيږی چه د هغے نه د نسخ اثبات کيږی :

۱- سفر تکوين يعنی کتاب پيدائش باب (۲۹) آيات : ۲۳ نه تر (۳۰) پورے صريح طور سره ثابتيږی چه د لابَن دوه لونړه لیَا او رَاحِيل چه دواړه خپلے خويندے وے په يو وخت کښ د يعقوب ﷺ په نکاح کښ وے۔ (کتاب مقدس طبع بائيبل سوسائتی انار کلی لاهور (۱۹۸۷) ص : ۳۰)

ليکن احبار باب (۱۸) آيت نمبر (۱۸) کښ وئيل شويدی چه ((ته خپله ښينے سره واده کولو سره هغه د خپلے بی بی بنه مه جوړوه الخ)) معلومه شوه چه د يعقوب ﷺ په شريعت چه جمع بين الاختين يعنی دوه خويندے په يو وخت کښ په نکاح کښ ساتل جائز وو ليکن د موسی ﷺ په شريعت کښ ئے جواز منسوخ شو او دا کار حرام شو لکه په شريعت محمدی کښ چه څنګه حرام دے۔

(۲) کتاب پيدائش باب (۹) آيت (۳) نه ثابتيږی چه د نوح ﷺ په شريعت کښ هر ژندە سر حيوان حلال وو۔ ليکن په احبار باب (۱۱) آيات (٤) نه تر (۸) پورے تصريح موجوده ده چه د موسیٰ ﷺ په شريعت کښ اُوښ، خرګوش او خنزير ناپاك وو او د هغے خوړول او د هغے بدن له ګوتے وروړل منع وو۔ (کتاب مقدس)

(۳) کتاب الاستثناء باب (۲٤) : آيات (۱،۲) نه ثابتيږی چه د موسی ﷺ په شريعت کښ د طلاق ورکولو اجازت وو ليکن د انجيل متی باب (۱۹) : آيت (٦) نه تر (۹) پورے ثابتيږی چه د حرام کاری او زناکاری د صورت نه علاوه طلاق ورکول ممنوع دی۔ (انجيل مقدس ص : ۲۳)

(٤) کتاب پيدائش باب (۲۱) آيت (٤) او کتاب يشوع باب (۵) آيات : (۲) نه تر (۹) پورے ثابتيږی چه د موسی ﷺ په شريعت کښ د ختنے کولو حکم شويدے او ختنه کول ضروری وو۔ ليکن نصاریٰ ختنه نهٔ کوی، معلومه شوه چه د هغوی په نزد د ختنے حکم منسوخ شويدے۔

[انظر علوم القرآن للشيخ گوهر رحمان المردانی]۔

(۵) په تورات کښ راغلی دی چه الله تعالیٰ آدم ﷺ ته حکم اُوکړو چه خپلے لونړه خپلو ځامنو ته په نکاح کړی ردو بدل، يعنی يو ه خيټه کښ به هلك او جينئ پيدا کيدل نو چه

په بله خيته کښې به کوم هلك پيدا شو هغه به د اولے خيتے جينۍ په نکاح اخسته او د دويمے خيتے جينۍ به اول هلك په نکاح اخسته۔ بيا دا حکم د ټولو انسانانو په نيز منسوخ شو که مسلمانان دي او که يهود او نصارئ دي۔

(٦) الله تعالىٰ ابراهيم عليه السلام ته حکم اُوکړو چه خپل ځوی (اسماعيل) ذبح کړی بيا ورته الله تعالىٰ اُوفرمايل: مۀ ئے ذبح کوه نو اول حکم ئے منسوخ کړو او دا خو منکرين د نسخ هم مني۔

(٧) د خالي په ورځ د دنيا کار مباح وو ترديے چه ښکار هم جائز وو ليکن بيا الله تعالىٰ په يهوديانو باندے حرام کړو۔

(٨) الله تعالىٰ بنی اسرائيلو ته حکم کړے وو چه چا د سخی عبادت کړے وی نو هغه به قتلوئ بيا ئے ورته حکم اُوکړو چه باقی معاف شو۔ [مناهل العرفان فی علوم القرآن (٤٧١/٢)]۔

**قرآنی دلائل**: دويم قسم نقلی دلائل بعض دا دی:

(١) اول دا آيت: ﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ آيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِنْهَا اَوْ مِثْلِهَا﴾ [البقره: ١٠٦]۔

(٢) دويم: ﴿يَمْحُوا اللّٰهُ مَايَشَاءُ وَيُثْبِتُ وَعِنْدَهٗ اُمُّ الْكِتَابِ﴾ (الرعد: ٣٩)۔ دا آيتونه نازل شويدی په رد د هغه چا کښې چه هغوی په نبی ﷺ او په اسلام باندے د نسخ په واقع کيدو کښې طعن وئيلے وو۔

(٣) دليل: ﴿وَاِذَا بَدَّلْنَا آيَةً مَكَانَ آيَةٍ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ، قَالُوا: اِنَّمَا اَنْتَ مُفْتَرٍ، بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَايَعْلَمُوْنَ﴾ [النحل: ١٠١] طريقه د استدلال داسے ده چه تبديل ديته وائی چه اصل حکم پورته کړے شی او د هغے بدل راوړے شی او همدا بعينه نسخ ده برابره ده که پورته کړے شوے تلاوت وی او که حکم وی۔

(٤) دليل: دا قول د الله تعالىٰ: ﴿فَبِظُلْمٍ مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ اُحِلَّتْ لَهُمْ﴾ [النساء: ١٦٠] استدلال داسے دے چه دے آيت نه معلوميږی چه بعض هغه څيزونه چه د يهوديانو دپاره مخکښې حلال وو نو الله تعالىٰ د هغوی د ظلم په وجه په هغوی باندے حرام کړل۔ او همدغے ته نسخ وائی۔ او (احلت) کلمه دلالت کوی چه اول حکم شرعی حکم وو او براءت اصليه نۀ وو۔

(٥) په قرآن کريم کښې ډير داسے آيتونه شته چه د هغے حکم منسوخ شويدے۔ (٦) سلفو پدے اجماع کړيده چه په شريعت اسلامی کښې نسخ واقع شوبده۔

دا ټول دلائل د نسخ دي۔

او هرچه د یهودیانو دا خبره چه د موسی علیه السلام شریعت نهٔ منسوخ کیږي ځکه هغه دا خبره کړیده چه ((زما شریعت به هغه وخت پورې جاري وي چه تر څو پورې آسمان او زمکه موجود وي)) نو دا د کیتهولك او پروتستنت دواړو طبع کرده بائیبل کښې موجود نهٔ ده بلکه دا ابن راوندي د ځان نه وضع کړې قول دے چه هغه اسلام ته د نقصان رسولو دپاره موسی علیه السلام ته منسوب کړیدے دے دپاره چه یهودیان اسلام ته مائل نشي او په خپل یهودیت باندې قائم پاتې شي، ددې شخص نوم احمد بن یحیی بن اسحاق وو چه د اصفهان د یوې علاقه راوندي د نسبت په وجه په ابن راوندي نوم سره مشهور وو د هغه عمر (۳٦) کاله وو لیکن پدې کم عمر کښې هم وئیلې شي چه ده (۱۱٤) کتابونه لیکلي وو۔

ابن کثیرؒ لیکلي دي چه دا شخص زندیق او ملحد وو، ده د ابن لاوي یهودي دپاره د قرآن کریم په رد کښې یو کتاب لیکلے وو چه د هغې نوم وو (الدامغ للقرآن) چه د هغې د تکمیل نه څو ورځې روستو دا مړ شو او بعضو وئیلي دي چه پهانسي کړې شو۔ ابن خلکان ددې زندیق تاریخ وفات (۲٤٥ هجري) خودلے دے لیکن ابن کثیرؒ د ابن جوزيؒ په حواله سره لیکلي دي چه صحیح دا ده چه دا په (۲۹۸ هـ) کښې وفات شویدے۔

[البدایة والنهایة (۱۱/۱۱۲،۱۱۳) وعلوم القرآن]۔

(۲) دویم جواب: دا اعتراض د دوی د مدعی نه ښکاره قاصر دے ځکه که اُومنو چه دا قول ثابت دے نو بیا خو ددے نه صرف دا ثابتیږي چه د موسی علیه السلام شریعت په بل شریعت سره نهٔ منسوخ کیږي او هرچه نورو شریعتونه منسوخ کیدل دي نو د هغې نسخ خو تې په شریعت موسوی سره منلے ده۔

(۳) جواب: دا خبره مونږ نهٔ منو چه دوی وائي تورات به همیشه دپاره د دوی په لاسونو کښې محفوظ وي بلکه دلائل پدې موجود دي چه د صحیح تورات هیڅ وجود نشته بلکه په هغې کښې داسې تغیير او تبدیل شویدے چه اصل حقیقت ئې ورله بدل کړیدے۔ داسې خرافات او استهزاءات ئې د انبیاء علیهم السلام پسې کړیدي چه عقل د هغې نه انکار کوي پاتې لا شریعت۔ کله ئې لیکلي دي چه نوح علیه السلام ټول پلاران تر آدم علیه السلام پورې موندلي وو او د آدم علیه السلام د زمانې نه ئې دوه سوه کاله موندلي وو، په بعضو نسخو کښې دي چه نوح علیه السلام د ابراهیم علیه السلام د عمر نه (۵۸) کاله لاندې کړي وو چه دا د تاریخ په لحاظ سره باطلې خبرې دي۔

کـلـه ئے داسے بے ادبی کریده چه الله تعالیٰ عالم ته د طوفان په راليږلو پښيمانه شوے زو، (اعـاذنـا الله من تلك الخرافات والهذيانات) کله وائی : لوط ﷺ شراب اُوڅکل او نشه شو او د خپـلو دواړو لونړو سره ئے زنا اُوکړه۔ (حاش لله)۔ کله ئے ليکلی دی چه هارون ﷺ هغه شخص دے چه بنی اسرائیلو له ئے سخے جوړ کړے وو او هغوی ته ئے د الله تعالیٰ نه ماسویٰ ددے د عبادت دپاره دعوت ورکړے وو۔ [راجع لتفصيل هذا البحث مناهل العرفان]۔

**شروط النسخ** : د نسخ دپاره څلور شروط او قواعد دی :

(۱) اول : (وُجُوْدُ النَّاسِخِ)۔(د منسوخ دپاره به ناسخ ضرور موجود وی) د ناسخ د وجود نه بغير دعوے د نسخ کول لکه بعض جاهلان ئے کوی صحيح نهٔ دی۔

(۲) اَنْ يَّـكُوْنَ الْمَنْسُوْخُ حُكْمًا شَرْعِيًّا] ۔ (کـوم حـکم چه منسوخ شوے وی هغه به حکم شرعی وی) نهٔ لغوی۔

(۳) [اَلثَّانِیْ : اَنْ يَّكُوْنَ دَلِيْلُ رَفْعِ الْحُكْمِ دَلِيْلاً شَرْعِيًّا]۔

(حـکـم چـه پـه کـوم دلیـل سـره پورتـه شوے وی هغه به شرعی دلیل وی) یعنی قیاس او عقل سره نسخ نهٔ ثابتيږی۔

(٤) [اَلثَّـالِـثُ: اَنْ يَّـكُـوْنَ هـٰذَا الـدَّلِيْـلُ الـرَّافِـعُ مُتَـرَاخِيًا عَنْ دَلِيْلِ الْحُكْمِ الْاَوَّلِ غَيْرَ مُتَّصِلٍ بِهٖ كَاتِّصَالِ الْقَيْدِ وَالْمُقَيَّدِ وَالتَّاقِيْتِ بِالْمُوَقَّتِ]۔

(دريـم دا چـه پـورتـه کـونـکے دليـل به روستو وی د اولنی حکم د دليل نه (يعنی ناسخ به مؤخـر وی د مـنسـوخ نـه) او هـغـے سـره بـه داسے پيوسته نهٔ وی لکه قيد چه د مقيد سره پيوسته وی يا وقت د مؤقت سره)۔

(٥) [كَوْنُ النَّاسِخِ اَقْوىٰ مِنَ الْمَنْسُوْخِ اَوْمُسَاوِيًا لِلْمَنْسُوْخِ]۔

(نـاسـخ بـه د منسوخ نه ډير قوی وی يا به ورسره مساوی (برابر) وی، هله به نسخ راځی۔ که منسوخ دليل قوی وی او ناسخ ضعيف وی نو بيا هم نسخ نهٔ رازی۔

(٦) [اَنْ يَّـكُوْنَ بَيْـنَ ذَيْنِكَ الدَّلِيْلَيْنِ تَعَارُضٌ حَقِيْقِیٌّ وَلَايُمْكِنُ التَّطْبِيْقُ بَيْنَهُمَا]۔ (د دواړو دليلونو (ناسخ او منسوخ) ترمينځ به حقيقی تعارض وی چه تطبيق به ئے ممکن نهٔ وی)۔

## نسخ په کوم څيزونو کښې راتلے شی ؟

د مخکښې تعریف د نسخ نه دا واضحه شوه چه نسخ صرف په احکامو کښې راتلے شی او دا اتـفاقی مسئله ده په مابين د قائلينو د نسخ کښې او نسخ په فروعی عباداتو او معاملاتو

کښې راتلې شي هرچه عقائد او اخلاق او اصول العبادات او معاملات دي يا اخبارات او قصص دي نو په هغې کښې نسخ نشي راتلې. او دا د امت د جمهورو علماؤ صحيح قول دے.

(بيا د اصول العبادات او اصول المعاملات او فروعو ترمينځ فرق دا دے چه فروع هغه دي چه د هيئات او اشکالو، امکنهٔ او زمانو او عدد سره تعلق لري يا کميات او کيفياتو سره تعلق لري او اصول العبادات والمعاملات د هغې ذواتو ته وئيلے شي قطع نظر د کم او کيف نه).

هرچه عقائد دي نو په هغې کښې نسخ ځکه نشي راتلې چه هغه صحيح ثابت حقائق دي چه هيڅ تغيير او تبديل نهٔ قبلوي. او هرچه اخلاق دي نو د هغې په مشروع والي کښې د الله تعالىٰ حکمة او د خلقو مصلحت يو داسے ښکاره څيز دے چه د زمانو په تيريدو باندے په هغې کښې هيڅ اثر نهٔ کيږي او د اشخاص او امتونو په اختلاف سره هغه نهٔ مختلف کيږي بلکه کوم اخلاق چه د پخوانو دپاره ضروري وو هغه د روستنو دپاره هم ضروري دي لهذا هغې کښې هم نسخ په تبديل او تغيير سره نشي راتلے.

او هرچه اصولي عبادات او اصولي معاملات دي نو هغې کښې ځکه نسخ نشي راتلے چه د خلقو حاجت هغې ته ښکاره دے، دے دپاره چه د نفسونو تزکيه او پاکي اُوکړے شي ځکه چه په دغه عباداتو سره د بندګانو صفائي او تزکيه کيږي او بندګان داسے تزکيه ته حاجت لري. او د مخلوق علاقه د خالق سره او دارنګه د مخلوق خپل مينځ کښې د يو بل سره تعلق پدے باندے بناء دے نو د هغې په پورته کولو او منسوخ کولو کښې هيڅ وجه او حکمة نهٔ ښکاره کيږي.

او هرچه اخبار او قصے او فضائل دي نو په هغې کښې نسخ پدے وجه نهٔ راځي چه بيا د شارع کذب لازميږي په يو د دواړو خبرونو کښې چه ناسخ دے يا منسوخ.

او دا خو عقلًا او نقلًا محاله خبره ده. ځکه چه کذب نقصان دے او نقصان په الله تعالىٰ باندے نشي راتلے.

او نقلًا پدے وجه چه الله تعالىٰ فرمائي :

﴿وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيْلًا﴾ [النساء : ۱۲۲].

البته ددے نه دا خبره مستثنى ده چه الفاظ د خبر منسوخ شي او معنىٰ ئے منسوخ نهٔ وي او دا خبره اجماعي ده. او ددے دوه صورتونه دي يو دا چه يو آيت نازل شي چه د يو شي

نـه ئې اخبار ورکړے وی بیا د هغه آیت فقط تلاوت منسوخ شی (۲) دویم دا چه شارع مونږ ته د یو شی د بیانولو حکم اُوکړی بیا مونږ د هغې د بیانولو نه منع کړی۔

دارنګـه هغـه خبر چه خالص نۀ وی بلکه په معنیٰ دانشاء کښې وی او دلالت کوی په یو امر یا پـه نهی باندے چه هغې پورے احکام پیوسته وی نو په هغې کښې نسخ راتلل بالکل جائز دی ځکه اعتبار معنیٰ لره وی نۀ لفظ لره۔

نـو ددے نـه دا مـعـلـومـه شـوه چـه ټول الهی دینونه په اصولو او عقائدو او اخلاقو او په صدق د اخبـاراتـو کـښې شریك دی او په هغې کښې نسخ نۀ راځی۔ [مـنـاهـل العرفان وتـفـسیر القاسمی]۔

## حکمة د نسخ :

الله تـعـالیٰ د اسلام په وجه مخکنی ټول دینونه منسوخ کړل او بعض احکام ددے دین ئې په بعض نورو منسوخ کړیدی۔

الله تـعـالیٰ پـدے دیـن اسلام باندے پخوانی دینونه منسوخ کړل پدے کښې حکمة دا دے چـه پـدے کـښې اشاره ده چه اسلام یو داسے شریعت او دین دے چه د انسانیت د ټولو مرحلو حـاجـتـونـه پـدے باندے پوره کیږی۔ او دا هغه جامع دین دے چه د ټو ل انسانیت د حال سره مـناسب دے کوم انسانان چه ددے شریعت نه روستو پیدا کیږی د هغوی ټول حاجات پدے سره پوره کیږی۔

او شریـعـت کـښې بـعـض احـکـام پـه بـعـضو سره منسوخ شویدی پدے کښې د الله تعالیٰ حـکـمـة دا دے چه پـدے کـښې د امـت سیـاسـت او د هغوی د ترقی او صفائی راز پروت دے ځـکـه چه امت اسلامی په ابتداء کښې کله چه رسول الله ﷺ خپل دعوت شروع کړو نو د یـو سخت دور نه تیریدلو ځکه چه د هغوی عقائد، عادات او موروثات پریخودل په هغوی بـانـدے انتهائی سخت تـمامیدل سره ددے نه چه په عربو کښې (کوم چه اول مخاطبین ددے دیـن وو) په هغوی کښې په خپلو مفاخرو او شرافتونو باندے غیرت او مضبوطوالے موجود وو نـو کـه هغوی په یو ځل دا نوے دین شروع کړے وے نو کیدے شی چه پدے سره مقصود نـۀ وے حـاصـل شـوے او اسـلام پـه خپـل ابتدائی حالت کښې مړ شوے وے او هیڅ انصار او مـددګـار ئې نـۀ وے موندلی چه هغوی دے له غاړه ورکړے وے او مدافعت ئې ترے کړے وے ځـکـه ایکدم ټوپ وهل انسان عاجز کوی۔ نو پدے وجه خلقو ته شریعت په آرام آرام سره

راغلو، چه د هغوی زړونه ئے ځان ته راجلب کول او د هغوی په دعوت کښې ئے نرمی. کوله او هغوی ئے په آرام سره درجه په درجه کمل ته راخکل، د ترقی په لاروئے لړ لړ خیژول، او هغوی ئے په احکامو باندے ټریننګ کول، دے دپاره چه دوی د نرم او آسان حکم نه نرم او آسان ته بوځی او کله د نرم نه سخت ته او کله د سخت نه زیات سخت ته تردے چه خبره تمامه شوه او اسلام په داسے جلتئ سره کامیابئ ته اُورسیدو او نفسونه ورسره ګډوډ شو چه ددے په شان هیڅ دین دومره جلتئ سره کمال ته نۀ دے رسیدلے او انسانانو دومره ترقی په بل دین نۀ ده کړے۔

او دا حکمة پدے طریقه ښکاره کیږی چه کله ناسخ حکم د منسوخ نه زیات سخت وی لکه د خمرو مسئله واخله چه عربو به په اجماعی شکل سره شرابونه څکل، او دا ئے د عادت نه علاوه د قوت او د ځوانئ او کمال نخه ګنړله نو که اسلام ابتداءً ددے نه منع کړے وے نو دوی ته به دا ډیره مشکله ښکاره شوے وے، کیدے شی چه اسلام کامیابئ ته نۀ وے رسیدلے، نو اسلام دا کار اُوکړو چه د اول نه ئے د هغوی سره نرمی اُوکړه چه په ابتداء کښې ئے په دوی باندے په شرابو احسان ذکر کړو ګویا دا د هغوی سره په شعور کښې شریك کیږی نو کله چه هغوی د خمر او میسر په باره کښې تپوس اُوکړو نو اسلام ورته ۀامے اُووئیل چه دے کښې منافع هم شته او ضرر هم شته نو ابتداءً ئے ورته دا اُونۀ وئیل چه دا حرام دی او ددے نه ځان ساتئ۔

او کله اسلام سخت حکم منسوخ کړے وی په ډیر آسان باندے نو پدے کښې د الله تعالیٰ حکمة دا وی چه په خلقو باندے تخفیف او آسانی راشی او الله تعالیٰ په هغوی باندے خپل فضل او رحمت راښکاره کوی او پدے کښې تیزی وی هغوی له په ډیر شکر کولو او صفت وئیلو د الله تعالیٰ. او د هغه د دین سره ورله محبت پیدا کول مقصود وی۔

او کله یو حکم په خپل مساوی حکم سره منسوخ کوی، مخکښې هم مشکل حکم ؤی روستو هم، یا مخکښې هم آسان حکم وی او روستو هم نو پدے کښې حکمة دا وی چه په مخلوق باندے ابتلاء او ازمینښت اُوکړی دے دپاره چه مؤمن او منافق خلقو ته معلوم شی۔ ﴿لِيَمِيزَ اللّٰهُ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ﴾ ۔ او ایمان والا کامیابئ ته اُورسی او منافق هلاك شی۔ [مناهل العرفان]

علامه مناع القطان د نسخ د حکمتونو نه بعض دا ذکر کړیدی :

(۱) [مُرَاعَاةُ مَصَالِحِ الْعِبَادِ]۔ (په نسخ کښې مقصد د بندګانو د مصلحت رعایت او لحاظ

وی)۔

(۲) [تَطَوُّرُ التَّشْرِيْعِ إِلَى مَرْتَبَةِ الْكَمَالِ حَسْبَ تَطَوُّرِ الدَّعْوَةِ وَتَطَوُّرِ حَالِ النَّاسِ] ۔ (شریعت په دمه دمه کمال ته رسول د دعوت او د خلقو د حال د ترقئ مطابق)۔ یعنی لکه څنګه د خلقو حالت ایکدم نهٔ بدلیږی بلکه په درجه درجه سره بدلیدے شی نو دغه شان هغوی ته به دعوت هم دمه دمه کولے شی او ایکدم بـه داسے احکام نشی نازلیدے چه د هغوی طبیعتونه ترے نفرت اُوکړی) نو د خلقو د حال مطابق نازل شو۔

(۳) [اِبْتِلَاءُ الْمُكَلَّفِ وَاخْتِبَارُهُ بِالْاِمْتِثَالِ وَعَدَمِهٖ]۔

(بنده باندے امتحان کوی چه دا څوک خبره منونکے دے او څوک نهٔ دے منونکے)۔

(٤) [إِرَادَةُ الْخَيْرِ لِلْأُمَّةِ وَالتَّيْسِيْرُ عَلَيْهَا] ۔

(په نسخ کښ په امت باندے د خیر او د آسانئ اراده وی) ځکه که د آسان حکم نه ګران حکم ته نسخ اُوشی نو پدے کښ به اجر زیاتیږی او که د ګران نه آسان ته نسخ اُوشی نو پدے کښ به آسانی او نرمی غرض وی۔ [مباحث فی علوم القرآن ص (٢٤٦)]۔

## الطعون والاعتراضات على النسخ :

(د نسخ په واقع کیدو باندے اعتراضات)

بعض مستشرقین دا شبهه لری چه قرآن کریم کښ نسخ راغلے ده او نسخ په تحریف او تبدیل باندے دلالت کوی نو دا دلیل دے چه قرآن کریم محفوظ کتاب نهٔ دے، بلکه پدے کښ ډیر تغییر شویدے۔ وائی چه دا ثابته شویده چه ډیر آیتونه د رسول الله ﷺ نه روستو هم لوستل کیدل لکه حدیث د عائشةؓ کښ ذکر دی هغه فرمائی :

[كَانَ فِيْمَا أُنْزِلَ مِنَ الْقُرْآنِ عَشْرُ رَضَعَاتٍ مَعْلُوْمَاتٍ يُحَرِّمْنَ ثُمَّ نُسِخْنَ بِخَمْسٍ مَعْلُوْمَاتٍ فَتُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ وَهُنَّ فِيْمَا يُقْرَأُ مِنَ الْقُرْآنِ]۔

۲- بعض دا اعتراض کوی چه نسخ یوه حیله ده چه مسلمانانو ایجاد کریده دے دپاره چه کله د آیتونو په تناقض کښ راګیر شی نو بیا وائی چه یو آیت منسوخ دے په بل باندے۔ لکه آیتونه د عدت د متوفاة او آیتونه د مصابرے او آیتونه د قبلے شو۔

**جوابونه** : ۱- اول جواب دا دے چه نسخ په مخکنو شریعتونو کښ هم موجوده ده نو څوک چه د نسخ په وجه په قرآن کریم طعن او اعتراض کوی نو دا به په ټولو نازل شوی شریعتونو اعتراض کوی۔ چه د هغے مثالونه مخکښ مونږ ذکر کړل هغے ته رجوع

اُوکړه۔

۲- دویم جواب دا دے چه نسخ د قرآن کریم د محاسنو او ښائسته صفاتو او کمالاتو نه ده ځکه چه پدے طریقه الله تعالیٰ تربیت د خپلو بندګانو کوی۔لکه ددے تشریح تیره شوه او روستو به هم راشی۔

۳- جواب : نسخ عقلًا هم ثابته ده ځکه چه دا هر عقلمند منی چه یو بادشاه خپل رعیت ته اُووائی چه داسے کار اُوکړئ۔ او مقصد ئے دا وی چه دوی بل حکم ته تیار کړی۔کله چه هغے ته تیار شی نو بیا ورته اُووائی : چه اُوس دا کار اُوکړئ۔ یا طبیب یو سګریټی سړی ته اُووائی چه سګریټ ډیر مه څکه، بیا ورته څه موده بعد اُووائی چه د سګریټ سکلو نه لاس واخله۔

او هرچه قول د عائشےؓ دے نو د هغے مطلب دا دے چه دا آیتونه د نبی ﷺ د وفات وخت پورے لوستل کیدل۔

۲- یا د عائشے غرض دا دے چه نسخ د اسلام په آخری زمانو کښې هم موجوده وه یعنی د رسول الله ﷺ د زمانے د وفات پورے نسخ روستو شوے وه تردے چه بعض صحابه کرامو ته د نسخ علم نۀ وو شوے او هغوی به دغه آیتونه لوستل۔ ځکه نزدے زمانه کښې منسوخ شوی وو۔خو کله چه هغوی ته ددے منسوخ کیدل معلوم شو نو بیا ئے ددے نه رجوع اُوکړه۔ [کما قال النووی رحمه الله]۔

## اقسام النسخ فی القرآن

### [په قرآن کښې د نسخ اقسام]

په قرآن کریم کښې چه کومه نسخ واقع شویده د هغے درے اقسام ذکر کیږی (۱) نسخ د تلاوت او حکم دواړو په یو ځل۔

(۲) نسخ د حکم نۀ د تلاوت۔ (۳) نسخ د تلاوت نۀ د حکم۔

او پدے دریواړو باندے تقریباً د امت ټولو مذاهبو اتفاق دے۔

په اول قسم باندے خو د ټولو مسلمانانو اجماع ده او په نصوصو سره ثابت دے۔ لکه عائشه رضی الله عنها فرمائی :

[كَانَ فِيمَا أُنْزِلَ مِنَ الْقُرْآنِ عَشْرُ رَضَعَاتٍ مَعْلُومَاتٍ يُحَرِّمْنَ ثُمَّ نُسِخْنَ بِخَمْسٍ مَعْلُومَاتٍ فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ وَهُنَّ فِيمَا يُقْرَأُ مِنَ الْقُرْآنِ]۔

(مخکښې د قرآن نه دا نازل شوی وو چه لس ځل تے ورکول چه معلوم وی دا حرمت د رضاعت راولی۔ بیا دا منسوخ شو په پنځه ځل تئے ورکولو سره چه معلوم وی۔ او رسول الله ﷺ وفات شو او دا بیا هم د قرآن کریم نه لوستل کیدل)۔ نو د عشر رضعات حکم هم باقی پاتے نۀ دے او تلاوت ئے هم باقی پاتے نۀ دے۔

۲- دویم نسخ د حکم نۀ د تلاوت نو دا خو په ډیرو آیتونو کښې راغلے ده۔ (۱) لکه هغه آیت چه په هغے کښې د رسول الله ﷺ سره د مناجات او جرګے کولو نه مخکښې د صدقے ورکولو حکم دے یعنی : ﴿ یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا اِذَا نَاجَیْتُمُ الرَّسُوْلَ فَقَدِّمُوْا بَیْنَ یَدَیْ نَجْوَاکُمْ صَدَقَةً ﴾ [المجادلة : ۱۲] دا منسوخ دے په روستو آیت : ﴿ أَأَشْفَقْتُمْ اَنْ تُقَدِّمُوْا بَیْنَ یَدَیْ نَجْوَاکُمْ صَدَقَاتٍ، فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا وَتَابَ اللّٰهُ عَلَیْکُمْ فَاَقِیْمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّکٰوةَ وَاَطِیْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ (المجادلة : ۱۳] نو پدے کښې حکم د اول آیت منسوخ دے په حکم د دویم آیت باندے۔ او تلاوت د دواړو باقی دے۔

(۲) دارنګه دا قول د الله تعالیٰ: ﴿ وَعَلَى الَّذِیْنَ یُطِیْقُوْنَهٗ فِدْیَةٌ طَعَامُ مِسْکِیْنٍ﴾ [البقره : ۱۸٤] دا منسوخ دے په دے روستو قول د الله تعالیٰ :﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنْکُمُ الشَّهْرَ فَلْیَصُمْهُ﴾ [البقره : ۱۸۵] نو د مخکښې آیت حکم ددے آیت په حکم منسوخ دے اګرکه تلاوت د دواړو باقی دے او دا مثال بناء دے په یو قول ورنه پدے کښې نور اقوال شته چه په هغے سره نسخ نۀ راځی۔

(۳) دارنګه ﴿ وَالَّذِیْنَ یُتَوَفَّوْنَ مِنْکُمْ وَیَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا وَصِیَّةً لِاَزْوَاجِهِمْ﴾ ددے آیت حکم منسوخ دے او الفاظ ئے باقی دی۔

**حکمة** : چه حکم منسوخ وی او تلاوت ئے باقی وی پدے کښې (۱) یو حکمة دا دے چه د آیت د لوستلو دوه مقصده وی یو دا چه د هغے په حکم باندے عمل اُوکړے شی۔ او دویم دا چه دا د الله تعالیٰ کلام دے ددے په تلاوت کښې اجر او ثواب دے۔ نو که حکم منسوخ شی نو د تلاوت اجر باقی پاتے کیږی۔

(۲) دویم حکمة دا دے چه نسخ غالباً د تخفیف دپاره کیږی نو تلاوت ئے باقی پاتے کړے شو دے دپاره چه امت ته ددے نعمت تذکیر اُوکړے شی چه ستاسو نه مشقت پورته کړے شو نو د الله تعالیٰ شکر اُوکړئ۔

[الاتقان للسیوطی ۵۸/۲) (ومناهل العرفان ۲/٤٧٤]۔

۳- او چه تلاوت منسوخ وی او حکم ئے باقی وی د هغے مثال د عمر بن الخطاب ابی

بن کعب رضی الله عنهما نه نقل دي چه هغوي وئیلي دي : [كَانَ فِيمَا أُنْزِلَ مِنَ الْقُرْآنِ : اَلشَّيْخُ وَالشَّيْخَةُ إِذَا زَنَيَا فَارْجُمُوْهُمَا اَلْبَتَّةَ آه]۔ (په قرآن کریم کښې مخکښې دا نازل وو چه بوډا او بوډۍ (یعني واده شوے سړے او ښځه) چه کله زنا اُوکړي نو خامخائے رجم کړئ) نو ددے آیت وجود په قرآن کریم کښې نشته، تلاوت ئے منسوخ دے او حکم ئے اُوس هم باقي دے۔ (مګر بعض اهل علم فرمائي: چه دا د آیت الفاظ نهٔ دي بلکه ددے حیثیت د حدیث رسول دے او د حدیث الفاظ دي۔

(انظر علوم القرآن (۱/۴۴۷) للشیخ گوهر رحمان)

۲- دارنګه د ابي بن کعب نه په صحیح سند ثابت دي چه هغه به فرمایل : سورة الاحزاب د سورة البقرے برابر وو یا د هغے نه هم زیات وو) نو په دومره اندازه آیتونو کښې به ضرور داسے احکام اعتقادي هم وو چه هغے کښې به نسخ نشوه راتلے نو د هغے حکم اُوس هم باقي دے اګرکه تلاوت او الفاظ ئے منسوخ دي۔

۳- دارنګه د خمس رضعات والا روایت الفاظ منسوخ دي او حکم باقي دے۔

٤- دارنګه د ابو موسی الاشعري ﷺ نه ثابت دي چه صحابه کرامو به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې دومره اُوږد سورت لوستلو لکه د سورة براءت د اُوږدوالي برابر او هغه بیا تول هیر کړے شو صرف یو آیت د هغے نه باقي پاتے دے۔ او هغه دا دے : [لَوْ كَانَ لِابْنِ آدَمَ وَادِيَانِ مِنْ مَالٍ لَابْتَغٰى ثَالِثًا، وَلَا يَمْلَأُ جَوْفَ ابْنِ آدَمَ إِلَّا التُّرَابُ وَيَتُوْبُ اللّٰهُ عَلٰى مَنْ تَابَ]۔(که د بنیادم دپاره دوه کندے د مال شي نو ضرور به دریمه طلب کوي، او د بنیادم خیټه نهٔ ډکوي مګر خاورے او الله تعالیٰ مهرباني کوي په هغه چا چه توبه اُوباسي)۔

**حکمة** : چه حکم باقي وي او تلاوت ئے منسوخ وي نو دے کښې ډیر حکمتونه وي :

۱- پدے کښې ازمیښت او امتحان دے چه خلق د نصوصو څومره اتباع کوي۔ نو مؤمن کامل ایمان والا تسلیم شي او منافق جګړے او بحثونه شروع کړي۔ لکه عمر فاروق یوه ورځ په منبر باندے اُوفرمایل : رجم حق دے او مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې رجم باندے عمل کړیدے، روستو به داسے خلق راشي چه وائي به مونږ په قرآن کښې د رجم آیت نهٔ موندہ کوو۔ نو د رجم نه به انکار کوي نو د الله تعالیٰ د یوے فریضے نه به انکار شروع کړي نو ګمراه به شي۔

۲- دارنګه پدے کښې ددے امت د فضیلت بیان دے چه دا داسے کامل منونکے امت دے چه هغه احکام هم مني چه الفاظ ئے منسوخ شوي وي۔ او ددے حکمتونه د هر آیت سره

مناسب خپل ځائے کښې هم بيانيږي۔

## د نسخ نور اقسام :

النسخ ببدل وبغير بدل۔ نسخ په دوه قسمه ده۔ (۱) يو هغه نسخ ده چه يو حکم منسوخ شي د هغې په بدل کښې بل حکم نازل شي۔ نو ديته نسخ ببدل وائي۔ (۲) او کله چه يو حکم نازل شي او بيا هغه منسوخ شي او د هغې په بدل کښې حکم نازل نشي نو ديته نسخ بغير بدل وائي۔

د نسخ ببدل مثال : (د بعض علماؤ په نيز) الله تعالیٰ اوله کښې د کافرانو د قتال نه منع کړې وه او هغوی ته ئے د معافیٔ او درگزر حکم کړے وو په دے آيت : ﴿ فَاعۡفُوۡا وَاصۡفَحُوۡا حَتّٰى يَاۡتِىَ اللّٰهُ بِاَمۡرِهٖ﴾ [البقره : ۱۰۹]۔

بيا دا حکم په آيتونو د قتال منسوخ شو۔ ليکن مخکښې مونږ وئيلي وو چه معافي او درگزر کول د باب د اخلاقو نه دي او اخلاق نهٔ منسوخ کيږي۔ ليکن دا صرف د پوهے دپاره مثال دے۔

مثال د نسخ بغير د بدل نه : لکه الله تعالیٰ اوله کښې حکم کړے وو چه کله تاسو د نبي ﷺ سره جرگه او مناجات کوئ نو مخکښې به صدقه ورکوئ لکه فرمائي : ﴿ يَا اَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا اِذَا نَاجَيۡتُمُ الرَّسُوۡلَ فَقَدِّمُوۡا بَيۡنَ يَدَىۡ نَجۡوٰٮكُمۡ صَدَقَةً ﴾ ۔ بيا دا حکم منسوخ شو او ددے په بدل کښې ئے بل حکم نازل نکړو۔

نسخ بغير بدل د جمهورو علماؤ په مذهب جائز بلکه واقع ده۔ او معتزله ددے نه انکار کوی او دليل دا وائي چه د ((ما ننسخ من آية او ننسها نأت بخير منها او مثلها)) نه معلوميږي چه الله تعالیٰ د منسوخ حکم په ځائے ضرور بل حکم راوړي چه هغه به غوره وي د مخکني حکم نه يا به د هغې په شان وي۔

ليکن دا استدلال ئے فاسد دے۔ يو خو په مخکښې مثال سره۔ دويم دا چه الله تعالیٰ کله يو آيت منسوخ کړي بغير د بدل راوړلو نه نو دا بدل نهٔ راوړل په حق د بندگانو کښې خير او فائده مند وي د هغه حکم نه چه کوم مخکښې موجود وو۔ ځکه که هغه حکم اُوس پاتے شوے وے نو بندگانو دپاره به فائده مند نهٔ وے خو په منسوخ کيدو کښې ئے خيريت او فائده ده۔

**بيا نسخ د بدل** درے قسمه ده : ۱- کله مخکښې (منسوخ) حکم گران وي او دويم

حکم چه د هغې په بدل کښې نازل شوې وی هغه په بنده باندې آسان وی لکه په شپه د رمضان کښې خوراك، څکاك او جماع کول د خوب نه روستو دا گران حکم وو نو ددې اباحت نازل شو پدې آیت سره : ﴿ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ ﴾او دا اباحت بندگانو ته ډیر آسان دې۔

۲- کله روستو حکم مساوی او برابر وی د مخکنی حکم سره په آسانئ یا سختئ کښې لکه بیت المقدس ته متوجه کیدل منسوخ شو په کعبې ته متوجه کیدلو سره پدې آیت : ﴿ قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا﴾ [البقره : ٤٤]۔

۳- دریم : کله مخکنې حکم آسان وی او روستو حکم گران او درونډ وی۔ دا قسم د جمهورو علماؤ په نیز جائز دې لکه د مخکنو دوه قسمونو په شان۔ او ددې مثال دا دې چه الله تعالیٰ مخکښې شراب حلال کړی وو بیا ئې د هغې اباحت منسوخ کړو او هغه ئې حرام اُوگرځول۔ ۲- دارنگه مخکښې ئې د محاربین (جنگیانو) کافرانو سره صلح کول جائز کړی وو بیا ئې د هغوی سره قتال فرض کړو او صلح ئې منسوخ کړه۔ پدې آیت : ﴿ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ﴾ [البقره : ۱۲٦]۔

۳- دارنگه په ابتداء د اسلام کښې د زنا حد دا وو چه زنا کار سره سختی کول او هغه په کور کښې بندول وو بیا دا منسوخ شو په درو وهلو او یو کال د کلی نه په شړلو په باره دې واده کښې او په رجم سره په باره د واده کړی کښې۔

٤- دارنگه اوله کښې ئې د عاشورې روژه فرض کړې وه بیا ئې په رمضان سره هغه منسوخ کړه۔

بعض خلق پدې قسم نسخ باندې اعتراض کوی چه الله تعالیٰ چه احکام مقرروی نو ضرور به په هغې کښې یوه فائده او مصلحت راجع وی بندگانو ته او پدې کښې څه فائده ده چه بندگان د آسان حکم نه نقل کوی گران ته حال دا چه پدې کښې د هغوی بې رغبته کول دی په طاعت کښې او هغوی د واجباتو د عمل نه منع کول دی او دا د الله تعالیٰ نه صادریدل محال دی۔

ددې جواب دا دې چه دا اعتراض د بې وقوفو خلقو دې ځکه چه د الله تعالیٰ په شرع او نسخ کښې بې شماره فوائد دی که مونږ ته معلوم نشی نو په هغې باندې اعتراض کول د منکرینو کار دې۔ او مخکښې مونږ ددې حکمة ذکر کړیدې چه پدې کښې مقصود بندگان د آسان احکامو نه نقل کول دی گرانو احکامو ته په ترقی او دمه دمه سره او دا طریقه د

تشریع او تربیت ده۔ ځکه ایکدم ګران حکم نازلولو کښې دا امکان شته چه د بندګانو طبیعت د هغې نه نفرت اُوکړي او هغوی ددې عملي کولو ته تیار نشي۔ او الله تعالیٰ عالم دې په احوالو د خپلو بندګانو فلا اعتراض علیه والله تعالیٰ اعلم وعلمه اتم واحکم ۔ [راجع لمزید التفصیل مناهل العرفان]۔

**صور النسخ** : نسخ دپاره په شریعت کښې ډیر صورتونه دي :

(۱) نسخ القرآن بالقرآن : چه قرآنی آیت په قرآنی آیت منسوخ کړې شي او پدې باندې د ټولو مسلمانانو اتفاق دې۔ او ددې دپاره مخکښې درې اقسام بیان شو۔

(۲) [نَسْخُ الْقُرْآنِ بِالسُّنَّةِ] ۔ (د قرآن کریم نسخ په سنت سره هم جائز ده، برابره ده که سنت متواتره وي او که خبر واحد وي۔ ځکه راجح مذهب دا دې چه خبر واحد چه کله صحیح ثابت شي نو دا مفید د یقین دې۔ او خاصکر کله چه محتف بالقرائن هم وي۔ او ددې ډیر مثالونه دي۔

۱ -﴿ كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِنْ تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِيْنَ بِالْمَعْرُوْفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴾ [البقره : ۱۸۰]

دا آیت منسوخ دې په حدیث د رسول الله ﷺ باندې [لَاوَصِيَّةَ لِوَارِثٍ] ۔ (د وارث دپاره وصیت نشته)۔ او دا خبر واحد دې۔ اګرکه پدې کښې نور علماء وائی چه ددې حدیث ابتداء داسې ده :[إِنَّ اللّٰهَ أَعْطٰى كُلَّ ذِیْ حَقٍّ حَقَّهٗ، فَلَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ] ۔ نو ناسخ آیت المواریث دې نۀ دا حدیث۔ نور دلائل هم شته۔

(۳) [نَسْخُ السُّنَّةِ بِالْقُرْآنِ] ۔ (د سنت منسوخ کیدل په قرآن سره) دا هم جائز دي۔ او ددې مثالونه هم زیات دي ۱ - بیت المقدس ته مخ کول په مانځه کښې په سنت سره ثابت وو او بیا قرآن کریم منسوخ کړل په ﴿ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ﴾ سره۔

۲- د رمضان په شپه کښې خوراك څکاك او جماع حرامه وه بیا دا تحریم منسوخ شو پدې آیت : ﴿ فَالْآنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ﴾ (البقره : ۱۸۷) ۔ او دغه شان نور مثالونه واخله۔

(٤) [نَسْخُ السُّنَّةِ بِالسُّنَّةِ]۔ (یو سنت بل سنت لره منسوخ کولې شي او پدې کښې څلور صورتونه دي :

۱- سنت متواتره سنت متواتره منسوخ کول۔

۲- سنت آحادیه یعنی خبر واحد خبر واحد لره منسوخ کولې شي۔ ۳- سنت متواتره

سنت آحادیه منسوخ کولے شی۔

٤- سنت متواتره په خبر واحد سره منسوخ کول۔ اولنی دریے صورتونه اتفاقی دی او څلورم صورت د جمهورو په نیز جائز نهٔ دے او د اهل الظاهر په نیز جائز او واقع دے۔ او همدا قول راجح دے۔ دلیل ئے دا دے چه اهل قباء بیت المقدس ته په مانځه کښې متوجه وو نو دوی ته یو خبر ورکونکے راغلو چه قبله کعبے ته بدله شوه نو هغوی ورله خبره اُومنله او په مانځه کښې کعبے ته واوړیدل او دا خبره رسول الله ﷺ ته اُورسیدله او په دوی باندے ئے هیڅ رد اُونکړو نو دا دلیل دے چه خبر واحد خبر متواتر لره منسوخ کولے شی۔ او د جمهورو علماؤ دا دلیل وئیل چه خبر واحد ظنی دے او خبر متواتر قطعی او یقینی دے صحیح نهٔ دے ځکه چه زمونږ بحث په هغه خبر واحد کښې دے چه محتف بالقرائن وی او صحیح ثابت وی نو هغه د خبر واحد په شان دے په قطعیت او یقین کښې۔

لهذا ددے نه نهه صورتونه راووتل چه هغه ټول جائز دی۔

۱- نسخ د قرآن په قرآن سره۔

۲- نسخ د قرآن په سنت متواتره سره۔

۳- نسخ د قرآن په خبر واحد سره۔

٤- نسخ د سنت متواتره په قرآن سره۔

۵- نسخ د خبر واحد په قرآن سره۔

٦- نسخ د سنت متواتره په سنت متواتره سره۔

۷- نسخ د سنت متواتره په خبر واحد سره۔

۸- نسخ د خبر واحد په خبر واحد سره۔

۹- نسخ د خبر واحد په سنت متواتره سره۔

او دا مذهب د اهل ظواهرو هم دے۔

او حنابله وغیره وائی چه پدے کښې دوه صورتونه جائز نهٔ دی۔ چه هغه نسخ د کتاب الله په خبر واحد سره او نسخ د متواتر په خبر واحد سره ده۔ ځکه دوی دا قاعده وائی چه خبر واحد ظنی دے او قوی نهٔ دے او قرآن او خبر متواتر قطعی او یقینی دی نو دا قوی دی۔ او نسخ د قوی په ضعیف سره نشی کیدے لیکن مخکښې مونږ اُووئیل : چه خبر واحد چه صحیح السند وی هغه هم مفید د یقین دے په راجح قول د اقوالو د علماؤ کښې۔ اُوګوره الحق الصریح (۱/ کتاب الایمان اول حدیث)

## عدد الآيات المنسوخة من القرآن

## (قرآن کښې څومره آيتونه منسوخ دي)

دآيتونود منسوخ کولو متعلق دعلماء کرامو موقف مختلف دے۔

بعض علماؤ خو پدے باب کښې ډيره کوتاهي کړيده او بعضو ډيره غلو کړيده او بعض درميانه روان دي۔ نو کوتاهي کونکو خو قرآن کريم کښې هيڅ آيت منسوخ نۀ دے ګڼړلے او په ټولو آيتونو کښې ئے تاويل کړيدے په تخصيص وغيره سره۔ لکه دا کار د ابومسلم الاصفهاني معتزلي او د هغه د موافقينو دے۔ او غلو کونکو خو نسخ داسے عامه کړيده چه کوم شے نسخ نۀ دے هغے ته ئے هم د نسخ نوم ورکړيدے او پدے علماؤ کښې ابوجعفر النحاس پيش پيش دے چه هغه په (الناسخ والمنسوخ) کتاب کښې دا کار کړيدے۔ او دارنګه هبة الله بن سلامه او ابوعبد الله محمد بن حزم وغيره دي چه دوی د نسخ په باره کښې کتابونه ليکلي دي او ناسخ او منسوخ ئے په ادنیٰ اشتباهاتو او غلط فهمي سره زيات ذکر کړيدي۔ او سلفو چه د څه په باره کښې د نسخ لفظ ذکر کړيدے نو بس هغه ئے هم حقيقي منسوخ شمارلے دے حال دا چه د متقدمينو او د متأخرينو د اصطلاح ترمينځ فرق پيژندل يو لازمي او ضروري شے دے۔ لکه چه تشريح ئے مخکښې تيره شوه۔ او درميانه خلق هغه دي چه نسخ ئے په خپل معقولو حدودو کښې بنده کړيده، نۀ ئے مطلقاً نفي کړيده لکه د ابومسلم اصفهاني په شان او نۀ ئے مطلقاً ثابته کړيده لکه د غالينو په شان بلکه دا ئے د ضرورت حد پورے بنده کړيده او هغه دا چه د دليلونو ترمينځ حقيقي تعارض موجود وي او د دواړو جمع ممکن نۀ وي او دارنګه متقدم او متأخر معلوم وي۔

## د منسوخ آيتونو

## په باره کې د شاه انور شاه او حسين علي رائے

د شيخ انور شاه الکشميري او شيخ حسين علي رحمهما الله تعالیٰ د نسخ په باره کښې رائے دا ده چه په قرآن کريم کښې داسے منسوخ نشته چه هغه من کل الوجوه منسوخ وي، او په هيڅ وخت او حالت کښې په هغے باندے عمل نۀ وي بلکه ضرور به د هغے دپاره څه مَحْمَل وي۔ ليکن ددے رائے نه دا ښکاره کيږي چه دے علماؤ ګويا کښې نسخ في القرآن تقريباً ناياب شے ګڼړلو حال دا چه د متأخرينو په اصطلاح باندے تقريباً پنځه يا شپږ

آیتونه داسے شته چه هغه بالکل منسوخ دی۔ اګرکه د منسوخ آیتونو تعداد ډیرول څه خوبی نهٔ ده لیکن نسخ هم څه عیب نهٔ دے، ددے وجه نه دغه علماء بیا په دغه منسوخ آیتونو کښ داسے بعید تاویلات کوی چه ګویا کښ نسخ ئے یو عیب ګڼړلے دے حال دا چه په نسخ کښ خو د شریعت حکمتونه دی لکه د آیت ما ننسخ نه هم معلومیږی او مخکښ هم د هغے وضاحت اُوشو۔ او ان شاء الله تعالیٰ چه د هغه تاویلاتو ذکر به د هر آیت سره په خپل خپل مقام کښ په تفسیر ((حکمة القرآن)) کښ راشی۔

## د جلال الدین سیوطی او قاضی ابن العربی رائے

(۱) جلال الدین السیوطیؒ متوفی (۹۱۱ هجری) په ((الاتقان)) کښ او قاضی ابوبکر بن العربی رحمهما الله د منسوخ آیتونو تعداد (۲۲) ذکر کړیدے۔ چه په هغے کښ سیوطیؒ صرف دوه ساقط کړیدی او باقی ئے منسوخ ګرځولی دی۔

چه د هغے تفصیل دا دے :

۱- ﴿وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ﴾ [البقره:۱۱۵]۔ بعض علماء وائی چه دا منسوخ دے په آیت : ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ [البقره : ۱۴۴]۔ اګرکه چه راجح دا ده چه دا منسوخ نهٔ دے۔

۲- ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ اِنْ تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ ......الخ﴾ [البقره : ۱۸۰]۔ جمهور علماء وائی دا آیت منسوخ دے په آیة المواریث باندے۔ او بعض وائی منسوخ دے په حدیث : (لا وصية لوارث) او بعض وائی دا محکم دے۔ راجح قول د جمهورو دے او تفصیل ئے په تفسیر کښ ګوره۔

۳- ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ﴾ [البقره : ۱۸۴] چه پدے کښ طاقت لرونکی ته اختیار د روژے نیولو او روژه ماتولو ورکړی شویدے سره د فدیے ورکولو نه۔ دا منسوخ دے په دے قول : ﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ [البقره : ۱۸۵]۔

۴- ﴿يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ﴾ [البقره : ۱۸۳] چه پدے کښ تشبیه تقاضا کوی چه لکه څنګه په پخوانو باندے په شپه د روژو کښ خوراك او وطی بعد النوم حرام وه نو پدے امت به هم حرامه وی نو دا منسوخ شویدے آیت : ﴿اُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ﴾ [البقره : ۱۸۷]۔

لیکن صحیح دا ده چه تشبیه من کل الوجوه ضروری نهٔ وی۔ نو دلته تشبیه په نفس

فرضیت کښې ده نۀ په ټولو احکامو د روژو کښې لهذا ددے او د روستو آیت تعارض نشته۔ نو بس نسخ هم نشته ځکه نسخ فرع د تعارض بین النصین وی۔

۵- ﴿ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ ﴾ [البقره : ۲۱۷] ابن جریرؒ د عطاء بن میسرةؒ نه نقل کړیدی چه دا منسوخ دے پدے قول د الله تعالیٰ : ﴿ وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً ﴾ او حاصل د نسخ دا دے چه هرکله چه قتال د ټولو سره لازم شو نو دا مستلزم وی عموم د زمانے لره هم ځکه مشرکان به کله جنګ په شهر حرام کښې کوی۔ بعض وائی : دا منسوخ دے په ﴿ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ ﴾ [التوبه : ۵] ځکه چه پدے کښې عموم د مکان دے او دا مستلزم دے عموم د زمانے لره۔ فتدبر۔

۶- ﴿ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِأَزْوَاجِهِمْ مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ ﴾ [البقره : ۲٤۰] دا منسوخ دے په آیت : ﴿ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا ﴾ [البقره : ۲۳٤]۔

ځکه په اول آیت کښې عدت د متوفاة یو کال ذکر شو او روستو آیت کښې څلور میاشتے او لس ورځے دے۔

۷- ﴿ وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ ﴾ [البقره :۲۸٤]

دا منسوخ دے په دے قول د الله تعالیٰ : ﴿ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ [البقره : ۲۸۶] ځکه اول کښې دی چه په خطرات قلبیه ؤ سره حساب دے او په دویم کښې دی چه الله تعالیٰ بنده ته ددے تکلیف نۀ ورکوی۔

۸- ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ ﴾ [آل عمران : ۱۰۲]۔

سیوطیؒ فرمائی : په آل عمران کښې هیڅ آیت نشته چه په هغے کښې د نسخ دعویٰ صحیح وی صرف دا یو آیت دے چه بعضو وئیلی دی چه دا منسوخ دے پدے قول د الله تعالیٰ : ﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ ﴾ [التغابن : ۱۶]۔ مګر راجح دا ده چه د دواړو آیتونو ترمینځ هیڅ تعارض نشته نو بس نسخ هم پکښې نشته ځکه حق التقویٰ همدا ده چه د استطاعت مطابق وی۔

۹- ﴿ وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينُ فَارْزُقُوهُمْ ﴾ [النساء : ۸] بعض وائی دا په آیات المواریث سره منسوخ دے لیکن ظاهر دا دے چه دا محکم دے۔ ځکه چه دا حکم د ندب او استحباب دپاره دے نۀ د وجوب دپاره۔

۱۰- ﴿ وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ ﴾ [النساء : ۳۳] دا منسوخ دے په آیت : ﴿

وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِىْ كِتٰبِ اللّٰهِ﴾ [الانفال: ۷۵]۔ بعض وائی دا منسوخ نۀ دے۔ بلکه دا دلالت کوی په میراث د مَولَی الموالاة او دهغوی میراث اُوس هم باقی دے اګرکه په میراث کښ د هغوی مرتبه د ذی الارحامو نه روستو ده۔

۱۱- ﴿وَالّٰتِىْ يَاْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَاۤئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ﴾ [النساء: ۱۵] دا منسوخ دے په آیت: ﴿اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِىْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ﴾ [النور: ۲] لکه حدیث ئے بیان کریدے: [خُذُوْا عَنِّىْ خُذُوْا عَنِّىْ، قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا اَلْبِكْرُ بِالْبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيْبُ عَامٍ ......الخ]۔

۱۲- ﴿يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَاتُحِلُّوْا شَعَاۤئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ﴾ [المائده: ۲] ۔بعض وائی: ولا الشهر الحرام منسوخ دے په﴿ وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَاۤفَّةً﴾ [التوبه: ۳٦]۔ سره۔

۱۳- ﴿فَاِنْ جَاۤءُوْكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ اَوْ اَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾ [المائده: ٤۲]۔ دا منسوخ دے په ﴿وَاَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ﴾ [المائده: ٤۹] ۔ چه اول کښ وائی: فیصله د دوی ترمینځ اُوکړه یا ئے مۀ کوه او بیا وائی په ما انزل الله سره ورله فیصله اُوکړه۔ لیکن راجح دا ده چه نسخ نشته بلکه دویم آیت متمم د اول آیت دے۔ یعنی اول کښ ئے اُوفرمایل: ستا اختیار دے په فیصله کولو او نۀ کولو کښ او که فیصله کوے نو بیا به ئے په ما انزل الله سره کوے۔

۱٤- ﴿يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِيْنَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ اَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ﴾ [المائده: ۱۰٦]۔

نو (او آخران من غیرکم) منسوخ دے په ﴿وَاَشْهِدُوْا ذَوَىْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ﴾ [الطلاق: ۲]۔ بعض وائی: نسخ نشته ځکه اول آیت خاص دے په هغه صورت پورے چه دوه مسافرو کښ په یو باندے مرګ رازی او اراده د وصیت کوی۔ او دویم آیت په عام حالت (د سفر نه علاوه) باندے حمل دے۔ نو تعارض نشته۔

۱۵- ﴿اِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ عِشْرُوْنَ صَابِرُوْنَ يَغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ، وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ يَّغْلِبُوْا اَلْفًا﴾ [الانفال: ٦۵]۔ دا منسوخ دے په روستو آیت: ﴿اَلْآنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا﴾ [الانفال: ٦٦] ځکه مخکښ آیت کښ دی چه یو مسلمان به د لسو کافرو مقابله کوی او روستو کښ دی چه یو په مقابل د دوه کسانو کښ دے۔

۱٦- ﴿اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا﴾ [التوبه: ٤۱] ۔دا منسوخ دے په آیتونو د عذر باندے چه هغه دا دے: ﴿لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاۤءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضٰى﴾ [التوبة: ۹۱]۔ او دارنګه په ﴿وَمَا كَانَ

الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَافَّةً﴾ [التوبة : ۱۲۲]۔

بعض وائی : دا حمل دی په تخصیص۔ او مطلب دا دے چه سپك او درانه اُوځئ خو هغه څوك چه قادر وی او عذرئے نهٔ وی۔ او دویم آیت د تعلیم او تفقه دپاره وتلو په باره کښ دے نهٔ د جنګ په باره کښ۔

۱۷ – ﴿اَلزَّانِیْ لَایَنْکِحُ اِلَّا زَانِیَةً اَوْ مُشْرِکَةً﴾ [النور : ۳] دا منسوخ دے پدے قول : ﴿وَاَنْکِحُوا الْاَیَامٰی مِنْکُمْ وَالصَّالِحِیْنَ مِنْ عِبَادِکُمْ وَاِمَائِکُمْ﴾ [النور:۳۲] ځکه دغه آیت خبر دے په معنی د نهی دے۔ ځکه په بل قراءت کښ (لاینکح) په جزم سره راغلے دے۔ (لیکن راجح دا ده چه دا منسوخ نهٔ دے)۔

۱۸ – ﴿یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا لِیَسْتَاْذِنْکُمُ الَّذِیْنَ مَلَکَتْ اَیْمَانُکُمْ﴾ [النور: ۵۸]۔ بعض وائی دا آیت منسوخ دے۔ لیکن په نسخ باندے هیڅ دلیل نشته۔

۱۹ – ﴿لَایَحِلُّ لَکَ النِّسَاءُ مِنْ بَعْدُ وَلَااَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ اَزْوَاجٍ﴾ [الاحزاب :۵۲] دا منسوخ دے پدے قول د الله تعالیٰ: ﴿یَا اَیُّهَا النَّبِیُّ اِنَّا اَحْلَلْنَا لَکَ اَزْوَاجَکَ الّٰتِیْ آتَیْتَ اُجُوْرَهُنَّ﴾ [الاحزاب : ۵۰]

او دا آیت په ترتیب نزولی کښ مقدم دے۔ نو اول کښ د نبی ﷺ دپاره نورے بیبیانے په نکاح کول حرام وو او په آخر د عمر کښ ورله جائز شوے او دا روایت شویدی د علی کرمه الله وجهه او ابن عباس او ام سلمه او عائشه صدیقه رضی الله عنهم نه۔

۲۰ – ﴿یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا اِذَا نَاجَیْتُمُ الرَّسُوْلَ فَقَدِّمُوْا بَیْنَ یَدَیْ نَجْوَاکُمْ صَدَقَةً﴾ [المجادلة : ۱۲]۔ دا منسوخ دے په روستو قول د الله تعالیٰ : ﴿ءَاَشْفَقْتُمْ اَنْ تُقَدِّمُوْا بَیْنَ یَدَیْ نَجْوَاکُمْ﴾ [المجادلة : ۱۳]۔

۲۱ – ﴿وَاِنْ فَاتَکُمْ شَیْءٌ مِنْ اَزْوَاجِکُمْ اِلَی الْکُفَّارِ﴾ [الممتحنة : ۱۱]

بعض وائی : چه دا په آیت د غنیمت سره منسوخ دے یعنی :﴿وَاعْلَمُوْا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَیْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ﴾ [الانفال : ٤۱]۔

۲۲ – ﴿یَا اَیُّهَا الْمُزَّمِّلُ، قُمِ اللَّیْلَ﴾ [المزمل : ۱-٤] دا منسوخ دے پدے قول د الله تعالیٰ چه په آخر د سورة کښ راغلے دے۔ ﴿اِنَّ رَبَّکَ یَعْلَمُ اَنَّکَ تَقُوْمُ اَدْنٰی مِنْ ثُلُثَیِ اللَّیْلِ﴾ [المزمل : ۲۰]۔ اول د آیت کښ د قیام اللیل وجوب ذکر دے او په آخر کښ رخصت دے۔

(۲) علامه زرقانیؒ پدے (۲۲) آیتونو بحث کریدے او بیائے وئیلی دی چه د متاخرینو د اصطلاح مطابق منسوخ آیتونو نه صرف اته (۸) دی چه د هغے تفصیل دا دے۔

۱- كتب عليكم اذا حضر احدكم الموت۔
۲- وعلى الذين يطيقونه۔
۳- والذين يتوفون منكم ويذرون ازواجاً وصية الخ۔
٤- واللاتى يأتين الفاحشة من نساء كم فاستشهدوا الخ۔
٥- ان يكن منكم عشرون صابرون يغلبوا مأتين۔
٦- الزانى لا ينكح الا زانية او مشركة۔ ددے منسوخ كيدو ته زرقانیؒ او سيوطیؒ ترجيح وركړيده ليكن اكثرو مفسرينو دا آيت منسوخ نۀ دے ګرځولے۔ كما تقدم قريباً۔
۷- يا ايها الذين آمنوا اذا ناجيتم الرسول فقدموا بين يدى نجواكم صدقة الخ۔
۸- يا ايها المزمل قم الليل۔

(۳) د جناب شاه ولى الله الدهلوى رحمه الله په نيز باندے منسوخ آيتونه پنځه دى. چه هغه د زرقانیؒ د ذكر كرده دويم او څلورم او شپږم آيتونونه علاوه دى۔ او باقى آيتونو كښ داسے تاويلات كوى چه هغه يا په تخصيص باندے حمل كوى او يا د هغے دپاره بل صحيح مَحْمَلُ ذكر كوى۔

(٤) شيخ ګوهر رحمان المردانى رحمه الله په علوم القرآن كښ ذكر كړيدى چه زما د تحقيق مطابق منسوخ آيتونه شپږ دى۔

۱- ﴿ وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ ﴾ [البقره : ۱۸٤]۔
۲- ﴿ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ ﴾ [البقره: ۲٤۰]۔
۳- ﴿ وَالّٰتِىْ يَأْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْكُمْ ﴾ [النساء: ۱٥]۔
٤- ﴿ اِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ عِشْرُوْنَ ﴾ [الانفال : ٦٥]۔
٥- ﴿ يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ ﴾ [المجادلة :۱۲]۔
٦- ﴿ يَا اَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ قُمِ الَّيْلَ ﴾ [المزمل ۱تا٤]۔

او بيا ئے ددے ډير ښكلے تحقيق ذكر كړيدے او دا ئے وئيلى دى چه زرقانیؒ د سورة البقرے آيت الوصية (۱۸۰) په منسوخ آيتونو كښ شامل كړيدے ليكن زما په نيز پدے باندے د نسخ تعريف نۀ صادقيږى ځكه چه د غير وارث اقاربو دپاره د وصيت حكم موجود دے، منسوخ نۀ دے، پدے وجه دا تخصيص دے او نسخ نۀ ده۔ دغه شان د سورة النور آيت (۳) (نكاح د زانيه) هم منسوخ نۀ دے۔ [علوم القرآن ۱/٤۸٦]۔ او همدا راجح معلوميږى۔

د ډاکټر مصطفی زید په نیز د منسوخ آیتونو تعداد (۵) دے او د ناسخ آیتونو تعداد (۹) دے۔

د قاهرے یونیورسټی او بیروت یونیورسټی دواړو کښې د شریعت استاذ ډاکټر مصطفی زید یو کتاب لیکلے دے د [النسخ فی القرآن الکریم] په موضوع باندے دوه جلدونه چه په هغے کښې ئے د نسخ متعلق ټول ابحاث په ډیر ښائسته انداز کښې حل کړیدی او د کتاب په دریم باب کښې ئے په مختلف سورتونو کښې د مختلف آیتونو په باره کښې چه په کتابونو کښې د نسخ کومے دعوے خلقو کړیدی نو د هغے علمی جائزه ئے کړیده او هغه دعوے ئے د متأخرینو د بیان شوی تعریف او شرائطو مطابق تللی دی او نتیجه ئے دا راویستلے ده چه ټول (۲۸۳) آیتونو په باره کښې د نسخ دعوے شویدی چه په هغے باندے د نسخ تعریف او شرائط نهٔ برابریږی بلکه هغه محکم دی او خلقو پکښې د نسخ دعوه کړیده۔ چه د هغے مختصر تفصیل دا دے چه (۷۵) آیتونه هغه دی چه د اخبارو سره تعلق لری او په اخبارو کښې نسخ نشی واقع کیدے۔ (۲۸) آیتونه داسے دی چه د وعید سره تعلق لری او په وعید کښې هم نسخ نشی واقع کیدے۔

(۶۳) آیتونه هغه دی چه هغه په آیات السیف یعنی د قتال په آیتونو منسوخ ګڼړلے شویدی حال دا چه دا ټول محکم دی ځکه د قتال د آیتونو سره ددے په حقیقی معنو کښې هیڅ تعارض نشته او د نسخ دپاره خو تعارض شرط دے۔

(۴۸) آیتونه هغه دی چه په هغے کښې تخصیص شویدے یا په هغے کښې تقیید شویدے یا د هغے تفسیر او تشریح شویده او د هغے حکم من کل الوجوه منسوخ نهٔ دے لیکن په هغے باندے ئے هم د منسوخ اطلاق کړیدے۔

(۶۳) آیتونه هغه دی چه د هغے د خپلو نواسخو سره هیڅ تعارض نشته۔

او (۶) آیتونه هغه دی چه هغه د اصولیین او د ناسخ او منسوخ په باره کښې د مصنفینو ترمینځ مشهور دی۔ چه په هغے کښې ډاکټر صاحب د پنځه آیتونو د منسوخ کیدو دعوه تسلیم کړیده او د هغے ناسخ آیتونه په قرآن کریم کښې موجود دی یعنی هغه د نسخ القرآن بالقرآن د قسم نه دی۔ او څلور آیتونه هغه دی چه د هغے په ذریعه هغه احکام منسوخ شویدی چه په قرآن سره ثابت نهٔ وو بلکه په سنت رسول (ﷺ) سره ثابت شوی وو یعنی دا د نسخ السنة بالقرآن په قسم کښې شامل دی لیکن ددے څلورو آیتونو ناسخ کیدل د سنت نه هم ثابت دی پدے وجه پدے سره منسوخ شوی احکام په نسخ السنة

بالسنة کښې هم شامل دي. چه هغه هم بالاجماع جائز ده. نو ددې نه معلومه شوه چه د ډاکټر مصطفی زید په نيز په قرآن کريم کښې ناسخ آيتونه (۹) دي او منسوخ آيتونه صرف پنځه (۵) دي چه هغه دا دي :

(۱) ﴿ يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ قُمِ اللَّيْلَ ﴾ [المزمل (۴/۱] ناسخ ئې ﴿ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ ﴾ [المزمل : ۲۰] دې.

(۲) ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُولَ ﴾ [المجادلة : ۱۲] . ناسخ ئې ﴿ أَأَشْفَقْتُمْ أَنْ تُقَدِّمُوا ﴾ [المجادلة : ۳] دې.

(۳) ﴿ إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ ﴾ [الانفال: ٦٥] ناسخ ئې ﴿ الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنْكُمْ ﴾ [الانفال : ٦٦] دې.

(٤) ﴿ وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ ﴾ [النساء : ١٥] ناسخ ئې ﴿ الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا ﴾ النور : ٣].

(۵) ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَىٰ ﴾ [النساء : ٤٣] ناسخ ئې ﴿ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ ﴾ [المائدة : ۹۰] دې.

ليکن دا آخرې آيت په منسوخ کښې شمارل مناسب نهٔ دي ځکه چه دا د نسخ فى الاحکام صورت نهٔ دې بلکه دې ته تدريج فى الاحکام وئيلې شي. يعنې په اول وقت کښې شراب کلي طور سره حرام شوي نهٔ وو بلکه صرف د مانځه په وخت کښې ئې استعمالول حرام وو. روستو ابدې طور سره د هغې حرمت نازل شو.

او دارنګه د سورة البقرې آيت د فدية الصيام (آيت : ۱۸٤) او د سورة البقرې آيت د وصيت للازواج (آيت : ۲٤۰) په منسوخ آيتونو کښې نهٔ شمارل د جمهورو د رائې مخالف دي او حال دا چه پدې باره کښې د جمهورو رائې قوي ده. والله تعالىٰ اعلم وعلمه اتم.

ددې تحقيق نه مونږ ته دا واضح شوه چه غوره رائې د محققين او درميانه تلونکو ده چه نهٔ د نسخ نه انکار کوي او نهٔ مطلقاً هر قيد او تخصيص ته نسخ وائي.

او کوم آيتونه چه په سنت سره ثابت شوي احکام منسوخ کوي هغه دا دي :

۱- بيت المقدس ته توجه په مانځه کښې په سنت سره ثابت وو او په آيت د سورة البقره ﴿ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ﴾ سره منسوخ شويدې او دا د نسخ السنة بالقرآن ،ولنې مثال دې.

۲- په ابتداء کښې په مانځه کښې خبرې کول جائز وو او د هغې جواز په سنت سره ثابت شوې وو او بيا په (قوموا لله قانتين) سره منسوخ شو.

۳- په ابتداء د اسلام کښې د عاشورې روژې نیول فرض وو او د هغې فرضیت په سنت رسول سره ثابت شوې وو چه بیا د رمضان د روژو په فرضیت سره منسوخ شو۔ البته د عاشورې روژې استحباب اُوس هم باقي دې نو دا د نسخ السنة بالقرآن دریم مثال شو۔

٤- په ابتداء د رمضان کښې د شپې د خوب نه پس خوراك څکاك او جماع کول منع وو او دا ممانعت په سنت تقریری سره ثابت شوې وو چه بیا په ﴿ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ ﴾ آیت سره منسوخ شو۔ دا څلورم مثال شو۔

انظر الدین الخالص (۹) مفصلًا لاثبات نسخ الشرائع بالادلة النقلیة والعقلیة)۔

00000000

# دویم باب : علوم القرآن

دے ځائے نه روستو د قرآن متعلق خارجي بحثونه د مخکښ سره ترتیب وارذکر کیږي او دیته علوم القرآن وئیلے شي او ډیر مفید دي۔

## ۱۱- الامر الحادی عشر : نزول القرآن

[یولسم بحث : د قرآن نازلیدل]

د قرآن کریم په باره کښ په قرآن کښ نزول، انزال، تنزیل، تنزل استعمالیږي چه ددے معنے پیژندل ضروري دي۔ نو نزول په لغت د عربو کښ د ثلاثي مجردو نه مصدر دے۔ نَزَلَ يَنْزِلُ نُزُوْلًا۔ ددے معنیٰ ده۔ د بره ځائے نه راکوزیدل، یا په یو ځائے کښ حصاریدل او قیام کول۔ لکه نازل او نزیل میلمه ته هم وئیلے شي۔ او انزال د باب افعال مصدر دے۔ اَنْزَلَ يُنْزِلُ اِنْزَالًا، په معنیٰ د راکوزولو او اُوسولو او حصارلو او پاتے کولو سره استعمال دے لکه د دواړو مثال پدے آیت کښ راغلے دے ﴿ وَبِالْحَقِّ اَنْزَلْنَاهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ ﴾ ۔(یعنی دا قرآن مونږ په حق سره د بره نه راکوز کړیدے او په حق سره راکوز شویدے)۔ او انزال په معنیٰ د اُوسولو سره پدے آیت کښ راغلے دے : ﴿ رَبِّ اَنْزِلْنِيْ مُنْزَلًا مُّبَارَكًا ﴾ [المومنون ۲۹] ۔ (یعنی اے الله ! ما اُووسوے په برکت والا ځائے د اُوسیدو کښ)۔

او د انزال لفظ خو قرآن کریم کښ ډیر زیات استعمال دے لکه

﴿ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً مُّبَارَكًا ﴾ (المومنون) ﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتَابَ ﴾ [الکهف ۱] ﴿ اَللّٰهُ الَّذِيْ اَنْزَلَ الْكِتَابَ ﴾ [الشوریٰ ۱۷] ﴿ وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيْزَانَ ﴾ [الحدید/ ۲۵]۔

جوهري په صحاح کښ او ابن منظور په لسان العرب کښ او فیروز آبادي په القاموس کښ لیکلي دي چه د تَنَزَّلَ، اَنْزَلَ، نَزَّلَ، او اِسْتَنْزَلَ څلور واړو بنیادي معنی یوه ده البته د تنزیل لفظ په ترتیب سره د یو بل نه پس راکوزیدو دپاره استعمالیږي او د تنزل لفظ وقفے وقفے سره راکوزیدو دپاره استعمالیږي لیکن د اِنزال لفظ عام دے په یو ځل سره د نزول

دپاره هم راځي او د تدریجي نزول دپاره هم استعمالیږي.

امام راغبؒ اصفهانيؒ متوفی (۵۰۲ هـ) په مفردات القرآن [۴۱۹] کښې لیکي : : چه د انزال او د تنزیل ترمینځ د عموم اوخصوص فرق دے چه لفظ د تنزیل د تدریجي نزول دپاره راځي لیکن د انزال لفظ عام دے، دفعةً (په یو ایر، په یو ځل) نزول دپاره هم راځي او تدریجي نزول دپاره هم استعمالیږي.

د اولے معنیٰ مثال : ﴿اِنَّا مُنۡزِلُوۡنَ عَلٰۤی اَهۡلِ هٰذِهِ الۡقَرۡیَةِ رِجۡزًا مِّنَ السَّمَآءِ﴾ [عنکبوت : ۳۴] . (مونږ نازلونکي یو پدے کلي والو بد عذاب د آسمان د طرف نه).

او د دویمے معنیٰ مثال : ﴿اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡۤ اَنۡزَلَ عَلٰی عَبۡدِهِ الۡکِتٰبَ﴾ [الکهف ۱] . (ټول د کمال صفتونه خاص هغه الله لره دی چه په خپل بند باندے ئے نازل کړو دا کتاب).

دلته دفعةً واحدةً په یو ځل باندے نازلولو معنیٰ نهٔ جوړیږي ځکه چه اګرکه لوح محفوظ او بیت العزة ته پوره قرآن کریم په یو ځل نازل شوے وو لیکن د رسول الله ﷺ په زړه باندے د هغے نزول په (۲۳) کاله کښې شوے وو. دلته د قرآن کریم د نزول نه مراد ابلاغ او اعلام دے یعنی رسول او خودل او خبر ورکول پدے کتاب ځکه چه قرآن په مکتوب شکل کښې نهٔ وو نازل شوے. [مناهل العرفان بتصرف].

## تنزلات القرآن

### (د قرآن کریم د نازلیدو اقسام) :

الله تعالیٰ دے قرآن له دا شرافت ورکړیدے چه دا ئے درے ځل نازل کړیدے.

۱- **لوح محفوظ ته نازلیدل :** قرآن کریم د الله تعالیٰ په ازلي علم کښې هم موجود وو لیکن بیا ئے دا په لوح محفوظ کښې هم اُولیکلو. (لوح محفوظ هغه کتاب او د حکومتِ الهیه مرکزي رجسټر دے چه د الله تعالیٰ سره موجود دے او الله تعالیٰ په کښې خپل علم لیکلے دے. او د ټولو کائناتو هر شے په هغے کښې لیکلے شویدے، که هغه موجود شوے وی او که لا نهٔ وی موجود تردے چه د انسانانو دپاره احکام الهیه هم په هغے کښې لیکلے شویدی او دے ته ام الکتاب هم وائي.

او ددے لیکلو طریقه او وقت صرف الله تعالیٰ ته معلوم دے. او دا په یو ځل نازل شوے وو. لکه ددے په باره کښې الله تعالیٰ فرمایلي دی : ﴿بَلۡ هُوَ قُرۡاٰنٌ مَّجِیۡدٌ فِیۡ لَوۡحٍ مَّحۡفُوۡظٍ﴾ [البروج ۲۲].

(بلکه دا شرافت والا قرآن دے او په لوح محفوظ کښې ليکلے شويدے)

**۲- د قرآن کريم بيت العزة ته نازليدل :**

دويم ځل قرآن کريم بيت العزة ته نازل شويدے چه دا په دے نزدے آسمان کښې د عزت يو کور دے۔ لکه په دے نزول باندے د قرآن کريم درے آيتونه دلالت کوی او هغه دا دی :

﴿ اِنَّـا اَنْزَلْنَاهُ فِیْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾ [القدر ۱] ﴿ اِنَّا اَنْزَلْنَاهُ فِیْ لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ﴾ [الدخان :۳] ﴿ شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِیْ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْآنُ﴾ [البقره : ۱۸۵]۔

دے درے واړو آيتونو کښې دا خبره ده چه قرآن کريم په يوه شپه کښې نازل دے او هغے ته د قدر او عزت شپه وائی او همدارنګه هغه مبارکه شپه هم ده او هغه د رمضان د شپو نه يوه شپه ده۔

او دا خبره خو معلومه ده چه قرآن کريم په نبی ﷺ باندے په يو ځل تول نهٔ دے نازل شوے بلکه په درويشت کالو کښې جدا جدا نازل شويدے۔

نو معلومه شوه چه ددے نزول نه مراد بيت العزت ته نازليدل دی۔ او پدے باندے بل دليل اثر د ابن عباسؓ دے چه د هغه نه په څلورو طريقو سره نقل دے يو د هغے نه دا دے : چه عطيه بن الاسود د ابن عباسؓ نه هم همدغه تپوس کړے وو چه د هغے په جواب کښې ابن عباسؓ اُوفرمايل : [ اُنْزِلَ الْقُرْآنُ جُمْلَةً وَاحِدَةً اِلَی السَّمَاءِ الدُّنْيَا لَيْلَةَ الْقَدْرِ ثُمَّ اُنْزِلَ بَعْدَ ذٰلِكَ فِیْ عِشْرِيْنَ سَنَةً]۔

(قرآن کريم په يو ځل آسمان د دنيا ته په شپه د ليلة القدر نازل شويدے بيا د حالاتو مطابق په شل کاله کښې نازل شويدے)۔

په يو بل روايت کښې داسے الفاظ دی : [اُنْزِلَ الْقُرْآنُ جُمْلَةً وَاحِدَةً حَتّٰی وُضِعَ فِیْ بَيْتِ الْعِزَّةِ فِی السَّمَاءِ الدُّنْيَا]۔ (قرآن کريم پوره اول آسمان ته نازل شو او په بيت العزة کښې کيخودے شو)۔

دا روايتونه د ابن عباس نه په مختلف سندونو سره ابن ابی شيبه (۱۰/۵۳۳) او مسند البزار بحواله کشف الاستار (۳/۸۲) رقم (۲۲۹) السنن الکبری للنسائی (۶/۵۱۹) طبع دار الکتب العلميه بيرت۔ المستدرك للحاکم (۲/۲۲۲) او حاکم ورته صحيح وئيلی دی او ذهبی ئے موافقة کړيدے پدے روايتونو کښې بعض طرق ضعيف دی ليکن حافظ نور الدين الهيثمیؒ په مجمع الزوائد (۷/۱۴۳) کښې ليکی : [رجال البزار رجال الصحيح]۔ (د بزار د حديث راويان د صحيح حديث راويان دی)۔ او علامه سيوطیؒ دے تولو روايتونو ته

صحیح وئیلی دی۔[الاتقان ۱/ ۱۳۰]۔

نو دا روایت اگرکه موقوف دے یعنی د ابن عباسؓ وینا ده لیکن دا په حکم د مرفوع حدیث کښې دے ځکه دا مسئله کول د قیاس او اجتهاد سره تعلق نۀ لري او دا قول د اهل کتابونو نه هم نۀ دے اخستے شوے ځکه چه هغوی خو قرآن کریم مني نۀ، او دا د اصول الحدیث منلے شوے قاعده ده چه کوم صحابي یو داسے حدیث بیان کړي چه هغے کښې رائے او اجتهاد نۀ چلیږي (مُدْرَكْ بالقیاس) نۀ وي، او دغه راوي د بني اسرائیلو نه په نقل کولو بانديے مشهور هم نۀ وي نو دغه حدیث به په حکم د مرفوع حدیث کښې وي او دا به د رسول الله ﷺ وینا ګڼړلے شي۔ لهذا پدے حدیث د ابن عباسؓ به دلیل نیولے شي۔ ددے وجه نه امام قرطبيؒ وئیلي دي :

[وَلَا خِلَافَ اَنَّ الْقُرْآنَ اُنْزِلَ مِنَ اللَّوْحِ الْمَحْفُوْظِ لَيْلَةَ الْقَدْرِ جُمْلَةً وَاحِدَةً فَوُضِعَ فِيْ بَيْتِ الْعِزَّةِ فِيْ سَمَاءِ الدُّنْيَا]

[الجامع لاحکام القرآن للقرطبی ۲/ ۱۹۹]۔

(پدے کښې هیڅ اختلاف نشته چه قرآن د لوح محفوظ نه د لیلة القدر په شپه په یو ځل نازل شوے وو او په آسمان د دنیا کښې په بیت العزت کښې کیخودے شوے وو)

بلکه دلته پنځه روایات او آثار نور شته لکه فتاوی الدین الخالص [۸/ ۴۱۹] واثر القرآت في التفسیر والاحکام لبازمول [۱/ ۳۹] کښې ئے اُوګورئ۔

پدے کښې بعض علماء داسے قول کوي چه قرآن کریم په شل (۲۰) شپو د لیلة القدر کښې آسمان د دنیا ته نازل شویدے یا په درویشت (۲۳) یا په پنځه ویشت شپو کښې۔

او د یو کال په اندازه قرآن به په یوه شپه کښې نازل شو۔ نو ټول په شل یا درویشت یا پنځه ویشتو شپو کښې پوره شو۔ او بیا به په ټول کال کښې لږ لږ د حالاتو مطابق نازلیدو۔

۳- بعض وائي : ابتداء د نزول ئے په لیلة القدر کښې شویده بیا په مختلف حالتو د زمانه کښې په نبي ﷺ باندے لږ لږ نازل شویدے۔ او دا قول د امام عامر الشعبيؒ دے۔ ګویا کښې دے قول والا بیت العزة ته د لیلة القدر په شپه په یو ځل نازلیدل نۀ دي منلي۔

۴- بل قول دا دے چه په یو ځل د لوح محفوظ نه نازل شویدے او بیا حفظه ملائکو جبریل علیه السلام ته لږ لږ په شلو شپو کښې ورکړیدے او جبریل علیه السلام نبي ﷺ باندے لږ لږ په شل کاله کښې نازل کړیدے۔ لیکن دا روستني درے واړه اقوال د تحقیق نه بعید دي او هیڅ دلیل نقلي پرے نشته۔ اول قول صحیح دے۔

[مناهل العرفان ۳۹/۱] [ومباحث فی علوم القرآن ۱۰۲/۱] لِمَناع القطان۔

## بیت العزة ته د قرآن د نازلیدو حکمت

الله تعالیٰ بیت العزة ته ولې په یو ځل قرآن کریم نازلولو او بیا ئې زمکې ته لږ لږ نازلول شروع کړو؟ ددې حکمتونه علماء کرامو په خپلو الفاظو کښې داسې ذکر کړیدی:

۱- علامه علم الدین سخاویؒ متوفی (۶۴۳ ھ) داسې فرمائی:

[قُلْتُ فِیْ ذٰلِكَ تَكْرِیْمُ بَنِیْ آدَمَ وَتَعْظِیْمُ شَأْنِهِمْ عِنْدَ الْمَلَائِكَةِ وَتَعْرِیْفُهُمْ عِنَایَةَ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ بِهِمْ وَرَحْمَتَهٗ لَهُمْ]

[جمال القراء و کمال الاقراء طبع دار المامون بیروت للسخاوی (۶۷/۱)]۔

(پدې نازلولو کښې حکمة دا دې چه ملائکو ته د آدم علیه السلام د اولادو کرامت او رفعت شان ظاهر شی او هغوی ته دا اُوخودلې شی چه الله تعالیٰ په هغوی باندې خپل عنایت او رحمت لیږونکې دې)۔

او علامه ابو شامةؒ متوفی (۶۶۵ ھ) داسې حکمت ذکر کوی:

[اَلسِّرُّ فِیْ اِنْزَالِهٖ جُمْلَةً اِلَی السَّمَاءِ تَفْخِیْمُ اَمْرِهٖ وَاَمْرِ مَنْ نَزَلَ عَلَیْهِ وَذٰلِكَ بِاِعْلَامِ سُكَّانِ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ اَنَّ هٰذَا آخِرُ الْكُتُبِ الْمُنَزَّلَةِ عَلٰی خَاتَمِ الرُّسُلِ لِاَشْرَفِ الْاُمَمِ وَقَدْ قَرَّبْنَاهُ اِلَیْهِمْ لِنُنَزِّلَهٗ عَلَیْهِمْ]

[المرشد الوجیز لابی شامة بحواله الاتقان للسیوطی ۱۳۲/۱]۔

(په یو ځل اول آسمان ته د قرآن د نازلولو حکمت او راز دا دې چه د قرآن عظمت او رفعت او د هغه رسول رفعت او عظمت ښکاره شی په کوم باندې چه دا قرآن نازلیږی او دا په دې طریقه چه اُووه واړه آسمانونو والا ملائکو ته دا خبر ورکړې شو چه دا د الله تعالیٰ آخری کتاب دې چه په آخری رسول باندې د بهترین او شریف امت دپاره نازلیدونکې دې او مونږ دا زمکې ته نزدې کړیدې دې دپاره چه د وخت په راتلو سره دا نازل کړو)۔

د علامه سخاویؒ او د ابو شامةؒ د دواړو الفاظو خلاصه دا ده چه کله قرآن په اُووه آسمانونو باندې راتیر شو او آسمان د دنیا ته راورسیدو نو پدې سره د ټولو آسمانونو ملائکو کښې ددې اشاعت اُوشو چه یو عظیم الشان کتاب زمکې والو ته نازلیدونکې دې او د رسول الله ﷺ په زړه باندې د نازلیدو نه مخکښې په آسمانونو کښې ددې ذکرِ خیر هم اُوشو او د خاتم الرسل او خیر الامم ذکرِ خیر هم اُوشو نو زمکې ته د کوزیدو نه مخکښې مخکښې ملأ اعلیٰ او عالَم اعلیٰ کښې ددې د خیر تذکرې اُوشوې او ښائسته شهرت او

اشاعت سره د قرآن کریم رفعت او فخامت هم ظاهر شو نو دا قرآن چه په چا نازلیدونو د هغه رسول د رسالت شان هم اُوچت شو او کوم امت دپاره چه دا کتاب نازلیدونکے وو نو د هغوی شرافت او کرامت هم معلوم شو نو ددے حکمتونو د وجه نه الله تعالیٰ بیت العزة ته نازل کړو۔

**۲- علامه محمد عبد العظیم الزرقانیؒ داسے حکمت بیانوی :**

[اَقُوْلُ وَفِیْ تَعَدُّدِ النُّزُوْلِ وَاَمَاکِنِهٖ، مَرَّةً فِی اللَّوْحِ، وَاُخْرٰی فِیْ بَیْتِ الْعِزَّةِ، وَثَالِثَةً عَلٰی قَلْبِ النَّبِیِّ ﷺ فِیْ ذٰلِكَ التَّعَدُّدِ مُبَالَغَةٌ فِیْ نَفْیِ الشَّكِّ عَنِ الْقُرْاٰنِ وَزِیَادَةٌ لِلْاِیْمَانِ بِهٖ وَبَاعِثٌ عَلَی الثِّقَةِ فِیْهِ، لِاَنَّ الْکَلَامَ اِذَا سُجِّلَ فِیْ سِجِلَّاتٍ مُتَعَدِّدَةٍ، وَصَحَّتْ لَهٗ وُجُوْدَاتٌ کَثِیْرَةٌ، کَانَ ذٰلِكَ اَنْفٰی لِلرَّیْبِ عَنْهُ وَاَدْعٰی اِلٰی تَسْلِیْمِ ثُبُوْتِهٖ، وَاَدْنٰی اِلٰی وَفْرَةِ الْاِیْقَانِ بِهٖ مِمَّا لَوْ سُجِّلَ فِیْ سِجِلٍّ وَاحِدٍ اَوْ کَانَ لَهٗ وُجُوْدٌ وَاحِدٌ] [مناهل العرفان للزرقانی ۱/۳۹]۔

(زۀ وایم د قرآن کریم په درے مقاماتو کښ نازلیدل چه یو ځل په لوح محفوظ کښ، بل په بیت العزة کښ او دریم ځل د رسول الله ﷺ په زړه یاندے نو پدے کښ نازلولو کښ د قرآن کریم نه د شك او شبهے د نفی کولو تاکید دے او دا پدے باندے د یقین او اعتماد زیاتولو باعث دے، ځکه کله چه یوه خبره په ګڼړو رجسټرونو کښ اُولیکلے شی او د هغے ډیرو ځایونو کښ وجود ثابت شی نو دا د شك او شبهے د نفی کیدو زیاته مؤثره ذریعه وی، او د هغے د وجود د تسلیمولو او منلو زیات او قوی باعث وی او دا یقین ته زیات نزدے وی په نسبت ددے چه هغه خبره په یو رجسټر کښ لیکلے شوی وی)۔ نو ثابته شوه چه قرآن کریم اول بیت العزة ته نازل شویدے او پدے کښ دغه دوه حکمتونه بیان شویدی ممکن ده چه نور حکمتونه به هم وی۔

۳- بل پدے کښ د جبرئیل دپاره آسانی ده چه کله یوه واقعه او حادثه راپیښیږی نو هغه به په آسانئ سره حکم نازلوی۔

(٤) وَاَنَّ الْقُرْاٰنَ مُهَیَّاٌ لِلنُّزُوْلِ وَالْبَیَانِ کُلَّ وَقْتٍ۔

بل حکمت دا دے چه پدے کښ اشاره شی چه قرآن هر وخت د نازلیدو او بیانیدو دپاره تیار دے۔

## ۳- دریم : د رسول الله ﷺ په زړه د قرآن نازلیدل :

د قرآن کریم د آیتونو نه ښکاره طور سره دا معلومیږی چه قرآن کریم د لیکلے شوی کتاب

په شکـل کښې هم نۀ دے نازل شوے او د رسول الله ﷺ په زړه باندے هم په یو ځل تول نۀ دے نـازل شوے بلکه د حالاتو د تقاضو مطابق وخت په وخت په قسطونو او حصه حصه لږ لږ نازل شوے دے او تقریباً په (۲۳) کاله کښې پوره شوے دے۔

لـکـه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَقُـرْآنـاً فَـرَقْـنَـاهُ لِتَـقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلَى مُكْثٍ وَنَزَّلْنَاهُ تَنْزِيلًا﴾ (بنی اسرائیل : ۱۰٦)۔

(او مونږ قرآن جدا جدا نازل کړیدے دے دپاره چه ته ئے خلقو ته په آرام آرام سره اُولولے) او مونږ دا په تدریج سره نازل کړیدے)۔ او بل آیت دے : ﴿ وَإِنَّهُ لَتَنْزِيلُ رَبِّ الْعَالَمِينَ، نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِيـنُ عَـلـى قَـلْبِكَ لِتَـكُـونَ مِـنَ الْـمُنْذِرِينَ﴾ [الشعراء :۱۹۲/۱۹٤] ۔ (او یـقـیـنـاً دا قرآن د رب الـعـالمین د طرف نه تدریجاً نازل شویدے، دا جبریل ستا په زړه راکوز کړیدے دے دپاره چه ته د یره ورکونکو نه شے)

## د تدریجی نازلیدو اسرار او حکمتونه :

الله تعالیٰ خپل کتاب د امت دپاره یو دعوتی کتاب رالیږلے دے نو ددے وجه نه الله تعالیٰ هم د خطبـو او تقریرونو په شکل کښې د حالاتو مطابق نازل کړیدے، او د دعوت اصول دا دی چه الاهـم فـالاهـم بـه مـخکښې کولے شی ددے وجه نه د عقیدے اصلاح او د ایمانیات او اصول د دیـن د هغے د اهـمیـت بیان په مکی دور کښې نازل شوی وو او اعمال او احکام اکثر په مدنی دور کښې نازل شوی وو۔

لیـکن دلتـه دا سوال پیدا کیږی لکه څنګه چه مشرکانو هم دا سوال کړے وو چه دا قرآن تـول پـه تـولـه په یو ځل ولے نۀ نازلیدو لکه څنګه چه دا مشهوره ده چه پخوانی کتابونه په یـو ځـل نـازل شوی وو؟۔ نو ددے تدریجی نزول څه حکمتونه او مصلحتونه دی ؟ نو ددے وجه نه ددے حکمتونه پیژندل هم یو قرآنی علم دے۔ نو بعض د هغه حکمتونه دا دی :

۱- تقویت قلب الرسول :

اول حـکمت الله تعالیٰ دا بیان کړیدے ﴿ كَذَلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِ فُؤَادَكَ﴾ [الفرقان :۳۲] ۔ (دے دپاره مونږ پدے سره ستا زړه مضبوط کړو)

نـو کـلـه چه به د هرے واقعے او حالت په باره کښې تازه وحی راغله نو پدے سره به د رسول الله ﷺ زړه مـضـبـوط شـو او پـه روحانی قوت کښې به ئے اضافه اُوشوه او زړه ته به ئے ډیره تسـلی ملاؤ شوه ځکه چه کله په عین موقعه کښې د الله تعالیٰ د طرف نه یوه تسلی راشی

نو د انسان زړه ته ډیر سکون ملاویږی. د ملائك بار بار ملاقات، او د الله تعالیٰ د طرف نه نوی نوی پیغام په زړه کښې یو لذت (خوند) او سرور (خوشحالی) پیدا کوی.

**۲- حفظ او فهم آسانول :**

یعنی دی دپاره چه نبی ﷺ او امت ته د قرآن کریم حفظ او یادول او په هغې باندې پوهیدل آسان شی. ځکه چه دا قانون فطری دی چه کله یو انسان ته پوره کتاب ورکړې شی نو د هغې په یادولو کښې ورته بوج محسوس کیږی لیکن کله چه هغه سبقاً سبقاً لږ لږ وئیلې شی نو هغه کتاب په آسانئ سره یادیږی او د هغې په مطلب او معانیو باندې پوهیدل هم آسانیږی. او خاصکر د قرآن کریم د نازلیدو په وخت کښې عرب قوم یو ان پړه امت وو نو که دوی ته یو لیکلې شوې کتاب ورکړې شوې وې نو د هغې لوستل او په هغې پوهیدل او د هغې یادول به ورته ضرور مشکلات پیدا کول نو ځکه د قرآن په نزول کښې تدریج اُوکړې شو.

**۳- تدریج فی تنفیذ الاحکام وتربیة هذه الامة :**

(یعنی د احکامو په نازلولو کښې تدریج راوستل او ددې امت په درجه درجه تربیت کول).

نوکه پوره قرآن په یو ځل نازل شوې وې نو خلقو ته به په هغې باندې عمل کول او سمدست خپل ژوند د هغې مطابق جوړول به سخت مشکل وې ځکه چه د زمانو او صدیو رسمونه، رواجونه او عادتونه یکدم پریخودل څه آسان کار نۀ دې، نو د حکمت او د فطرت تقاضا دا ده چه اول په زړونو کښې د ایمان او یقین جرړې مضبوطې کړې شی او بیا هغوی ته د اعمالو حکم اُوکړې شی. او ظاهره ده چه د بنیادونو مضبوطولو نه بغیر آبادی نشی پورته کیدې او که پورته هم کړې شی نو زر به راغورځیږی. دغه شان د ګلانو او ونو او فصلونو د جرړو د مضبوطولو نه بغیر د هغې نه فائده او غله او پیدا وار حاصلول مشکل وی.

او دې حکمت ته عائشې ؓ اشاره کړیده :

[عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : اِنَّمَا نَزَلَ اَوَّلَ مَا نَزَلَ مِنْهُ مِنَ الْمُفَصَّلِ فِيهَا ذِكْرُ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ حَتّٰى اِذَا ثَابَ النَّاسُ اِلَى الْاِسْلَامِ نَزَلَ الْحَلَالُ وَالْحَرَامُ وَلَوْ نَزَلَ اَوَّلَ شَيْءٍ لَاتَشْرَبُوْا الْخَمْرَ لَقَالُوْا لَا نَدَعُ الْخَمْرَ وَلَوْ نَزَلَ لَاتَزْنُوْا لَقَالُوْا لَانَدَعُ الزِّنَا اَبَدًا] [صحيح البخارى كتاب فضائل القرآن باب تاليف القرآن] .

(عائشې نه نقل دی چه د قرآن د سورتونو نه اول مفصل (یعنی واړه) سورتونه نازل شوی

وو چه په هغې کښې د جنت او جهنم ذکر وو تردې چه کله د خلقو رجوع اسلام طرف ته شوه نو بيا د حلال او حرامو متعلق احکام نازل شو۔ که د اول نه مثلاً دا حکم راتلې چه شراب مهٔ څکئ نو خلقو به وئيلې چه مونږ شراب نشو پريخوستې۔ او که دا حکم نازل شوې وې چه زنا مهٔ کوئ نو خلقو به وئيلې چه مونږ خو هيڅ کله زنا نشو پريخوستې)۔

**٤- د سوالاتو په خپل وقت جواب ورکول**

نو کله چه به په دعوت کښې د مخالفينو د طرف نه کوم اعتراضات او سوالات راتلل نو د هغې جواب به بروقت ورکړې کيدو او داعی ته په وخت رهنمائی ملاويده او دا د هدايت دپاره ډيره مناسبه او مفيده طريقه ده، په نسبت ددې چه د راتلونکو واقعاتو او سوالاتو په باره کښې يو ليکلې شوې کتاب ورکړې شي يا ټول هدايات او جوابات پوره پوره يو ځل ورکړې شي۔ لکه قرآن کريم کښې دا حکمت پدې الفاظو ذکر دې : ﴿ وَلَا يَأْتُونَكَ بِمَثَلٍ إِلَّا جِئْنَاكَ بِالْحَقِّ وَأَحْسَنَ تَفْسِيرًا﴾ [الفرقان : ۳۳]۔ (او دا خلق نهٔ راوړی تا ته يو ناشنا سوال مګر مونږ د هغې صحيح جواب او ښائسته وضاحت راوړو) [مناهل العرفان ۱/ ۳۹) وعلوم القرآن ۱/ ۱۲۰]۔

## ۱۲- الامر الثانی عشر : کيفية اخذ جبريل للقرآن۔

[جبريل عليه السلام قرآن څنګه راخستې دې؟ ]

جبريل عليه السلام قرآن کريم د چا نه اخستې دې او په څه طريقه ئې اخستې دې؟ نو دا خبره د غيبو سره تعلق لری د انسان اطمينان هله رازی چه د نبی ﷺ نه د هغې صحيح دليل راشی او دې باره کښې د علماؤ مختلف اقوال دی چه اکثر د هغې تشفی نهٔ ورکوی۔

۱- لکه علامه طيبیؒ وئيلی دی : [لَعَلَّ نُزُوْلَ الْقُرْآنِ عَلَى الْمَلَكِ اَنْ يَّتَلَقَّفَهُ تَلَقُّفًا رُوْحَانِيًّا اَوْ يَحْفِظَهُ مِنَ اللَّوْحِ الْمَحْفُوْظِ فَيَنْزِلُ بِهٖ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فَيُلْقِيْهِ اِلَيْهِ] اهـ۔ (يعنی شايد چه په ملائك باندې د قرآن کريم نزول پدې طريقه وی چه ملائك هغه په روحانی طريقه سره يکدم حاصل کړې وی يا ئې د لوح محفوظ نه ياد کړې وی او بيا نبی ﷺ ته ئې راکوز کړې وی او هغه ته ئې ګوزار کړې وی)۔

دا قول ضعيف بې دليله دې۔

۲- دويم علامه ماوردیؒ نقل کړيدی چه حفظه ملائکو قرآن کريم په جبريل باندې په شلو شپو کښې تقسيم کړې وو (لږ لږ ئې په شلو شپو کښې نازل کړيدې) او بيا جبريل عليه السلام

په نبي ﷺ باندے په شلو کالو کښې لږ لږ نازل کړے وو انتهیٰ۔
مطلب دا چه جبریل علیه السلام قرآن د حفظه ملائکو نه په شلو قسطونو کښې اخستے دے۔ خو دے قول باندے هیڅ ادنیٰ دلیل هم نشته۔
۳- دریم قول راجح : دا دے چه جبریل علیه السلام دا قرآن کریم د الله تعالیٰ نه ډائرکټ، بغیر د واسطے نه اخستے دے۔ او ددے دلیل دا دے چه طبرانی حدیث د نواس بن سمعان مرفوع روایت نقل کړیدے :
[إِذَا تَكَلَّمَ اللهُ بِالْوَحْيِ اَخَذَتِ السَّمَاءُ رَجْفَةً شَدِيْدَةً مِنْ خَوْفِ اللهِ، فَإِذَا سَمِعَ اَهْلُ السَّمَاءِ صَعِقُوْا وَخَرُّوْا سُجَّدًا فَيَكُوْنُ اَوَّلَهُمْ يَرْفَعُ رَأْسَهُ جِبْرِيْلُ، فَيُكَلِّمُهُ اللهُ بِوَحْيِهِ بِمَا اَرَادَ، فَيَنْتَهِيْ بِهِ إِلَى الْمَلَائِكَةِ فَكُلَّمَا مَرَّ بِسَمَاءٍ سَأَلَهُ اَهْلُهَا مَا ذَا قَالَ رَبُّنَا ؟ قَالَ : اَلْحَقَّ، فَيَنْتَهِيْ بِهِ حَيْثُ أُمِرَ]۔
(کله چه الله تعالیٰ په وحی سره خبرے اُوکړی نو آسمان باندے یو سخت جرق (اوزلزله) راشی د الله تعالیٰ د یرے د وجه نه، نو کله چه آسمان والا دا واوری نو بے هوشه شی او په سجدو پریوزی، نو اول پکښې جبریل سر راپورته کړی نو الله تعالیٰ د هغه سره په هغه وحی سره خبرے اُوکړی د کومے اراده چه الله تعالیٰ کړی وی، نو هغه ئے ملائکو ته راوړی نو هرکله چه په یو آسمان راتیریږی نو د هغے اُوسیدونکی تپوس کوی زمونږ رب څه اُووئیل ؟۔ جبریل وائی : حقه خبره ئے اُوکړه، نو جبریل ئے هغه ځائے ته اُورسوی کوم ځائے ته چه ورته حکم شوے وی)۔
حاصل دا شو چه نازلونکے د قرآن صرف الله تعالیٰ دے او پدے کښې د هیچا دخل نشته او الله تعالیٰ جبریل له ورکړیدے او هغه ډارک نبی ﷺ ته نازل کړیدے۔ لکه دا آیت هم دے ته اشاره کوی :
﴿ وَإِنَّهُ لَتَنْزِيْلُ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ عَلٰى قَلْبِكَ لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ ﴾
[الشعراء :۱۹۳]۔

## جبریل کوم شے نازل کړیدے ؟

دا خبره پیژندل پکار دی چه جبریل علیه السلام قرآن کریم نازل کړیدے او قرآن کریم عبارت دے د حقیقی الفاظو نه چه هغه معجز دی او د اول د فاتحے نه تر آخر د سورة الناس پورے دا الفاظ بعینه د الله تعالیٰ کلام دے، پدے کښې نۀ د جبریل د جوړولو مداخلت شته او نۀ د محمد رسول الله ﷺ، یعنی نۀ دا جبریل ایجاد کړیدے او نۀ ئے ترتیب ورکړیدے او نۀ

محمد ﷺ د ځان نه ایجاد کړیدے او نهٔ ئے د ځان نه ترتیب ورکړیدے۔ بلکه یوائے الله تعالیٰ ورته د اول نه پخپله ترتیب ورکړیدے۔ ددے وجه نه د قرآن نسبت صرف او صرف الله تعالیٰ ته کیږی نهٔ بل چا ته اګرکه نطق او تلفظ پرے جبریل علیه السلام او محمد رسول الله ﷺ او کروړونو خلقو د جبریل او محمد رسول الله ﷺ نه روستو کړیدے او کوی به ئے تر قیامت قائمیدو پورے۔ خو کلام د الله تعالیٰ دے۔ او ددے مثال داسے دے لکه دِ انسانی کلام نسبت هغه چا ته کیږی چه چا جوړ کړے او ایجاد کړے وی او په زړه کښ ئے ورله اول ترتیب ورکړے وی۔ اګرکه زرګونو خلق به په هغے باندے نطق او تلفظ کوی او هغه به په خپله ژبه راولی۔ لیکن خلق ئے نسبت اول جوړونکی ته کوی او داسے وائی چه فلانی داسے خبره کړیده۔

او الله تعالیٰ پدے قرآن باندے کوم چه د الله تعالیٰ کلام دے او صفت ئے دے تلفظ کړیدے په صوت او حرف سره۔ چه آواز ئے هم وو او هغه حروف ئے هم ادا کړیدی او جبریل علیه السلام هغه اَوریدلی دی او په همغه طریقه ئے رسول الله ﷺ ته نازل کړیدی څنګه ئے چه د الله تعالیٰ نه براهِ راست اَوریدلی دی، هیڅ تغییر او تبدیل ئے پکښ نهٔ دے کړے او نهٔ ورله تغییر او تبدیل کول مناسب نهٔ دی۔

او په قرآن کریم کښ الله تعالیٰ ته د کلام نسبت شویدے: ﴿ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلَامَ اللّٰهِ ﴾ [التوبه :٦]۔ (تردے چه واوری د الله تعالیٰ کلام (خبرے) نو دا د الله تعالیٰ لفظی کلام دے۔

بعض د غلطو عقیدو والا او بے تحقیقه خلق داسے عقیده لری چه قرآن کریم باندے الله تعالیٰ تلفظ نهٔ دے کړے ځکه چه تلفظ او تکلم خو ژبه او مرئ او آواز غواړی او الله تعالیٰ خو ددے نه منزه او پاك دے۔ ځکه چه دا څیزونه خو علامه د حادث او ممکن ده او حدوث او امکان علامه د احتیاج ده نو الله تعالیٰ بیا محتاجه کیږی مرئ او ژبے ته او الله تعالیٰ خو غنی ذات دے نو دوی په خپلو دماغو سره د الله تعالیٰ د کلام نه انکار اُوکړو او په بدعاتو کښ اخته شو نو که بیا ورته اُووئیلے شی چه تاسو خو د نصوصو نه انکار کوئ چه د الله تعالیٰ کلام نهٔ منئ نو دوی ورته داسے چل جوړ کړیدے چه کلام په دوه قسمه دے یو کلام لفظی دے په کوم باندے چه تلفظ کیږی او دویم کلام نفسی دے کوم چه په ذات او نفس کښ وی۔ یعنی هغه معانی او مقاصد چه زړه کښ پراته وی او لا تلفظ پرے نهٔ وی شوے۔

نو کلام نفسی د الله تعالیٰ صفت دے او قرآن ته چه د الله تعالیٰ کلام وئیلے شویدے نو دا په اعتبار د کلام نفسی سره۔ یعنی دا قرآن دال دے په کلام نفسی باندے لکه څنګه چه

کلام لفظی دلالت کوی په کلام نفسی باندے یعنی څوك چه الفاظ وائی نو دا دلالت کوی چه ددهٔ په زړه کښې دا فلانے مقصود پروت دے نو دواړو ته ئے کلام اُووئیلو حال دا چه دا تقسیم غلط دے۔ ځکه چه حقیقی کلام صرف او صرف هغه ته وئیلے شی چه هغے باندے تکلم او تلفظ کیدے شی او هرچه په زړه کښې مقصود دے نو هغے ته کلام وئیل مجازاً دی ځکه چه هغه خو باطنی شے دے هغه به هله کلام گرزی چه تلفظ پرے اُوشی۔ او دغه مجاز منلو ته هیڅ ضرورت نشته۔ ددے په وجه د حقیقی صفت د الله تعالیٰ نه انکار پیدا شویدے۔

بیا دوی وائی چه هرکله دا قرآن د الله تعالیٰ کلام نشو نو بیا څنګه جبریل واوریدلو او هغه څنګه محمد رسول الله ﷺ ته راوړلو ؟ نو پدے کښې ئے بیا مختلف اقوال کړیدی :

۱- چا وئیلی دی چه الله تعالیٰ په لوح محفوظ کښې آوازونه پیدا کړل چه هغه جبریل واوریدل او هغه بیا نبی ﷺ ته راوړل۔

۲- بعضو پکښې وئیلی دی چه جبریل ؑ به په نبی ﷺ باندے د قرآن کریم معانی او مقاصد راوړل او رسول الله ﷺ به د هغے نه په لغت د عربو تعبیر کولو۔

۳- بعضو وئیلی وو چه د جبریل په زړه کښې به الله تعالیٰ د قرآن کریم معانی او مقاصد پیدا کول او هغه به نبی ﷺ ته راوړل۔ دا اقوال ټول خطاء او غلط دی او د قرآن کریم انتهائی بے ادبی ده او د الله تعالیٰ د مقابلے مرادف دی۔ او د صریح نصوصو نه په بعض غلط اشتباهات او غلط فهمیانو سره انکار دے۔

[انظر لبعض الاقوال مناهل العرفان ۱/ ٤۱]۔

نو صحیح او حق دا ده چه د جبریل ؑ پدے قرآن کښې هیڅ نشته سویٰ ددے نه چه هغه رسول الله ﷺ ته ددے نقل کړیدے او وحی ئے کړیده او د رسول الله ﷺ پدے قرآن کښې خپل هیڅ لفظ نشته سویٰ ددے نه چه هغه د الله تعالیٰ دغه کلام یاد کړے او حفظ کړیدے او بیا ئے خلقو ته د هغے تبلیغ او رسول کړیدی او بیا ئے بیان او تفسیر او تطبیق او تنفیذ کړیدے۔

الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَإِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْآنَ مِن لَّدُنْ حَكِيمٍ عَلِيمٍ ﴾ [النمل : ٦]۔

(او یقیناً تا ته قرآن کریم درکولے شی د طرف د حکیم او علیم ذات نه)۔

د کلام نفسی تردید په مجموعة الفتاوی د ابن تیمیةؒ او قصیده نونیه د ابن قیمؒ او شرح العقیدة الطحاویة د ابن ابی العزؒ او الماتریدیة د دکتور شمس الدینؒ کښې اُوګوره۔

## ۱۳- الامر الثالث عشر:

## ابتداء د نزول او موده د نزول قرآن

قرآن کریم په څومره موده کښې پوره شویدے او کوم وخت ئے شروع شویده ؟

د قرآن کریم د نزول ابتداء او آغاز په رمضان میاشت کښې شویدے لکه دا د سیرت امام، محمد بن اسحاق بن یسار متوفی (۱۵۰ھ) لیکلی دی چه : [فَابْتُدِءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ بِالتَّنْزِيْلِ فِیْ شَهْرِ رَمَضَانَ يَقُوْلُ اللّٰه تَعَالٰی شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِیْ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْآنُ وَقَالَ اللّٰه تَعَالٰی اِنَّا اَنْزَلْنَاهُ فِیْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ وَقَالَ تَعَالٰی : اِنَّا اَنْزَلْنَاهُ فِیْ لَيْلَةٍ مُبَارَكَةٍ]

(سیرة ابن اسحاق ص [۱۳۰] ـ

یعنی رسول الله ﷺ باندے د قرآن کریم ابتداء په رمضان کښې شوے وه ځکه چه الله تعالیٰ فرمایلی دی : چه رمضان هغه میاشت ده چه پدے کښې قرآن نازل شویدے او الله تعالیٰ فرمایلی دی : مونږ دا قرآن په شپه د قدر کښې نازل کړیدے او فرمایلی ئے دی : مونږ دا قرآن په برکت والا شپه کښې نازل کړیدے)ـ

او په دے باره کښې مرفوع حدیث هم موجود دے واثله بن الاسقع ﷛ فرمائی : [اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ : اُنْزِلَتْ صُحُفُ اِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِیْ اَوَّلِ لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ وَاُنْزِلَتِ التَّوْرَاةُ لِسِتٍّ مَضَيْنَ مِنْ رَمَضَانَ وَالْاِنْجِيْلُ لِثَلَاثَ عَشْرَةَ خَلَتْ مِنْ رَمَضَانَ وَاُنْزِلَ الْفُرْقَانُ لِاَرْبَعٍ وَعِشْرِيْنَ خَلَتْ مِنْ رَمَضَانَ] [مسند احمد ٤/۱۰۷) الفتح الربانی ابواب کیفیة نزول القرآن ۱۸/٤٦) وشعب الایمان للبیهقی (٤۱٤/۲) طبع دار الکتاب العلمیة بیروت) [والحدیث صحیح کما فی الصحیحة: ۱۵۷۵]ـ

(رسول الله ﷺ فرمایلی دی : د ابراهیم ﵇ صحیفے د رمضان په اوله شپه نازلے شوے دی او تورات د رمضان د شپږو ورځو د تیریدو نه بعد نازل شوے وو (یعنی اُومه شپه) او انجیل په څوارلسمه شپه کښې نازل شوے وو او قرآن د څلیریشت شپو د تیریدو نه بعد (یعنی په پنځه ویشتمه شپه) نازل شویدے)

او کیدے شی چه په دغه کال باندے لیلة القدر (۲۵) شپه وه چه هغه طاق شپه ده۔ نو پدے شپه بیت العزت ته مکمل قرآن نازل شوے وو او په همدے شپه د رسول الله ﷺ په زړه هم نازل شوے وو۔ نو شروع ئے هم ددے شپے نه شوے وه۔

او د صحیح مسلم د روایت نه معلومیږی چه دا د اتوار او منگل درمیانه شپه وه ځکه

چه قمری حساب کښې د نمر پریوتو نه د راتلونکې ورځ شپه شروع کیږي) نو دا ورځ یوم الاثنین (یعنی د پیر ورځ) وه. لکه ابو قتاده انصاری ﷺ فرمائی :

[سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ عَنْ صَوْمِ يَوْمِ الْإِثْنَيْنِ فَقَالَ فِيْهِ وُلِدْتُّ وَفِيْهِ اُنْزِلَ عَلَيَّ الْقُرْآنُ] [صحیح مسلم کتاب الصوم باب صیام ثلاثة ایام من کل شهر) [والمشکاة کتاب الصوم].

(د رسول الله ﷺ نه د دو شنبې د ورځې د روژې متعلق تپوس اُوشو نو هغه اُوفرمایل : پدې ورځ زه پیدا شوې یم او پدې ورځ په ما باندې قرآن کریم نازل شوې وو) یعنی ابتداء ئې پدې ورځ شوې وه.

د رسول الله ﷺ د قرآن کریم د نازلیدو په وخت عمر څلویښت کاله وو لکه د ابن عباس ﷺ په روایت کښې راغلی دی :

[اُنْزِلَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَهُوَ ابْنُ اَرْبَعِيْنَ فَمَكَثَ بِمَكَّةَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ سَنَةً ثُمَّ اُمِرَ بِالْهِجْرَةِ فَهَاجَرَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَمَكَثَ بِهَا عَشْرَ سِنِيْنَ ثُمَّ تُوُفِّيَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّيْنَ] [صحیح بخاری فضائل الصحابة باب مبعث النبی وصحیح مسلم فی الفضائل باب قدر عمره واقامته بمکة والمدینة]

(یعنی رسول الله ﷺ باندې د قرآن کریم نازلیدل د څلویښتو کالو په عمر شوی وو او د هغې نه بعد په مکه کښې ئې (۱۳) کاله تیر کړل او بیا ورته د هجرت حکم اُوشو او مدینې ته ئې هجرت اُوکړو او په مدینه کښې ئې (۱۰) کاله وخت تیر کړو او د (٦۳) کالو په عمر وفات شو.

د ام المؤمنین عائشة، انس بن مالك او معاویة نه هم دغه شان روایتونه نقل دی چه رسول الله ﷺ د (٦۳) کالو په عمر وفات شویدې. [کما فی صحیح مسلم فی الفضائل باب قدر عمره]

لیکن د عائشې، ابن عباس او انس بن مالك ﷺ نه دا قول هم منقول دې چه د قرآن کریم د نزول موده (۲۰) شل کاله دی، (۱۰) لس کاله په مکه کښې او (۱۰) لس کاله په مدینه کښې وو او ټول عمر ئې (٦۰) شپیته کاله وو. (صحیح مسلم)

۳- بلکه د ابن عباس ﷺ نه دریم قول دا هم نقل دې چه د نزول قرآن موده په مکه کښې (۱۵) کاله او په مدینه کښې (۱۰) کاله وو او د رسول الله ﷺ ټول عمر (٦۵) کاله وو. (صحیح مسلم)

نو پدې روایتونو کښې ظاهراً تعارض ښکاره کیږي. تطبیق ئې دا دې چه د ټولو نه راجح روایت اولنې دې چه په هغې کښې په مکه کښې (۱۳) کاله او په مدینه کښې (۱۰) کاله پاتې

کیدلاوعمرئے (٦٣) کاله ذکر دی۔ د هغے روایان کثیر دی او سند ئے قوی دے ځکه متفق علیه دے۔ او دا نور روایات صرف د مسلم دی۔

او هرچه دا باقی روایات دی نو دا یا د راویانو په وهم بناء دی یا پدے کښې تاویل شویدے او هغه تاویل امام نوویؒ په شرح مسلم کښې ذکر کړیدے فرمائی :

[ذُكِرَ فِي الْبَابِ ثَلَاثُ رِوَايَاتٍ إِحْدَاهَا أَنَّهُ ﷺ تُوُفِّيَ وَهُوَ ابْنُ سِتِّيْنَ سَنَةً وَالثَّانِيَةُ خَمْسٌ وَسِتُّوْنَ وَالثَّالِثُ ثَلَاثٌ وَسِتُّوْنَ وَهِيَ أَصَحُّهَا وَأَشْهَرُهَا رَوَاهُ مُسْلِمٌ هُنَا مِنْ رِوَايَةِ عَائِشَةَ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَاتَّفَقَ الْعُلَمَاءُ عَلَى أَنَّ أَصَحَّهَا ثَلَاثٌ وَسِتُّوْنَ وَتَأَوَّلُوا الْبَاقِيَ عَلَيْهِ فَرِوَايَةُ سِتِّيْنَ اُقْتُصِرَ فِيْهَا عَلَى الْعُقُوْدِ وَتُرِكَ الْكَسْرُ وَرِوَايَةُ الْخَمْسِ مُتَأَوَّلَةٌ أَيْضًا وَحَصَلَ فِيْهَا اشْتِبَاهٌ] ۔

یعنی پدے باب کښې امام مسلم درے روایات ذکر کړل یو دا چه د نبی ﷺ عمر (٦٠) کاله وو دویم (٦٥) دریم (٦٣) کاله وو او دا دریم روایت ډیر صحیح او ډیر مشهور روایت دے چه امام مسلم پدے باب کښې د عائشے، انس بن مالك، او ابن عباس نه نقل کړیدے۔

د علماءِ کرامو پدے خبره اتفاق دے چه ډیر صحیح روایت (٦٣) کالو عمر کښې وفات کیدو والا دے او د باقی روایاتو ددے مطابق تاویل ئے کړیدے مثلا (٦٠) شپیته کالو والا روایت کښې کسر د شمار نه پریخودے شویدے او صرف په دهائی (لسیز) باندے اکتفاء شویده۔ لکه دا د عربو عادت دے چه غالباً معمولی کسر نۀ ذکر کوی۔ بلکه عقود ذکر کوی۔ او د (٦٥) پنځه شپیتو والا روایت کښې هم تاویل شویدے او په هغے کښې د راوی اشتباه هم موجوده ده)۔

او د (٦٣) شپیتو کالو والا روایت ته حافظ ابن حجرؒ هم ډیر صحیح روایت وئیلے دے۔ اُوګوره [فتح الباری فی الفضائل - باب هجرة النبی ﷺ واصحابه الی المدینة ۸/۲۳۰]۔

علامه زرقانیؒ فرمائی : د تشریع اسلامی بعض محققین موده د اقامت د نبی ﷺ په مکه کښې (۱۲) دولس کاله (٥) پنځه میاشتے او (۱۳) دیارلس ورځے د (۱۷) رمضان نه د (٤١) یو څلویښتم د ولادت د رسول الله ﷺ نه تر اول د ربیع الاول سنه (٥٤) پورے ذکر کړیده او رسول الله ﷺ د هجرت نه روستو په مدینه کښې (۹) نهه کاله (۹) نهه میاشتے او (۹) نهه ورځے تیرے کړیدی د اول د ربیع الاول سنه (٥٤) د ولادت د نبی ﷺ نه تر (۹) نهم ذی الحجه سنه (٦٣) پورے وو۔ او دا د هجرت لسم کال سره موافق دے۔ او دا تحقیق قریب دے هغه قول ته چه وائی : په مکه کښې ئے (۱۳) کاله او په مدینه کښې (۱۰) کاله تیر کړی وو او موده د وحی د قرآن کریم (۲۳) کاله وو۔

لیکن بیا ئے وئیلی دی چه دا قول صحیح نۀ دے ځکه چه ذے صاحب نهم ذی الحجه

بانـدے نـازل آيت (اليـوم اكملت لكم دينكم) (المائده ۳) دا آخرى آيت گنړلے دے او حال دا چـه راجـح دا ده چـه آخـرى آيـت (واتقوا يوماً ترجعون فيه الى الله) دے (البقره : ۲۸۱) نو د اليـوم اكـمـلـت نه روستو نبى ﷺ (۸۱) ورځے روستو وفات دے۔ او د (واتقوا يوماً) نه نهه ورځے روستو وفات دے نو دوه اويا ورځے د دغه نهم د ذى الحجے سره ملگرى کړه نو دمدينے دا زندگى پوره لس كاله جوړيږى۔ [مناهل العرفان ۱/ ۴۳ / ۸۰] ۔

## ۱۴- مَا هِىَ اَوَّلُ مَانَزَلَ ؟
## [ اولنى كوم آيتونه نازل شويدى؟]

دا خبره ذهن كښى كينـوه چه د وحى شروع د ښائسته او رشتينى خوبو نه شوے وه چه هغه به د ربيع الاول نه تر رمضان شپږو مياشتو پورے نبى ﷺ ليدل۔ او د هغے نه بعد بيا په رمضان كښى د قرآن كريم نزول شروع شو۔ نو كوم آيتونه اول نازل شو ؟

پـدے بـاره كـښى عـلامـه زرقـانىؒ په مناهل العرفان فى علوم القرآن (۱/ ۷۲) كښى څلور اقـوال ذكر كـړيـدى او د ټولـو تـحـقيق ئے هم كړيدے چه بعض [ اقرأ] ذكر كوى۔ بعض د سورة الـمـدثـر ابتـدائـى آيـتـونـه او بـعـض سورة الفاتحه او بعض صرف بسم الله الرحمن الرحيم۔ بيا ئے اول قول ته ترجيح وركړيده۔

او هـمـدا صحيح خبره ده چه مطلقاً د ټولو ړومبنى آيتونه د سورة العلق نازل دى لكه دا په ډيـرو احاديثو كښى راغلے دى، د بخارى په (۲) صفحه كښى د عائشے په اوږد حديث كښى راغلى دى : [فَغَطَّنِى الثَّالِثَةَ حَتّٰى بَلَغَ مِنِّى الْجُهْدَ ثُمَّ اَرْسَلَنِىْ فَقَالَ: اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِىْ خَلَقَ حَتّٰى بَلَغَ – مَا لَمْ يَعْلَمْ– فَرَجَعَ بِهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ تَرْجُفُ فُؤَادُهٗ] [باب بدء الوحى الى رسول الله ﷺ]۔

(يـعـنـى كـلـه چه غار حراء ته اول ځل جبريل امين تشريف راوړو نو رسول الله ﷺ ته ئے اُوفرمايل : اُولوله نو هغه تقريباً درے ځل اُووئيل چه زهٔ لوستل نشم كولے نو جبريل به ځان سره جوخت كړو او ښه زور به ئے وركړو بيا به ئے پريخودو نو په څلورم ځل ئے ورته اُووئيل : اقـرأ باسم ربك الذى خلق– تردے چه ما لم يعلم– آيت پورے اُورسيدو نو رسول الله ﷺ دا آيتونه ځان سره راوړل پداسے حال كښى چه زړه ئے رپيدو)۔

ددے حـديـث پـه آخر كښى دا الفاظ دى : [وَفَتَرَ الْوَحْىُ] ۔(او بيـا وحـى بنده شوه) دا صريح حـديـث دے او نص دے پدے مسئله كښى چه مطلقاً د سورة العلق ابتدائى آيتونه اول نازل



شویدی۔ او کوم علماء چه دا وائی چه اول نازلیدونکی آیتونه د سورة المدثر دی۔ (یا ایها المدثر) نو هغه د وحی د بندیدو نه روستو زمانه کښ نازل شویدی نو هغه د فترة الوحی نه بعد اولنی آیتونه دی۔ مطلقاً اولنی آیتونه نهٔ دی۔

لکه دغه علماء په حدیث د ابوسلمه بن عبد الرحمن باندے استدلال کوی چه هغه فرمائی : [سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَیُّ الْقُرْآنِ اُنْزِلَ قَبْلُ ؟ قَالَ: یَا اَیُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُلْتُ: اَوْ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ ؟ قَالَ: اُحَدِّثُكُمْ مَا حَدَّثَنَا بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : اِنِّیْ جَاوَرْتُ بِحِرَاءٍ فَلَمَّا قَضَیْتُ جِوَارِیْ نَزَلْتُ فَاسْتَبْطَنْتُ الْوَادِیَ فَنَظَرْتُ اَمَامِیْ وَخَلْفِیْ وَعَنْ یَمِیْنِیْ وَشِمَالِیْ ثُمَّ نَظَرْتُ اِلَی السَّمَاءِ فَاِذَا هُوَ یَعْنِیْ جِبْرِیْلَ فَاَخَذَتْنِیْ رَجْفَةٌ فَاَتَیْتُ خَدِیْجَةَ فَاَمَرْتُهُمْ فَدَثَّرُوْنِیْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ یَا اَیُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَاَنْذِرْ] [صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المدثر ومسلم فی الایمان باب بدء الوحی]۔

(ابوسلمه بن عبد الرحمن وائی چه ما د جابر بن عبد الله‌ ﷺ نه تپوس اُوکړو چه د قرآن کومه حصه اوله نازل شوے وه ؟ نو هغه اُوفرمایل : (یا ایها المدثر)۔ ما اُووئیل : یا (اقرأ باسم ربك؟) (یعنی اقرأ به مخکښ نازل وی؟) نو هغه اُوفرمایل : چه زه تا ته هغه حدیث بیانوم کوم چه مونږ ته رسول الله ﷺ بیان کړے وو ۔ رسول الله ﷺ فرمایلی وو چه زه په غار حراء کښ اُوم کله چه ما خپله موده هلته پوره کړه او راکوز شوم او د میدان مینځ ته راورسیدم نو (د آواز په آوریدو سره) ما خپلے مخے او روستو او ښی او گس طرف ته اُوکتل بیا مے آسمان ته نظر پورته کړو نو ناڅاپه همغه وو یعنی جبریل۔ نو په ما باندے رږ (رپیدل) طاری شو۔ (یعنی اُوویریدم او مرعوب شوم) زه خدیجے ته راغلم او هغے ته مے حکم اُوکړو چه شرئ راباندے واچوئ نو هغے راته کمبل واغوسته نو الله تعالیٰ دا حکم نازل کړو چه اے کمبل اغوستونکیه ! پاڅه او خلقو ته یره ورکړه)۔

مذکوره علماء وائی اُوگوره جابر بن عبد الله د ابوسلمه بن عبد الرحمن په جواب کښ ښکاره اُووئیل چه د ټولو نه اول مدثر نازل شوے وو او کله چه ابوسلمه ورته د ((اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ)) د اول نازلیدو ذکر اُوکړو نو هغه اُوفرمایل : چه زه تا ته هغه خبره کوم کومه چه مونږ ته رسول الله ﷺ خودلے وه۔

نو ددے جواب دا دے چه ددے حدیث ټول طرق او اسانید په بخاری او مسلم کښ دیارلس (۱۳) دی چه په هغے کښ په نهو (۹) کښ دا صراحت شویدے چه رسول الله ﷺ جابر بن عبد الله ته د فترة د وحی نه بعد دوباره شروع کیدو واقعه بیان کړے وه۔ لکه کتاب الادب باب رفع البصر الی السماء کښ داسے الفاظ دی :

[ثُمَّ فَتَرَ عَنِّي الْوَحْيُ ...... فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِيْ جَاءَنِيْ بِحِرَاءٍ قَاعِدٌ عَلٰى كُرْسِيِّ الخ] ـ (بیا ما نه وحی بنده شوه ..... نو ځاپه هغه ملائك چه ما ته په حراء کښې راغلے وو، په کرسئ ناست وو الخ)۔

نو دا دلیل دے چه باقی ځلورو روایاتو کښې د راوی نه د فترة لفظ پاتے شویدے۔ ځکه اکثرئے ذکر کوی او دغه ځلور راویان ئے نۀ ذکر کوی دا دلیل دے په وهم او نسیان ددے راویانو۔ نو ثابته شوه چه اول (اقرأ) نازل شویدے او د وحی د بندیدو نه بعد اول سورة المدثر نازل شویدے۔ او د جابر په دغه روایت کښې چه د غار حراء ذکر راغلے دے نو ددے وجه حافظ ابن حجرؒ دا ذکر کړیده چه د وحی د بندش په زمانه کښې به هم رسول الله ﷺ غار حراء ته تلو لکه څنګه چه په نورو روایاتو کښې هغه ذکر شویدی۔ [فتح الباری کتاب التفسیر سورة المدثر باب قوله وربك فكبر ١٠/٣٠٥] ـ

او جابر په دغه حدیث کښې د( اقرأ) د اولیت تردید هم نۀ دے کړے بلکه د سورة المدثر د اولیت په باره کښې ئے ورته حدیث بیان کړیدے۔ فتدبر۔

بیا پاتے شوه دا خبره چه د کوم حدیث نه دا معلومیږی چه اول بسم الله الرحمن الرحیم نازله شویده نو هغه یو مرسل روایت دے چه واحدی په خپل سند سره د عکرمۃؒ او حسن بصریؒ نه راوړیدے چه هغوی دواړو دا فرمایلی دی۔ نو دا د مرفوع حدیث مقابله نشی کولے۔

او کوم روایت کښې چه د سورة الفاتحے اول نازلیدل ذکر دی نو بیهقیؒ په دلائل النبوة کښې د ابو میسره عمر بن شرحبیل نه راوړیدے چه رسول الله ﷺ خدیجے ته د وحی د نازلیدو واقعه ذکر کړے وه۔ نو هغه یو خو مرسل دے او دویم په هغه حدیث کښې دا نشته چه سورة الفاتحه د ټولو نه اول نازله ده بلکه په هغے کښې دا دی : چه کله خدیجےؓ نبی ﷺ لره ورقه ته بوتلو نو هغه ترے تپوس اُوکړو چه تا سره څه کیږی نو هغه اُوفرمایل :

[إِذَا خَلَوْتُ وَحْدِيْ سَمِعْتُ نِدَاءً خَلْفِيْ يَا مُحَمَّدُ يَا مُحَمَّدُ، فَأَنْطَلِقُ هَارِباً فِي الْأُفُقِ)) فَقَالَ: لَاتَفْعَلْ إِذَا أَتَاكَ فَاثْبُتْ حَتّٰى تَسْمَعَ مَايَقُوْلُ، ثُمَّ ائْتِنِيْ فَأَخْبِرْنِيْ، فَلَمَّا خَلَا نَادَاهُ يَا مُحَمَّدُ قُلْ : بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ– حَتّٰى بَلَغَ وَلَا الضَّالِّيْنَ]۔

(یعنی کله چه زه یواځے شم نو د خپل روستو نه یا محمد یا محمد آوازونه اَورم نو زه د یرے نه په منډه شم)) نو ورقه اُووئیل : دا کار مۀ کوه کله چه تا ته هغه (جبریل) راشی نو کلك شه تردے چه د هغه خبرے واورے، بیا ما ته راشه او خبر راکړه نو کله چه نبی ﷺ

یـواځې شو، جبریل ورته آواز اُوکړو یا محمد اُووایه : بسم الله الرحمن الرحیم الحمد لله رب العالمین تر ولا الضالین پورې) ۔ نو پدې روایت کښې خپله دا خبره معلومه شوه چه فاتحه د دغه زمانې نه روستو نازله ده۔ او پس ددې نه چه نبی ﷺ ورقه ته راغلې وو او پس د هغې نـه چـه د خپـل ځـان نه روستو به ئې آوازونه آوریدل او پس د هغې نه چه ورقه ورته مشوره ورکړه چه ددې آواز په وخت کښې منډه نهٔ کوی او هغه خبرې واوری کومې چه ورته کیږی۔ نـو ددې نـه دا نـهٔ لازمیږی چه فاتحه د ټولو نه رومبنې سورت دې۔ په اولیت حقیقی سره۔ ددې وجه نه امام نوویؒ فرمائی :

[وَاَمَّـا قَـوۡلُ مَنۡ قَالَ اَوَّلُ مَا نَزَلَ الۡفَاتِحَةُ فَبُطۡلَانُهٗ اَظۡهَرُ مِنۡ اَنۡ يُّذۡكَرَ وَاللهُ اَعۡلَمُ] [شرح مسلم کتاب الایمان باب بدء الوحی]۔

(ځکه چه دا قـول کـوی چه سورة الفاتحه د ټولو نه اول نازل شویدې نو ددې باطل والې دومره واضح دې چه ذکر کولو ته ئې ضرورت نشته) او حافظ ابن حجرؒ او بدر الدین عینیؒ هم دې قـول ته مرسل او شاذ وئیلې دې او وئیلی دی چه محفوظ روایت هغه دې کوم کښې چه دی چه اقرأ باسم ربك اول نازل شویدې۔

امام بیهقیؒ وئیلی دی : [فَهٰـذَا مُنۡقَطِعٌ فَاِنۡ كَانَ مَحۡفُوۡظاً فَيَحۡتَمِلُ اَنۡ يَّكُوۡنَ خَبَراً عَنۡ نُزُوۡلِهَا بَعۡدَ مَا نَزَلَتۡ عَلَيۡهِ اقۡرَاۡ بِاسۡمِ رَبِّكَ وَيَا اَيُّهَا الۡمُدَّثِّرُ وَاللهُ اَعۡلَمُ] [دلائل النبوة ۲/۲ ۳]۔

(اول خو دا روایت منقطع دې لیکن که محفوظ شی نو ممکن ده چه پدې کښې د سورة اقرأ او سورة مدثر دواړو د نازلیدو نه بعد د فاتحې د نازلیدو خبر ورکړې شوې وی)۔

## ۱۵- : ما هی آخر ما نزل ؟
## د ټولو نه روستنې کوم آیت نازل دې ؟

پـدې بـاره کـښې د علماؤ اختلاف دې، ډیر اقوال دی او دا اختلاف مستند دې اختلاف د آثارو تـه نـو هـر یـو، یـو یو اثر اخستې دې پدې وجه اختلاف پیدا شویدې۔ علامه زرقانیؒ پکښې (۱۰) لس اقوال ذکر کړیدی۔

د ابـن عبـاس نـه دوه روایتـونـه نـقل دی (۱) یو دا چه : [آخِـرُ آيَةٍ نَـزَلَـتۡ آيَةُ الرِّبَا] [صحیح بـخـاری کتاب التفسیر البقره] ۔ (آخـری آیت چـه نـازل شویدې هغه د ربا (سود) والا آیت

دے)۔ یعنی [یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا اتَّقُوا اللّٰهَ وَذَرُوْا مَا بَقِیَ مِنَ الرِّبَا] (البقره)۔

او دا روایت مسند احمد او ابن ماجه کښې د عمر فاروق او بیهقی کښې د ابن عمر نه نقل دے۔

(۲) دویم دا چه آخری آیت : ﴿ وَاتَّقُوْا یَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِیْهِ اِلَی اللّٰهِ ثُمَّ تُوَفّٰی کُلُّ نَفْسٍ مَا کَسَبَتْ وَهُمْ لَایُظْلَمُوْنَ ﴾ (البقره: ۲۸۱) اِنَّهَا آخِرُ آیَةٍ نَزَلَتْ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ]

[السنن الکبریٰ للنسائی کتاب التفسیر وتفسیر ابن جریر]۔

(اُوویرېږئ د هغه ورځې نه چه په هغې کښې به تاسو الله تعالیٰ ته واپس کولے شئ بیا به هر نفس ته د هغې د عمل پوره بدله ورکولے شي او په هغوی به هیڅ ظلم نشي کیدے) دا آخری آیت دے چه په رسول الله ﷺ باندے نازل شویدے) او په روایت د ابن ابی حاتم کښې د سعید بن جبیر نه ورسره دا زیادت راغلے دے : [وَعَاشَ النَّبِیُّ ﷺ بَعْدَ نُزُوْلِهَا تِسْعَ لَیَالٍ، ثُمَّ مَاتَ لِلَیْلَتَیْنِ خَلَتَا مِنْ رَبِیْعِ الْاَوَّلِ] [فتح القدیر للشوکانی ۱/ ۰۶] وصفوة التفاسیر و ابن کثیر]۔

(او نبی ﷺ ددے د نازلیدو نه روستو نهه شپے ژوند تیر کړو او بیا وفات شو چه د ربیع الاول دوه شپے تیرے شوے وے)۔

(۳) د سعید بن المسیبؒ نه ابن جریرؒ نقل کړیدی او د ابن شهاب الزهریؒ نه هم منقول دی چه د عرش نه راتلونکے آخری آیت آیة المداینه دے۔ یعنی ﴿ یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا اِذَا تَدَایَنْتُمْ بِدَیْنٍ ﴾ [البقره] (الاتقان ۱/ ۸۷] وابن جریر سورة البقره آیت ۲۸۱] [۳/ ۱۱۵]۔

علامه زرقانیؒ د سیوطیؒ نه ددے درے واړو روایاتو تطبیق داسے نقل کړیدے چه ظاهر دا ده چه دا درے واړه آیتونه یو ځل نازل شویدی لکه څنګه چه په مصحف کښې په ترتیب سره لیکلے شویدی ځکه دا ټوله یوه قصه ده نو هر یو د بعض نه خبر ورکړیدے چه دا آخر دے او دا ټولے خبرے صحیح دی۔

لیکن علامه زرقانیؒ وئیلی دی چه د زړه اطمینان پدے باندے کیږی چه پدے درے واړو کښې آخری نزول والا آیت (واتقوا یوماً) آیت دے۔

○ یو خو پدے وجه چه په روایت د ابن ابی حاتم کښې ورسره دا الفاظ دی چه ددے نه روستو نبی ﷺ نهه ورځې پس وفات شویدے۔ او دغه نورو سره دا خبره نشته۔

○ دویم دا چه ددے معنیٰ دے خبرے ته اشاره کوی چه دا دے آخری آیت شی ځکه چه پدغه آیت کښې تیزی ورکول دی په تیاری کولو د آخرت دپاره او الله تعالیٰ ته رجوع ئے ذکر کړیده او د عملونو بدله پکښې ذکر ده۔ نو مناسب ده چه دا دے آخری آیت شی۔ او ددے نه

علاوه آیتونو ته چه آخری وئیلے شویدی نو هغه یا اضافی آخری دی یا مقید دی په بعض احکامو پورے لکه وئیل شویدی چه [یستفتونك قل الله یفتیکم فی الکلالة] آخری آیت دے یعنی په باب د میراث کښ دا آخری دے۔

[انظر مناهل العرفان، والاتقان وعلوم القرآن، ومباحث فی علوم القرآن]۔

## آخری نازل شوے سورت :

د اول او آخری نازل شوی آیت متعلق بحث خو تا اُوپیژندلو او دا هم معلومه شوه چه اول سورت سورة العلق نازل شویدے۔ لیکن آخری کوم سورت نازل شویدے۔ نو عبد الله بن عباسؓ فرمایلی دی چه [آخِرُ سُوْرَةٍ نَزَلَتْ اِذَا جَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ] [صحیح مسلم کتاب التفسیر رقم الحدیث : ۳۰۲٤) والنسائی رقم ۱۷۱۳]۔

(آخری سورت چه نازل شویدے هغه سورة النصر دے)

او بیهقیؒ او بزارؒ د ابن عمر نه روایت نقل کړیدے چه د هغے نه معلومیږی چه دا په مِنیٰ کښ په (۱۲) ذی الحجه نازل شوے وو۔ او ددے نه روستو رسول الله ﷺ قصواء اُوښه باندے سور شو او د جمره عقبه سره ئے خطبه ورکړه)۔ [کشف الاستار عن زوائد البزار کتاب الحج باب خطبة المنی] [۳۳/۲] ۔

OOOOOOOO

## ۱٦ - الامر السادس عشر : تدوين القرآن وجمعه

(شپاړسم بحث : د قرآن کريم جمع کول او د هغے په کتابی شکل کښ امت ته پيش کول)۔

دا خبره هم ډيره ضروری ده چه معلومه شی چه قرآن کريم څنګه جمع شويدے او د جمع کيدو کوم ادوار پدے باندے تير شويدی؟۔

د قرآن مجيد او احاديثو نه داسے ښکاره کيږی چه د قرآن کريم جمع او تدوين دوه طريقو سره شويدے۔

(۱) جمع فی الصدور (په سينو د انسانانو کښ جمع کيدل)۔

(۲) دويم : جمع فی السطور (په پاڼو کښ راجمع کيدل)۔

چونکه الله تعالیٰ د قرآن کريم په سينه د رسول الله ﷺ کښ د راجمع کولو وعده کړے وه پدے قول خپل سره : ﴿إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ﴾ [القيامة : ۱۷]۔ (يقيناً په مونږ باندے راجمع کول د قرآن دی ستا په زړه کښ او بيا د هغے لوستل دی ستا په ژبه)

نو الله تعالیٰ دا وعده پوره کړه او د رسول الله ﷺ د زړه په تختئ باندے ئے قرآن کريم پوخ اُوليکلو لکه څنګه چه ورته جبريل ؑ وئيلے وو۔ او دِغه شان ددے د قراء ت د پخولو دپاره به جبريل ؑ رسول الله ﷺ ته په هر کال د رمضان په مياشت کښ راتلو او د قرآن کريم دور به ئے ورته کولو۔ او په آخری رمضان کښ ورسره دوه ځل دورکړے وو۔ لکه د عبد الله بن عباسؓ نه نقل دی :

[كَانَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ يَلْقَاهُ فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ فَيُدَارِسُهُ الْقُرْآنَ] [بخاری باب بدء الوحی]۔

(جبريل به هره شپه په رمضان کښ رسول الله ﷺ ته تشريف راوړو او هغه ته به ئے د قرآن کريم دور کولو)۔

او ابو هريره ﷺ فرمائی : [كَانَ يَعْرِضُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ الْقُرْآنَ كُلَّ عَامٍ مَرَّةً فَعَرَضَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ فِي الْعَامِ الَّذِيْ قُبِضَ فِيْهِ]۔

(جبريل به هر کال نبی ﷺ باندے يو ځل قرآن کريم پيش کو لو او په کوم کال چه وفات شو نو په هغه کال ئے دوه ځل پيش کړو)۔

لهذا نبی ﷺ سيد القراء والحفاظ وو۔ او د قرآن کريم د حفاظت اوله ذريعه جمع فی

الصدور (سينو کښې جمع کول) وو. پدې وجه الله تعالىٰ د دغه زمانے خلقو ته هم داسے حافظے ورکړے وے چه د هغے په امت کښې هيڅ مثال نشته او خاصکر کله ئے چه توحيد او ايمان قبول کړو نو په هغے کښې نورانيت او رڼړا نوره هم زياته شوه لکه الله تعالىٰ د هغے نه داسے تعبير کړيدے :

﴿ بَلْ هُوَ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ فِيْ صُدُوْرِ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْعِلْمَ وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا إِلَّا الظَّالِمُوْنَ ﴾ [العنكبوت ٤٩].

(بلکه دا قرآن واضح آيتونه دی د هغه خلقو په سينو کښې چه هغوی ته علم او پوهه ورکړے شويده او انکار نۀ کوی زمونږ د آيتونونه مګر هغه خلق چه ظالمان دی)

حسن بصریؒ ددغه آيت لاندے وئيلی دی : [ أُعْطِيَتْ هٰذِهِ الْأُمَّةُ الْحِفْظَ وَكَانَ قَبْلَهَا لَا يَقْرَؤُوْنَ كِتَابَهُمْ إِلَّا نَظَراً ] [تفسير القرطبی [٣٣٥/٣) وابن كثير وزاد المسير والماوردی فی النكت] .

(دے امت ته د قرآن د حفظ نعمت ورکړے شويدے او ددے نه مخکښې خلقو به خپل کتابونه په کتلو سره وئيل).

نو د قرآن کريم د حفاظت اصلی ځايونه د حفاظو او قراؤ سينے وے. لکه دا په يو اُوږد روايت د عياض بن حمار مجاشعی ﷺ کښې راغلی دی :

[وَقَالَ إِنَّمَا بَعَثْتُكَ لِأَبْتَلِيَكَ وَأَبْتَلِيَ بِكَ وَأَنْزَلْتُ عَلَيْكَ كِتَابًا لَا يَغْسِلُهُ الْمَاءُ تَقْرَؤُهُ نَائِمًا وَيَقْظَانَ] [مسلم كتاب الجنة باب الصفاتِ الَّتِيْ يُعْرَفُ بِهَا فِي الدُّنْيَا أَهْلُ الْجَنَّةِ وَأَهْلُ النَّارِ رقم : [٧٣٨٦].

(او الله تعالىٰ اُوفرمايل : يقيناً ما ته ليږلے ئے دے دپاره چه زه ستا امتحان هم اُوکړم او ستا په ذريعه په خلقو هم امتحان اُوکړم، ما په تا باندے داسے کتاب نازل کړيدے چه هغه اُوبه نشی وينځلے چه هغه به ته په اُودو او په ويښه دواړو حالتونو کښې لولے).

مطلب دا چه قرآن کريم به ستا په زړه او ستا د امت د حافظانو په زړونو باندے ليکلے شوے وی چه هغه په اُوبو سره نۀ وينځلے کيږی.

او په مرفوع حديث د عقبه بن عامر ﷺ کښې داسے راغلی دی :

[لَوْ أَنَّ الْقُرْآنَ فِيْ إِهَابٍ ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ مَا احْتَرَقَ] [مسند احمد ١٥٥/٤] صحيح الجامع [٥٢٦٦]. (که قرآن کريم په څرمن کښې وی او بيا هغه اُورته ګوزار کړے شی نو اُور به ئے اُونۀ سيزی).

ددے يو مطلب حافظ ابن کثيرؒ داسے بيان کړيدے چه قرآن کريم د حافظانو په سينو کښې محفوظ دے او په ژبو په آسانئ سره لوستلے کيږی پدے وجه که په څرمن کښې ليکلے

شوے پاتےے اُوسوزلے شی نو قرآن ضائع او نایاب کیږی نۀ بلکه د حافظانو په زړونو کښ به محفوظ وی۔ [تفسیر ابن کثیر ۲۹۵/۶]

پدے وجه صحابه کرامو به دغه کتاب د رسول الله ﷺ نه یادولو او بیا پدے کښ الله تعالیٰ بعض صحابه کرامو ته ډیر مهارت ورکړے وو د بعضو نه۔ رسول الله ﷺ هم په یو حدیث کښ داسے فرمایلی دی: [خُذُوا الْقُرْآنَ مِنْ اَرْبَعَةٍ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ وَسَالِمٍ وَمُعَاذٍ وَاُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ] [بخاری کتاب فضائل القرآن]۔

(قرآن د څلور کسانو نه زده کوئ، د عبد الله بن مسعود نه، د سالم بن معقل نه، د معاذ بن جبل نه او د ابی بن کعب نه) (رضی الله عنهم اجمعین) ۔

چه پدے کښ اولنی دواړه د مهاجرینو نه وو او معاذ او ابی بن کعب د انصارو نه وو۔ او بیا په صحابه کرامو کښ ډیر حافظان موجود وو لیکن ددے کسانو ډیر خصوصیت وو پدے وجه دا نفی د نورو نۀ کوی څکه د نورو روایاتو نه ابو الدرداء او ابوزید رضی الله عنهما هم معلومیږی او دغه شان نور صحابه کرام هم۔ لکه امام ابوعبید قاسم بن سلام متوفی (۲۲٤ هـ) په (القراء ات) کتاب کښ د هغه صحابه کرامو نومونه ذکر کړیدی چه هغوی د قرآن کریم حافظان وو او دا کتاب چونکۀ اُوس نایاب دے لیکن علامه علم الدین سخاوی متوفی (٦٤۳ هـ) د هغه کتاب د مخطوطے نه هغه نومونه نقل کړیدی چه هغه دا دی:

۱ – ابوبکر صدیق۔
۲ – عمر بن الخطاب۔
۳ – عثمان بن عفان۔
٤ – علی بن ابی طالب۔
٥ – طلحه بن عبید الله ۔
٦ – سعد بن ابی وقاص۔
۷ – عبد الله بن مسعود۔
۸ – سالم مولی ابی حذیفه۔
۹ – حذیفه بن یمان۔
۱۰ – عبد الله بن عباس۔
۱۱ – عبد الله بن عمر۔

۱۲- عبد الله بن عمرو۔
۱۳- عمرو بن عاص۔
١٤- ابو هريره۔
۱۵- معاویه بن ابی سفیان۔
١٦- عبد الله بن زبیر۔
۱۷- عبد الله بن سائب۔
دا خو د مهاجرينو نومونه وو۔ او د انصارو دا کسان وو:
۱۸- ابی بن کعب۔
۱۹- معاذ بن جبل۔
۲۰- ابو الدرداء۔
۲۱- زید بن ثابت۔
۲۲- مجمّع بن جاریه۔
۲۳- انس بن مالك۔
او د ازواج مطهراتو نه درے نومونه ئے ذکر کړیدی:
٢٤- عائشه بنت ابی بکر صدیق۔
۲۵- حفصه بنت عمر۔
٢٦- ام سلمه۔
او علامه حافظ ابن الجزرئ متوفی (۸۳۳هـ) د دغه نومونو سره ۲۷- د ابوزید رضی الله عنه نوم زیات کړیدے۔
او علامه جلال الدين سيوطئ متوفی (۹۱۱هـ) اُووه نومونه نور ذکر کړیدی:
۲۸- عباده بن صامت۔
۲۹- فضاله بن عبيد۔
۳۰- مسلمه بن مخلد۔
۳۱- تمیم داری۔
۳۲- عقبه بن عامر۔
۳۳- ابو موسی اشعری۔
٣٤- ام ورقه بنت عبد الله۔

لیکن پدے تہولو کښې زیات مشهور او مهارت لرونکی اُووه صحابه کرام وو ـ عثمان بن عفان، علی، ابی بن کعب، زید بن ثابت، ابن مسعود، ابوالدرداء او ابو موسی اشعری رضی الله عنهم۔

[الاتقان فی علوم القرآن: ۲۲۸/۱] وعلوم القرآن للشیخ گوهر رحمان [۲۹۰/۱]۔

او ددے نه علاوه ډیر صحابه کرام هم وو۔ لکه اَوویا (۷۰) کسان په بئر معونه کښې شهیدان شوی وو۔ او اوه سوه (۷۰۰) کسان په جنګ د مرتدینو کښې په شهادت باندے مړه شو۔ او دغه شان په احد کښې ډیر قاریان شهیدان شوی وو۔ دا صرف د مشهورو صحابه کرامو نومونه ذکر شویدی۔ دا ټول ددے خبرے دلیل دے چه الله تعالیٰ په ابتداء کښې د قرآن کریم تختے د رسول الله ﷺ او د هغه د صحابه کرامو زړونه ګرځولی وو۔

او دا اولنئ جمع د قرآن وه۔

## تدوین قرآن په زمانه د نبوت کښې :

قرآن کریم اول کښې الله تعالیٰ د نبی ﷺ او د صحابه کرامو په زړونو کښې محفوظ ساتلے وو لیکن چونکه د روستو امت دپاره ددے تعلیم او تفهیم په یو کتابی شکل کښې هم ضروری وو چه هغوی ترے فائده واخلی۔ نو ددے وجه نه د رسول الله ﷺ په پاك دور کښې هم د قرآن کریم د لیکلو ابتداء شوے وه او دا کار ډیر صحابه کرامو ته حواله شوے وو۔ لکه حافظ ابن حجرؒ لیکلی دی : چه په مکی دور کښې د ټولو نه مخکښې د کتابت ذمه واری د قریشو نه عبد الله بن سعد بن ابی السرح ته حواله شوے وه او په مدنی دور کښې د کتابت خدمت ابی بن کعب کړے وو۔

[فتح الباری ۳۹۷/۱]۔

په مکه کښې به هم د قرآن کریم لیکل کیدل لکه د سیرت او احادیثو په کتابونو کښې د عمر فاروق د اسلام راوړلو واقعه مشهوره ده چه د هغه خور (فاطمه بنت خطاب) او اَوښے (سعید بن زید) یوه صحیفه چه په هغے کښې سورة طه لیکلے شوے وه لوستله او عمر فاروق پرے ورداخل شو او د هغے مطالبه ئے ترے اُوکړه چه دا ما له راکړئ هغوی د ورکولو نه انکار اُوکړو الی آخر القصه۔ دا هم دلیل دے چه مکه کښې هم د رسول الله ﷺ وحی لیکلے شوے وه۔

حافظ ابن عبد البرؒ لیکلی دی چه : ((د وحی لیکونکی (کاتبان) صحابه کرام (۲۳) وو۔

لیکن دا خدمت په عمومی طور سره ابی بن کعب او زید بن ثابت به کولو۔ او زید بن ثابت خو به اکثر د نبی ﷺ سره حاضر اُوسیدو))۔

[الاستیعاب لابن عبد البر والاصابة]۔

حافظ ابن کثیر په البدایه والنهایه (۳۳۹/۵) کښ د (۲۳) واړه صحابه کرام ذکر کړیدی او د هغوی تفصیلی حالات ئے هم بیان کړیدی۔

دکتور محمد مصطفی الاعظمی یو کتاب لیکلے دے په نوم د [کُتَّابُ النَّبِیِّ] یعنی د نبی ﷺ کاتبان) چه په هغے کښ ئے (٤٥) نو مونه ذکر کړیدی۔

چه رسول الله ﷺ به پدے تولو کاتبانو باندے لیکل کول۔ لیکن ډیر مشهور پدے کښ زید بن ثابت وو چه ده ته مطلق کاتب النبی ﷺ وئیلے شی۔دا د انصارو د بنو النجار قبیلے نه وو دا د خزرج قبیلے یو شاخ وو۔ ددهٔ پلار د هجرت د نبی ﷺ نه (٦) شپږ کاله مخکښ د بُعاث په جنګ کښ قتل شوے وو۔ رسول الله ﷺ چه مدینے ته تشریف راوړو نو په هغه وخت کښ ددهٔ عمر (۱۱) یولس کاله وو او د نبی ﷺ د وفات په وخت ددهٔ عمر (۲۱) کاله وو۔ ډیر ذهین ځوان وو۔ کله چه رسول الله ﷺ مدینے ته راغلو نو ددهٔ د خاندان خلقو دا رسول الله ﷺ ته پیش کړو چه دے هلك ستا د راتلو نه مخکښ (۱٦) یا (۱۷) سورتونه حفظ کړیدی۔

بیا دهٔ ته نبی ﷺ فرمایلی وو چه عبرانی ژبه زده کړه دے دپاره چه د هغوی خطوط په عربئ کښ ما ته ترجمه کړے او زما خط هغوی ته په عبرانئ کښ اُولیکے نو دهٔ په پنځلس ورځو کښ هغه ژبه زده کړه۔ [کنز العمال]۔

په غزوه بدر او احد کښ ئے د کم عمرئ د وجه نه شرکت نهٔ دے کړے او باقی تولو غزواتو کښ شریك شویدے۔

کله چه دا وفات شو نو ابن عباس رضی الله عنهما اُوفرمایل: [لَقَدْ دُفِنَ الْيَوْمَ عِلْمٌ كَثِيرٌ] [تهذیب الکمال للمزی٦/٤٣٢]۔

(نن ورځ ډیر غټ علم دفن کړے شو)۔

ابو هریره رضی الله عنه داسے اُوفرمایل: [مَاتَ الْيَوْمَ حِبْرُ الْأُمَّةِ وَعَسَى اللهُ أَنْ يَجْعَلَ فِي ابْنِ عَبَّاسٍ مِنْهُ خَلَفاً] [تهذیب] ۔ (نن ورځ د امت ډیر غټ عالم وفات شو لیکن امید دے چه الله تعالیٰ به ابن عباس ددهٔ جانشین جوړ کړی)۔

عثمان بن عفان رضی الله عنه د ابن عباسؓ د یو سوال په جواب کښ وئیلی وو: [كَانَ النَّبِيُّ ﷺ تَنْزِلُ

عَلَيْهِ الآيَاتُ فَيَدْعُوْ بَعْضَ مَنْ كَانَ يَكْتُبُ لَهُ وَيَقُوْلُ لَهُ ضَعْ هٰذِهِ الآيَةَ فِي السُّوْرَةِ الَّتِيْ يُذْكَرُ فِيْهَا كَذَا وَكَذَا وَتَنْزِلُ عَلَيْهِ الآيَةُ وَالآيَتَانِ فَيَقُوْلُ مِثْلَ ذٰلِكَ] [ترمذی کتاب التفسير سورة التوبة]۔

(نبی ﷺ باندے به چه څه آیتونه نازل شو نو هغه به بعض خپل لیکونکی راطلب کړل او هغه ته به ئے اُوفرمایل : دا آیت په هغه سورت کښ اُولګوه کوم کښ چه فلانئ فلانئ خبره ذکر کیږی۔ او که یو آیت یا دوه آیتونه به نازل شو نو هم کاتب ته به ئے دغه حکم فرمایلو)۔

او ددے وجه نه رسول الله ﷺ دا منع فرمائیلے وه چه د قرآن نه علاوه نور څه ما نه مه لیکئ : [لَاتَكْتُبُوْا عَنِّيْ وَمَنْ كَتَبَ عَنِّيْ غَيْرَ الْقُرْآنِ فَلْيَمْحُهُ وَحَدِّثُوْا عَنِّيْ وَلَاحَرَجَ] [صحيح مسلم كتاب الزهد باب التَّثَبُّتِ فِي الْحَدِيْثِ وَحُكْمِ كِتَابَةِ الْحَدِيْثِ رقم : ۷۷۰۲] ۔

(ما نه لیکل مه کوئ او چا چه ما نه د قرآن نه غیر څه لیکلی وی نو هغه دِے ختم کړی، البته ما نه حدیثونه بیانوئ پدے کښ هیڅ حرج نشته)۔

امام نوویؒ او خطابیؒ او حافظ ابن القیمؒ وغیره محدثینو لیکلی دی چه دا منع په ابتداء د اسلام کښ وه او حکمت ئے دا وو چه احادیث چرته د قرآن کریم سره خلط او ګډوډ نشی لیکن روستو زمانه کښ چه کله دا خطره ختمه شوه او قرآن کریم مکمل شو او خلقو په لیکلو کښ مهارت حاصل کړو نو دا ممانعت ختم شو او د حدیثونو د لیکلو اجازت ئے ورکړو لکه بعض صحابه کرامو ته ئے لیکل هم کړی دی : [اُكْتُبُوْا لِاَبِيْ شَاهٍ]۔ نبی ﷺ څه احکام او احادیث په خطبه د فتح د مکه کښ بیان کړل چه په هغے کښ د مکے او حرم مکی د احترام متعلق اوامر او نواهی وو نو یو صحابی ابوشاه د یمن اُوسیدونکی اُوفرمایل : دا ما له اُولیکه چه زه ئے خپل قوم ته بیان کړم نو نبی ﷺ کاتبانو ته حکم اُوکړو چه دهٔ دپاره ئے اُولیکئ) [ابو داود والترمذی] ۔نو دغه منع د سداً للذريعه په درجه کښ وه۔

او رسول الله ﷺ به ددے په باره کښ دومره احتیاط او اهتمام کولو چه کله به ئے په کاتب باندے قرآن اُولیکلو نو بیرته به ئے ترے اوریدو۔ لکه امام طبرانی متوفی (۳٦۰ هـ) د زید بن ثابت نه نقل کړیدی چه هغه فرمائی : [كُنْتُ اَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَكَانَ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ اَخَذَتْهُ بُرَحَاءُ شَدِيْدَةٌ وَعَرِقَ عَرَقاً شَدِيْدًا مِثْلَ الْجُمَانِ ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَكُنْتُ اَدْخُلُ عَلَيْهِ بِقِطْعَةِ الْكَتِفِ اَوْ كِسْرَةٍ فَاَكْتُبُ وَهُوَ يُمْلِيْ عَلَيَّ فَمَا اَفْرُغُ حَتّٰى تَكَادَ رِجْلِيْ تَنْكَسِرُ مِنْ ثِقَلِ الْقُرْآنِ وَحَتّٰى اَقُوْلَ لَااَمْشِيْ عَلٰى رِجْلِيْ اَبَداً فَاِذَا فَرَغْتُ قَالَ: اِقْرَأْ فَاَقْرَأُهُ، فَاِنْ كَانَ فِيْهِ سَقْطٌ اَقَامَهُ، ثُمَّ اُخْرِجُ بِهِ اِلَى

النَّاسِ] [المعجم الاوسط ۲۵۷/۲[ رقم[۱۹۱۳] ۔
(ما بـه وحـی د رسـول الله ﷺ دپاره لیـکـلـه او کلـه چـه بـه رسول الله ﷺ باندے وحی نـازلیده نو د هغه به سخته گرمی کیده، چه جسم مبارك به ئے سخت خوله شو او خولے به تـرے د ملغلرو په شان روانے وے۔ کله چه به ترے دا کیفیت ختم شو نو ما به د شا یو هډوکے یا د کـانـړی کـومه ټکړه راواخسته او د هغے سره به دننه په هغه ورداخل شوم نو هغه به ما تـه هـغـه بیـان کـړه کـلـه چه به زه فارغ شوم نو د قرآن د لیکلو بوج به مے دومره محسوس کـړے وو چه خپـه بـه مے نزدے وه چه ماته شي او تردے چه ما به وئیل چه زه به پډے خپه هیـڅ کله اُونه گرځم نو کله چه به فارغ شوم رسول الله ﷺ به اُوفرمایل : دا ما ته اُووایه، ما بـه هـغـه ته اُولوسته نو که د لیکلو نه به څه لفظ غورځیدلے وو نو هغه به ئے برابر کړو بیا به ما خلقو ته را اُوویستو)۔
دا وو تدوین د قرآن په عهد نبوی کښ۔

## تدوین قرآن په عهد صدیقی کښ :

په عهد نبوی کښ اگرکه ټول قرآن کریم په جدا جدا ځیزونو کښ لیکلے شوے وو او دغه ځیـزونـه مـحفوظ هم وو لیـکن په یو مصحف کښ نهٔ وو راجمع شوے یعنی کتابی شکل کښ نهٔ وو موجود ددے دپاره علماء کرامو ډیرے وجهے ذکر کړیدی :
۱ – یـو دا چـه د صـحـابـه کرامو حافظے انتهائی مضبوطے وے او بل د قرآن کریم شوق ئے هم زیات وو، نو په کتابی شکل باندے مرتب کړلو ته ضرورت نهٔ وو راپیښ شوے۔
۲ – دویـمه وجه : [اِنَّ النَّبِیَّ ﷺ کَانَ بِصَدَدِ اَنْ یَنْزِلَ عَلَیْهِ الْوَحْیُ بِنَسْخِ مَا شَاءَ اللّٰهُ مِنْ آیَةٍ اَوْ آیَاتٍ] (د نزول قرآن سلسله جاره وی او د وحی دروازه لا بنده شوے نهٔ وه او هر وخت به نوی نوی احکام نازلیدل نو کیدے شی چه بعض آیتونه منسوخ او پورته شی د تلاوت نه نکه څنگه چه بعض احکام منسوخ کولے شی نو ددے وجه نه کتابی شکل ورکول مناسب نهٔ معلومیدل)
[مناهل العرفان ۱۷۹/۱] [والامام البقاعی ومنهاجه فی بلاغة القرآن ۱۸۰/۱ لمحمود توفیق] ۔
۳ – دریـم دا چـه قـرآن کـریم خو په یو ځل نهٔ دے نازل شوے بلکه په (۲۳) کاله کښ نازل دے۔ نـو کـه چرته قرآن کریم په یو مصحف کښ یا په ډیرو مصاحفو کښ لیکلے شوے وے نـو بیـا کـه چرته نسخ راتلے یا څه سبب راپیښ کیدلے نو اول مصحف به ئے بدلولے او بل به

ئے تیارولے نو دے کار به ډیر مشکلات راپیدا کړی وے او حال دا چه هغه زمانه کښ د کتابت آلات دومره آسان نهٔ وو۔

لیکن کله چه رسول الله ﷺ وفات شو او د قرآن کریم نزول مکمل شو او د وحی سلسله بنده شوه او صحابه کرام د رسول الله ﷺ د صحبت نه محروم شو۔ او خلافت ابوبکر صدیق ﷺ ته حواله شو نود هغه په دور کښ گران مشکلات او حوادث پیدا شو او په (۱۲) هجری کښ د جنگ یمامه واقعه راغله چه په هغے کښ ډیر قاریان صحابه کرام او حافظان د قرآن کریم شهیدان شو۔ چه تقریباً اَویا کسانو ته د هغے تعداد رسیږی او بعض وائی چه پنځه سوه کسان وو۔ د مشرانو نه سالم مولی ابی حذیفه هم شهید شو۔ نو پدے سره مسلمانان هیبت زده شو او اول سوچ او فکر د عمر فاروق سره پیدا شو، الله تعالیٰ ورته په زړه کښ القاء او الهام اُوکړو چه دا خو حافظان د قرآن کریم وفات کیږی نو پدے سره به قرآن کریم ضائع شی نو ابوبکر صدیق خواته ورغلو او دا مشوره ئے ورکړه چه قرآن کریم راجمع کړه ځکه خطره ده چه قرآن کریم د قاریانو او حافظانو په مرگ سره ضائع نشی۔

نو ابوبکر صدیق اول کښ پدے خبره کښ تردد اُوکړو او دا ئے اُووئیل چه زه څنگه هغه کار اُوکړم چه هغه د رسول الله ﷺ په زمانه کښ نهٔ دے شوے۔ یریدو چه هسے نه چه پدے سره په دین کښ تبدیلی یا نوے ایجاد او اختراع او بدعت پیدا نشی لیکن د عمر د بار بار اصرار کولو نه روستو هغه ته مصلحت ښکاره شو او ذهن ئے کولاؤ شو نو قناعت ئے راغلو چه همدا فکر حق دے او الله تعالیٰ د ابوبکر صدیق دے کار ته سینه کولاوه کړه چه د قرآن کریم راجمع کول د قرآن کریم د حفاظت یوه مفیده ذریعه ده او د ضائع کیدو او تحریف کیدو نه د بچ کیدو وسیله ده۔

او مخکښ نه د رسول الله ﷺ هم د قرآن کریم د لیکلو واقعات موجود وو نو دا کار بدعت نهٔ وو۔ بلکه د قرآن د حفاظت یو نوے تدبیر وو او د دین د دعوت او د هغے د اشاعت او حفاظت دپاره نوی آلات او تدابیر اختیارول بدعت نهٔ وی۔

امام ابوعبد الله المحاسبیؒ په کتاب ((فهم السنن)) کښ لیکلی دی چه علامه زرقانیؒ د هغه نه په ((مناهل العرفان)) کښ نقل کړیدی چه د قرآن لیکل څه بدعت نهٔ وو ځکه چه نبی ﷺ ددے په لیکلو حکم کړے وو لیکن دا د رسول الله ﷺ په زمانه کښ په رقعو او د حیوانانو د ملا په هډوکو او پلو باندے لیکلے شوے وو او ابوبکر صدیق صرف یو مکان نه بل مکان ته په یو ځائے نقل کړو نو ددے مثال داسے شو لکه چه دا د رسول الله ﷺ په

کورکښې منتشر په پاڼرو کښې پروت وی او یو تن ئې یو ځائې کړی او په یو تار باندې ئې اُوتړی دې دپاره چه څه شې ترې ضائع نشی. آه.

[مناهل العرفان ۱/۱۸۰]

بلکه دا چه مرفوع احادیثو کښې د [اَوْ مُصْحَفًا وَرَّثَهٗ] تذکرې ډیرې راغلی دی.

نو ابوبکر صدیق ددې خواهش پوره کولو دپاره شروع شو نو پدې کار باندې مقررولو دپاره ئې یو سړې کتلو نو یو غوره صحابی ورته ملاؤ شو چه هغه زید بن ثابت وو ځکه چه دا خپله حافظ قرآن هم وو او د رسول الله ﷺ کاتب الوحی هم وو، او دا ددې کار دپاره مستعد او تیار هم وو ځکه چه ورع او امانت او ذینداری او عقلمندی ئې پوره وه نو د قرآن راجمع کولو واقعه خپله د زید بن ثابت په وینا سره په صحیح بخاری کښې داسې راغلې ده :

«زید بن ثابت وائی چه په جنګ کښې یمامه کښې د صحابه کرامو د شهادت نه پس ابوبکر صدیق زه راوغوختم، زه چه کله د هغه خوا ته راغلم نو هلته عمر هم موجود وو، ابوبکر اُووئیل چه عمرؓ وائی چه په جنګ یمامه کښې ډیر قاریان شهیدان شویدی که دغه شان په مختلفو معرکو کښې قاریان شهیدان کیږی نو زه یریږم چه د قرآن زیاته حصه به زمونږ د لاس نه اُووځی، زه خو دا مناسبه ګنړم چه ته قرآن په یو مصحف کښې د راجمع کولو حکم اُوکړې. ما عمرؓ ته وئیلی وو چه ته هغه کار څنګه کوې چه هغه رسول الله ﷺ نهٔ دې کړې عمرؓ اُووئیل : چه قسم په الله دا کار غوره دې، هغه دا خبره بار بار کوله تردې چه ددې دپاره زما سینه کولاوه شوه او پدې باره کښې زما رایه هغه جوړه شوه کومه چه د عمر رائې وه.

زید بن ثابت وائی چه ابوبکر ما ته اُووئیل چه ته یو عقلمند او هوښیار ځوان ئې زمونږ ستا په مهارت او دینداریٔ کښې هیڅ شك نشته او تا به رسول الله ﷺ دپاره هم قرآن لیکلو. نو بس ته قرآن تلاش کړه او دا راجمع کړه. زید وائی چه قسم په الله که دوی ما باندې غر د یو ځائې نه بل ځائې ته د نقل کولو بوج اچولې وې نو هغه کار به په ما باندې دومره دروند نهٔ وې څومره چه د قرآن جمع کول په ما باندې درون پریوتل. ما اُووئیل تاسو دواړه څنګه هغه کار کوئ چه رسول الله ﷺ نهٔ دې کړې.

نو ابوبکر صدیق اُوفرمایل : [هُوَ وَاللّٰهِ خَیْرٌ]. (قسم په الله دا ښه کار دې) هغه دا خبره بار بار کوله تردې چه الله تعالیٰ زما سینه هغه کار دپاره کولاوه کړه کوم دپاره ئې چه د ابوبکر او عمر سینه کولاوه کړې وه. پس ما د قرآن تلاش شروع کړو، د کجورو د پاڼرو، او د هډوکو او نرو

کانړو نه او د خلقو د سینو نه مے راجمع کولو تردے چه ما د سورة توبه آخری دوه آیتونه (۱۲۸/۱۲۹) د ابوخزیمه انصاری سره اُوموندل او دده نه غیر د بل هیچا سره مے اُونهٔ موندل۔ (یعنی لیکلے شوی مے اُونهٔ موندل) چه هغه د ﴿لَقَدۡ جَاۤءَكُمۡ رَسُولٞ مِّنۡ أَنفُسِكُمۡ﴾ نه آخر پورے دوه آیتونه دی نو دا صحیفے چه قرآن پکښ راجمع کړے شو د ابوبکر صدیق سره محفوظے وے، د هغه د وفات نه بعد د عمر فاروق سره وے۔ او د هغه د وفات نه بعد د ام المؤمنین حفصه بنت عمر رضی الله عنها سره پرتے وے»۔

[صحیح البخاری کتاب فضائل القرآن باب جمع القرآن : رقم ۴۴۰۲]۔

بیا د ابوبکر صدیق په لیکلو د مصحف کښ دا ترتیب وو چه زید ته ئے حکم اُوکړو چه یو خو به هغه لیکلو نه نقل کوی کوم چه د رسول الله ﷺ مخامخ لیکلے شوی وی۔ یعنی دومره احتیاط وو چه صرف په حفظ به اعتماد نهٔ کوی بلکه د خلقو نه به هغه آیتونه قبلوی چه هغه لیکلے شوی هم وی او یاد هم وی۔ ددے وجه نه ئے دا اُوفرمایل : چه د سورة توبے دوه آیتونه مے د ابوخزیمه انصاری سره اُوموندل یعنی صرف هغه لیکلی وو او نور چا نهٔ وو لیکلی ورنه دغه آیتونه خو نورو قراء او حفاظوته هم یاد وو او زید بن ثابت ته هم یاد دی ځکه دا هم قاری دے۔

۲- دویم دا چه ابوبکر صدیق عمر فاروق او زید بن ثابت دواړه پدے مقرر کړل چه تاسو به د چا نه څه نهٔ قبلوئ مګر هله چه دوه ګواهان پرے راوړی۔ لکه ابن ابی داود په (المصاحف) کښ روایت راوړیدے : ابوبکر اُوفرمایل : [اُقۡعُدَا عَلٰی بَابِ الۡمَسۡجِدِ فَمَنۡ جَاۤءَ كُمۡ بِشَاهِدَيۡنِ عَلٰی شَیۡءٍ مِنۡ كِتَابِ اللّٰهِ فَاكۡتُبَاهُ]

[و کذا فی جمال القراء ۱/۱۶۱ للسخاوی]۔

(تاسو دواړه د مسجد په دروازه کینئ او څوک چه د الله تعالیٰ د کتاب نه په کومه حصه دوه ګواهان پیش کړی نو هغه لیکئ)۔

حافظ ابن حجرؒ د دوه ګواهانو یوه توجیه دا ذکر کړیده چه یو ګواه به په حفظ باندے وی او بل ګواه په کتابت باندے چه آوٗ دا د رسول الله ﷺ په زمانه کښ لیکلے شویدے۔

[فتح الباری کتاب فضائل القرآن باب جمع القرآن ۳۸۸/۱۰]۔

دا ډیره لویه کارنامه وه چه پدے طریقه د قرآن حفاظت اُوشو ددے وجه نه علی بن ابی طالب رضی الله عنه به فرمایل :

[أَعۡظَمُ النَّاسِ أَجۡرًا فِی الۡمَصَاحِفِ أَبُوۡبَكۡرٍ رَحِمَ اللّٰهُ أَبَابَكۡرٍ هُوَ أَوَّلُ مَنۡ جَمَعَ بَيۡنَ اللَّوۡحَيۡنِ] [اخرجه

ابن ابی داود فی المصاحف بسند حسن] وجمال القراء و کمال الاقراء للسخاوی و مناهل العرفان]۔

(د مصاحفو په باره کښې د ټولو نه لوئی اجر به ابوبکر صدیق ته ملاویږی، الله تعالیٰ دې په هغه باندې رحم اُوکړی، دا اول هغه شخص دې چه قرآن ئې د دوه تختو ترمینځ راجمع کړې وو)۔

ددې روایت د علیؓ نه معلومه شوه چه کوم اثر د عکرمه کښې چه راغلی دی چه اول راجمع کونکے د قرآن علی بن ابی طالبؓ دې۔ نو هغه ددې روایت مخالف نهٔ دې ځکه چه کیدې شی چه فردی او شخصی مصحف وو او پداسې طریقه نهٔ وو کوم باندې چه اجماع د صحابه کرامو شوې وه او تواتر درجې ته رسیدلې وو۔ او دومره تثبت علمی طریقې سره لیکلې شوې وو کوم چه مخکښې بیان شو۔ او خپله علی بن ابی طالب هم د هغې اقرار کړیدې۔

## جمع د قرآن په عهد عثمانی سنه (۲٤) یا (۲۵) کښې :

هر کله چه د عثمان ﷺ په زمانه کښې فتوحات زیات شو او دا فتوحات ایران، خراسان، روم او د شام لرې علاقو ته اُورسیدل او مسلمانان په ښارونو او اطرافو کښې خواره شو او د نوی خلقو د اسلام په دائره کښې داخلیدل شروع شو نو هرې علاقې والا خلقو د هغه صحابه کرامو قراء تونه کول کوم چه هغوی کښې مشهور شوی وو، شام والو د ابی بن کعب ﷺ، کوفې والو د عبد الله بن مسعودﷺ او بعضو د ابوموسی اشعری ﷺ قرائت کولو نو ددې وجه نه په خلقو کښې د قراء ت او د اداء د حروفو اختلاف پیدا شو چه دا سبب گرځیدو ددې چه په قرآن کښې جګړې شروع کړی او یو بل ته ئې د کفر نسبتونه شروع کړل او هر یو ته خو دا علم نهٔ وو چه قرآن په اُووه حرفونو او لغتونو نازل شویدې او نزدې وه چه دې کار اسلامی نظام ته یوه دچکه او ضرر رسولې وې او دا ضرر مکې او مدینې او حجاز ته هم رسیدلې وې۔

او بله دا چه په زمانه د ابوبکر صدیق کښې د اُووه لغاتونه صرف د قریشو په لغت باندې د مصحف تیارولو ضرورت نهٔ وو محسوس شوې ځکه چه په هغه دور کښې د لغاتو د اختلاف د وجه نه جګړې هم نهٔ وې پیدا شوې او د یهودو او نصاراؤ د فرقه بندئ خطره هم

نۀ وه محسوس شوے، او دغه شان د اسلامی ریاست د مختلفو علاقو مراکزو ته د خلافت په نګرانئ کښې ددے تیار شوی مصحف د نقلونو لیږلو ضرورت هم نۀ وو محسوس شوے۔ بلکه د قرآن کریم د حفاظت دپاره صرف یوه نسخه ئے تیاره کړے وه او هغه ئے په دار الخلافه کښې ایخودے وه۔

ابن ابی داود په (المصاحف) کښې د ابوقلابهؒ نه نقل کړیدی چه هغه فرمائیلی دی : ((کله چه خلافت د عثمان ﷺ شو نو یو مُعلم (استاذ) به خپل شاګرد ته د یو سړی قراء ت خودلو او بل مُعلم به د بل قراء ت خودلو نو کله چه به هلکان د یو بل سره ملاؤ شو نو هغوی به اختلاف کولو تردے چه دا به معلمینو ته پورته شو نو بیا به ئے یو بل ته د کفر نسبتونه کول نو دا خبره عثمان ﷺ ته اُورسیده نو هغه خطبه اُووئیله : [اَنْتُمْ عِنْدِیْ تَخْتَلِفُوْنَ، فَمَنْ نَأیٰ عَنِّیْ مِنَ الْاَمْصَارِ اَشَدُّ اخْتِلَافاً] ۔ (تاسو زما خوا کښې اختلاف کوئ نو څوك چه زما نه وړاندے ښارونو کښې اُوسیږی (یعنی د حجاز مکے او مدینے نه بهر) نو هغوی خو به ډیر اختلافاتو والا وی)۔

[فتح الباری ۳۹۲/۱۰) ومناهل]۔

نو ددے اختلاف د سد باب دپاره عثمان ﷺ ضرورت محسوس کړو چه په یو لغت ئے مصحف تیار کړو څکه که دا اختلاف بند نۀ کړے شی نو د قراء تونو دا تنوع به د یهودیانو په شان د خپل مابین کښې د تضلیل او تکفیر او فرقه بندئ یوه ذریعه جوړه شی نو بس عثمان بن عفان ﷺ د اکابرینو صحابه کرامو سره مشوره اُوکړه او دا فیصله ئے اُوکړه چه قرآن کریم صرف په لغت د قریشو مرتب کوو او ددے نه یو مصحف تیار وو چه د هغے نسخے به په نورو علاقو کښې تقسیمو او چا چه کوم مصحفونه لیکلی وی نو هغه به سیزو چه د هغے د وجه نه په خلقو کښې فتنے پیدا نشی۔ نو پدے فیصله باندے عمل په آخر د سنه (۲٤) او اوائلو د سنه (۲۵ هجری) کښې شروع شو، پدے طریقه چه عثمان څلور بهترین صحابه او ثقات حافظانو ته حکم اُوکړو چه هغوی ډے مصاحفو لیکلو باندے شروع اُوکړی لکه په صحیح بخاری کښې د انس بن مالكؓ په ژبه دا بیان داسے اُوګورئ :

انس بن مالك ﷺ فرمائی: ((حذیفه بن الیمان ﷺ عثمان بن عفان ﷺ ته راغلو چه هغه د شام او عراق والا مجاهدین د "ارمینیه او اذربیجان" د فتح دپاره تیارول نو حذیفه په قراء ت کښې د خلقو اختلاف پریشانه کړے وو نو هغه عثمان ته اُووئیل : چه اے امیر المؤمنین ! مسلمانانو لره د یهودو او نصاراؤ په شان په کتاب کښې د اختلاف کولو نه مخکښې دا

امت سنبال کړه (یعنی د دوی د اصلاح او اتحاد کوم تدبیر اُوکړه) نو بس عثمان بن عفان ام المؤمنین حفصه رضی الله عنها پسے پیغام اُولیږلو چه مونږ ته (د ابوبکر) هغه لیکلے شوے صحیفے راولیږه، مونږ دا په مصاحفو کښې لیکو بیا به ئے تا ته واپس درکړو، نو حفصے رضی الله عنها چه کله صحیفے اُولیږلے نو عثمان ﷺ زید بن ثابت، عبد الله بن زبیر، سعید بن عاص او عبد الرحمن بن حارث بن هشام ته حکم اُوکړو نو هغوی د دغه صحیفو نه په مصاحفو کښې قرآن نقل کړو. او عثمان درے قریشی صحابه کرامو ته اُووئیل: چه کله ستاسو او د زید بن ثابت ترمینځ د قرآن په کوم لفظ کښې اختلاف شی نو دا په ژبه د قریشو اُولیکئ ځکه چه قرآن د هغوی په ژبه نازل شویدے. نو هغوی همدغه شان اُوکړل تردے چه کله هغوی د صحیفو نه مصاحف تیار کړل نو عثمان هغه صحیفے حفصے (رضی الله عنها) ته واپس اُولیږلے او د لیکلی شوی مصاحفو نه ئے یو یو مصحف هرے علاقے ته اُولیږلو او ددے نه علاوه د قرآن د هرے صحیفے او مصحف د سیزلو حکم ئے صادر کړو)).

ابن شهاب (زهریؒ) فرمائی: ما ته خارجه بن زید خبر راکړیدے او خارجه د خپل والد زید بن ثابتؓ نه اَوریدلی دی چه د مصحف د لیکلو په وخت ما ته د سورة الاحزاب یو آیت ملاؤ نشو (یعنی لیکلے شوے) چه هغه به ما د رسول الله ﷺ نه اوریدو چه هغه به ئے لوستلو نو هغه مونږ تلاش کړو نو هغه د خزیمه بن ثابت انصاری (دا ابوخزیمه نۀ دے) سره لیکلے شوے ملاؤ شو، هغه آیت دا دے چه ﴿ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ ﴾ [احزاب ۲۳]. نو مونږ دا په سورة الاحزاب کښې په مصحف کښې اُولګولو)).

[صحیح البخاری کتاب فضائل القرآن باب جمع القرآن رقم: ٤٧٠٢].

په یو بل روایت کښې دی: ((حذیفه چه کله د جهاد نه واپس شو نو کورته د تلو نه مخکښې د عثمان خوا ته راغلو او وے وئیل: اے امیر المؤمنین! ددے امت څه علاج اُوکړه. هغه اُووئیل: څه شویدی؟ حذیفه اُووئیل: زه د اَرمینیه په جنګ کښې شریك یم، هلته ما اُولیدل چه د شام والو به د ابی بن کعب ﷺ د قراء ت مطابق قرآن لوستلو چه هغه عراق والو نۀ وو اَوریدلے، او عراق والو به د عبد الله بن مسعود ﷺ د قراء ت مطابق لوستلو چه هغه شام والو نۀ وو اَوریدلے او بعضو به د بعضو تکفیر کولو)). انظر [فتح الباری فضائل القرآن- جمع القرآن ۳۹۲/۱۰].

مشهور قول دا دے چه عثمان (۵) پنځه مصاحف تیار کړل لیکن حافظ ابن حجر

العسقلانیؒ د ابوحاتم سجستانیؒ نه نقل کړیدی چه اُووه (۷) نسخے ئے تیارے کړے. یوه نسخه ئے مکه مکرمے ته اُولیږله او یوه ئے شام ته، دریمه ئے یمن ته، څلورمه ئے بحرین ته، پنځمه ئے بصرے ته، شپږمه ئے کوفے ته او اُوومه ئے مدینه طیبه کښ د خپل ځان سره اُوساتله.

[فتح الباری ۳۹۵/۱۰) (وجمال القراء للسخاوی ۱٦٤/۱] .

علامه زرقانیؒ فرمائی: کله چه دا مصاحف تیار شو نو خلقو د خپل خلیفه او د هغه د مجلسِ شوریٰ د فیصلے مطابق خپل انفرادی مصاحف اُوسیزل او ټول خلق په مصحف عثمانی باندے د زړه نه متفق شو، د هغے نقول مختلف علاقائی مراکزو ته اُولیږلے شو، البته د عبد الله بن مسعود ﷺ په ابتداء کښ د نورو مصاحفو په سیزلو باندے اعتراض وو لیکن د مصحف عثمانی په استناد د هغه هم هیڅ اعتراض نهٔ وو. هغه صرف پدے وجه ګیله من وو چه عثمان هغه لره د تدوین قرآن په کمیټۍ کښ ولے شامل نهٔ کړو لیکن کله ئے چه د خلقو د عثمان په مصحف باندے د اتفاق او اتحاد فوائد اُولیدل نو هغه هم د خلیفه او د هغه د اهل شوریٰ په فیصله باندے مطمئن شو او خپل اختلاف ئے ختم کړو، همدا وجه ده چه نن صبا د ابن مسعود، ابی بن کعب، علی بن ابی طالب، عائشه، سالم او د نورو صحابه کرامو (رضی الله عنهم) مصاحف نهٔ ملاویږی او په مصحف عثمانی باندے د ټول امت اجماع او اتفاق دے. [مناهل العرفان ۱۸۸/۱].

الله تعالیٰ دے د عثمان نه راضی شی چه هغه د قرآن کریم حفاظت پدے طریقه سره اُوکړو او امت پسے ئے د فتنے دروازه بنده کړه. او ټول امت مسلمه ئے په یو پلیټ فارم راجمع کړل.

علی رضی الله عنه به فرمایل: [لَوْ وُلِّيتُ الَّذِیْ وَلِیَ عُثْمَانُ لَصَنَعْتُ مِثْلَ الَّذِیْ صَنَعَ] [شرح السنة للبغوی ٥۲۳/٤].

(که زه د هغه کار ذمه واروے د کوم ذمه واری چه په عثمان وه نو ما به هم هغه شان کارکولے څنګه چه هغه کړے وو).

او عثمان چه کله باقی مصاحف اُوسیزل نو پدے باندے هیچا اعتراض اُونکړو ددے وجه نه سوید بن غفله ﷺ فرمایلی دی: ما د علی بن ابی طالب نه آوریدلی دی چه فرمایل ئے:

[يَا مَعْشَرَ النَّاسِ ! اِتَّقُوا اللّٰهَ وَإِيَّاكُمْ وَالْغُلُوَّ فِیْ عُثْمَانَ وَقَوْلَكُمْ: حَرَّاقُ مَصَاحِفَ، فَوَ اللّٰهِ مَا حَرَّقَهَا اِلَّا عَنْ مَلَأٍ مِنَّا اَصْحَابَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ].

(اے خلقو ! د الله نه اُوویرېږئ او د عثمان متعلق د غلو او ددے خبرے نه ځان بچ کړئ چه دا د قرآن سیزونکے دے، قسم په الله هغه مصاحف زمونږ د اصحاب رسول الله ﷺ په مشوره سره سیزلی وو)۔

## د عثمان د مصحف خصوصیات :

۱- یو دا چه پدے کښ ئے هغه آیتونه راجمع کړیدی چه په تواتر سره نقل دی، نهٔ هغه چه د هغې روایت په طریقه د آحادو سره دی۔

۲- دویم دا چه کوم آیتونه منسوخ التلاوة وو نو هغه ئے پکښ نهٔ وو لیکلی۔

۳- دریم دا چه د سورتونو او آیتونو ترتیب ئے داسے ورکړو لکه څنګه چهٔ نن صبا موجود دے او هرچه د ابوبکر صحیفے وے نو هغې کښ صرف د آیتونو ترتیب وو او د سورتونو ترتیب نهٔ وو۔

٤- د هغې کتابت او لیکائی ئے په داسے طریقه کړے وه چه هغې کښ تول وجوه د قراء اتِ مختلفه ؤ راجمع کیدے شو او هغه قرائتونه چه په هغې باندے قرآن کریم نازل دے ځکه چه په هغه قرآن باندے ئے څه اعراب او زیر زیر او پیش نهٔ وو لیکلی۔ او په کومو کلماتو کښ چه دغه قراء ات په یو ځائے په لیکلو کښ نهٔ راجمع کیدل نو هغه ئے په مختلفو مصاحفو کښ جدا جدا اُولیکل۔

۵- قرآن ئے د هر هغه شی نه مجرد او خالی کړو کوم چه قرآن نهٔ وو، لکه بعض صحابه کرامو په خپلو مصاحفو کښ ورسره د یو معنیٰ شرح یا بیان د ناسخ او منسوخ لیکلے وو دغه شان آمین وغیره کلمات ئے ترے بهر کړل۔ [راجع مناهل العرفان ۱/۱۸۸ و کتاب جمع القرآن ص [۱۲۹] لمحمد شرعی ابوزید ۔

**خلاصه** : د مخکښ بحث نه مونږ ته د درے واړو دورونو د جمع القرآن خلاصه دا حاصلیږی چه د نبی ﷺ په دور کښ د قرآن د جمع کولو معنیٰ دا وه چه آیتونه لیکل او د هغې ترتیب او په خاص سورتونو کښ کیخودل وو لیکن دا په جدا جدا کاڼړو او هډوکو او د کجورو په پاڼړو کښ لیکل وو او مقصد ددے جمع کولو نه د قرآن کریم زیات توثق او مضبوطوالے وو اګرکه په هغه زمانه کښ اعتماد په یادو او حفظ باندے وو۔

او هرچه د ابوبکر صدیق ﷺ په دور کښ د قرآن جمع کول وو نو د هغې مطلب دا وو چه دغه مختلف لیکلے شوے قرآن په صحیفو کښ راجمع کړے شی چه مرتب آیتونو والا

وی او صرف هغه آیتونه اُولیکلې شي چه د هغې تلاوت منسوخ شوې نۀ وو۔ او مقصد پدې کښې دا وو چه قرآن کریم د قاریان او حافظانو په مرګ سره چرته ضائع نشي نو د لیکلو په ذریعه به محفوظ شي۔

او د عثمان ﷺ په دور کښې د قرآن جمع کول داسې وو چه دغه صحیفو کښې چه کوم قرآن وو نو هغه ئې یو مصحف امام ته رانقل کړو او ددې نه ئې نور مصاحف تیار کړل چه هغه ئې مختلف اسلامي علاقو ته اُولیږل او مقصد پدې کښې دا وو چه امت د قرائت د اختلاف د وجه نه په فتنه کښې واقع نشي نو د هغوی اتحاد او اتفاق ئې په قرآن کریم کښې پدې طریقه سره راوستو او د تغییر او تبدیل نه ئې محفوظ اُوساتلو۔ رضی الله عنهم اجمعین۔ هذا وبالله التوفیق ۔

## فائده :- د مصحف نوم چا منتخب کړو ؟

ابوبکر صدیق چه کله د قرآن کریم د جمع کولو او لیکلو فرمان صادر کړو او هغه په پاڼرو کښې اُولیکلې شو نو صحابه کرامو ته ئې اُوفرمایل : دې دپاره نوم اُوګورئ نو بعض اُووئیل : انجیل نوم ورله کیدئ لیکن بیا ئې د نصاراؤ د وجه نه دا بد اُوګڼړلو۔ بعضو اُووئیل : سِفر نوم ورله کیدئ، لیکن دا ئې د یهودو د وجه نه بد اُوګڼړلو ځکه چه هغوی تورات ته سِفر وائي۔ نو پدې کښې عبد الله بن مسعود ﷺ مشوره ورکړه چه ما په حبشو کښې یو کتاب (د انجیل نه علاوه) لیدلې وو چه خلقو به هغې ته مُصحف وئیلو۔ نو دوی ورله همدغه مُصحف نوم منتخب کړو۔

[التحریر والتنویر لابن عاشور ۱ /۷۲ والاتقان]۔

بیا دا اجتهاد موافق شو د صحیح احادیثو سره۔ لکه رسول الله ﷺ فرمائي : [مَنْ سَرَّهُ اَنْ يُحِبَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَلْيَقْرَأْ فِي الْمُصْحَفِ]

(ځوك چه غواړي چه الله او رسول سره ئې مینه پیدا شي نو په مصحف کښې دې قراءت کوي)

او بل حدیث دې : [اَوْ مُصْحَفاً وَرَّثَهٗ] او قرآن کریم کښې دي: ﴿ فِيْ صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ مَّرْفُوْعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ ﴾۔ ﴿ يَتْلُوْ صُحُفاً مُّطَهَّرَةً ﴾۔

[انظر تفصیل هذا البحث فی الاتقان ۱٦۰/ ) (والتنویر ۱/۸٦) والمقنع فی رسم مصاحف الامصار لابی عمرو

الداني ٣/١) (وتاريخ القرآن الكريم ٢٠/١ لمحمد طاهر الكردي) كتاب الاحرف الاسبعة لابي عمرو الداني ص (٦١) البرهان للزركشي (٢٣٣/١) النوع الثالث عشر) فضائل القرآن لابن كثير) كتاب جمع القرآن الكريم رسالة الماجستير لمحمد شرعي ابوزيد ص (٥) [مباحث في علوم القرآن لمناع القطان ص [١٢٨]۔

## ١٧- الامر السابع عشر : تعارف القرآن

[ اولسم بحث : د قرآن تعارف او پيژندنه ]

قرآن لفظ اسم مصدر دے د قَرَءَ يَقْرَأُ نه په معنیٰ د لوستلو سره بيا ددے معنیٰ مصدری نه نقل شويدے معنیٰ مفعولی ته (يعنی مقروء) يعنی نوم گرځيدلے دے دپاره د هغه كتاب چه مقروء وی يعنی لوستلے شی۔ يا ابتداء ئے شويده په (اقرأ) سره۔ نو دا په همزه سره لوستلے شی لکه د اکثرو قراؤ همدا قراءت دے۔سویٰ د ابن کثیر نه چه هغه په همزه کښ تخفيف کوی۔

او بعض وائی چه دا لفظ قُرَان دے په راء او الف سره د قَرْن نه جوړ دے په معنیٰ د يو ځائے كولو سره نو قرآن ته قرآن ځكه وئيلے شی چه ددے سورتونه د يو بل سره پيوسته دی او دغه شان آيتونه او حروف ئے د يو بل سره پيوسته دی۔

٣- بعض وائی : قُرَان اسم جمع ده د قرينة۔ اسم جمع ورته ځكه وايو چه قرينة نهٔ جمع كيږی په وزن د فُعال سره۔ او قرينه علامے او نخے ته وئيلے شی نو قرآن ته ځكه قران وائی چه ددے آيتونه هم د يو بل تصديق كوی او يود بل دپاره قرائن او علامے دی په صدق او رشتين والی۔ او قرائن د صدق الرسول دی۔

قرآن په اصطلاح د علماؤ كښ : [اِسْمٌ لِلْكَلَامِ الْمُوحىٰ بِهٖ اِلَى النَّبِيِّ ﷺ وَهُوَ جُمْلَةُ الْمَكْتُوْبِ فِي الْمَصَاحِفِ الْمُشْتَمِلِ عَلٰى مِائَةٍ وَاَرْبَعَ عَشَرَةَ سُوْرَةً، اُوْلَاهَا الْفَاتِحَةُ وَاُخْرَاهَا سُوْرَةُ النَّاسِ] [التنوير ٧٠/١]۔

(نوم دے د هغه كلام چه د هغے وحی نبی ﷺ ته شويده او دا راجمع شويدے په ليكلو كښ په مصاحفو كښ چه مشتمل دے په (١١٤) سورتونو چه اول كښ ئے فاتحه ده او آخر كښ ئے سورة الناس دے)۔

٢- بعض داسے تعريف كوی : [اَلْقُرْآنُ هُوَ الْكِتَابُ الْمُعْجِزُ الْمُنَزَّلُ عَلٰى قَلْبِ مُحَمَّدٍ ﷺ بِوَاسِطَةِ جِبْرِيْلَ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُبِيْنٍ]۔

(قرآن هغه کتاب دے چه ټول انسانان او پیران ددے په شان راوړلو نه عاجز کونکے دے چه د جبریل ؑ په واسطه سره په عربی ژبه کښ د محمد ﷺ په زړه باندے نازل شویدے)

نو ددے تعریف نه معلومه شوه چه دا تنزیل دے یعنی انسانی تصنیف نهٔ دے بلکه د رب العالمین نازل کرده کتاب دے۔

بلسان عربی : یعنی د رسول الله ﷺ په زړه باندے په عربئ ژبه کښ نازل شویدے۔

المعجز : ددے مثال پیش کولو نه ټول انسانان او پیران عاجز دی۔ او همدا تعریف د آیتونو نه معلومیږی۔

[علوم القرآن للشیخ گوهر رحمان]۔

۳- مشهور تعریف د اصولینو او فقهاء ترمینځ دا دے :

[اَلْمُنَزَّلُ عَلَى الرَّسُوْلِ الْمَكْتُوْبُ فِي الْمَصَاحِفِ الْمَنْقُوْلُ اِلَيْنَا نَقْلاً مُتَوَاتِراً بِلَا شُبْهَةٍ] [توضیح تلویح ص (٦٩) طبع باکستان بشاور]۔

(قرآن هغه کتاب دے چه په محمد رسول الله ﷺ باندے نازل شویدے چه په صحیفو کښ لیکلے شویدے او مونږ ته بغیر د څه شبهے نه په نقل متواتر سره رارسیدلے دے)

مطلب دا دے چه قرآن کریم په اصل کښ دبره نه راغلے دے یعنی د الله تعالیٰ د طرف نه نازل شویدے او کوم مخلوق نهٔ دے تصنیف کړے۔

المکتوب فی المصاحف : دا اګرکه د قرآن کریم په اصل ماهیت کښ شامل صفت نهٔ دے ځکه ددے نه هغه کلام اُوځی چه جبریل ؑ رسول الله ﷺ ته اورولے وو، یا رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو ته اورولے وو۔ ځکه چه هغه خو په مصاحفو کښ لیکلے شوے نهٔ وو۔ او حال دا چه هغه هم قرآن دے نو که لیکل د قرآن په اصل ماهیت کښ داخل وے نو بیا به صرف په مکتوب باندے د قرآن اطلاق کیدے او په مسموع به نهٔ کیدے لیکن چونکه مونږ ته د مصحف په صورت کښ رارسیدلے دے او حافظان ددے مطابق حفظ کوی، پدے وجه دا د امر واقعی په طور باندے د قرآن په تعریف کښ ذکر کړے شویدے۔

مصاحف د مَصُحَف جمع ده ددے معنیٰ ده (یو مجلد کتاب)۔

مصحف د صَحَافت نه جوړ شویدے په معنیٰ لیکلو سره صَحَفِيُ یا صَحَافِيُ اخبار نویس ته وائی۔ او ددے نه صَحِيُفَه لفظ هم جوړ شویدے چه په معنیٰ د کتاب سره راځی او د هغې جمع صَحَائِف یا صُحُف راځی۔

المنقول: یعنی قرآن مونږ ته په تواتر سره رانقل دے، برابره ده که هغه په کاغذ کښې لیکلے شوے وی او که په سینو کښې محفوظ وی دواړه په تواتر سره نقل دے چه هیڅ شك او شبهه او تحریف او تغییر پکښې نشته۔ تواتر دیته وائی چه یوه خبره دومره زیات ثقه راویانو نقل کړی وی چه د هغے په باره کښې دا گمان نشی کیدے چه هغوی به په دروغو باندے اتفاق کړے وی۔ او دا درجه تواتر د یقین دپاره کافی دے۔

## ۱۸ - الامر الثامن عشر : وجوه اعجاز القرآن :

[ اتلسم بحث : د قرآن کریم د اعجاز طریقے ]

یعنی قرآن کریم څنگه معجز کتاب دے او انسانان او پیرانددے د مقابلے نه ولے عاجز دی ؟ نو دا ډیر مهم بحث دے۔ پدے سره د قرآن کریم کمال او رشتینوالے ښکاره کیږی۔

نود قرآن کریم د اعجاز ډیرے طریقے دی او پدے باندے علماء کرامو ډیر کتابونه لیکلی دی او هر مفسر خپل خپل کوشش کړیدے او د خپل علم مطابق ئے هغه ذکر کړیدی : بعض د هغے نه دا دی :

علامه قاضی ابوبکر باقلانیؒ په کتاب اعجاز القرآن کښې د اعجاز القرآن درے وجوهات بیان کړیدی :

[ ۱- اَلْاَوَّلُ : اِنَّهٗ يَتَضَمَّنُ الْاِخْبَارَ عَنِ الْغُيُوْبِ ] ۔

(یعنی یو دا چه قرآن کریم چه د غیبو کوم خبرونه ورکړیدی او کومے پیشینگویانے ئے کړی نو هغه تولے رشتینے ثابت شویدی لکه مثلًا په قرآن کښې دا خبر ورکړے شوے وو چه ﴿ قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ ﴾ ۔ کافرانو ته اُووایه ! زر دے چه تاسو به مغلوبه شئ۔ او همدغه شان اُوشوه چه د جزیرة العرب کفار کوم چه اصل مخاطبین وو نو هغوی د نبی ﷺ په دور کښې شکست والا شو او اسلام په دغه جزیره کښې د رسول الله ﷺ په ژوند کښې غالب شو او اردن، شام، عراق، ایران، بلخ وبخاریٰ، آرمینیه او آذربیجان، کرمان، مکران، هند او سند او نورے ډیرے علاقے د خلافت راشده په دور کښې فتح شوے او قیصر او کسریٰ باندے هم بادشاهیانے واوړیدلے۔ دغه شان د سورة الروم په ابتداء کښې ئے د رومیانو په ایرانیانو باندے د غالب کیدو خبر ورکړے وو او هغه بالکل همغه شان رشتینے ثابت شو۔ او دا قسم آیتونه ډیر زیات دی۔

(۲) [وَالْوَجْهُ الثَّانِيُ : اِنَّهٗ كَانَ مَعْلُوْمًا مِنْ حَالِ النَّبِيِّ ﷺ اَنَّهٗ كَانَ لَايَكْتُبُ وَلَايُحْسِنُ اَنْ يَّقْرَأَ ......الخ]۔

(يعنى دويمه وجه د قرآن د معجزه كيدو دا ده چه قرآن كريم كښ د آدم ؈ نه واخله تر د نبى خاتم النبيين د بعثت پورے څو مره غټ غټ واقعات د تير شوى اقوامو او انبياء سابقينو بيان شويدى حال دا چه محمد ﷺ د اهل كتابو كتابونه يا نور تاريخى كتابونه نۀ وو لوستلى، ځكه چه هغه لوستل نشو كولے او نۀ ئے ليكل كولے شو نو دا ددے واضح او ښكاره دليل دے چه دا قرآن د الله تعالىٰ د طرف نه نازل شويدے۔

[۳- وَالْوَجْهُ الثَّالِثُ : اِنَّهٗ بَدِيْعُ النَّظْمِ عَجِيْبُ التَّأْلِيْفِ مُتَنَاهٍ فِى الْبَلَاغَةِ اِلَى الْحَدِّ الَّذِىْ يُعْلَمُ عِجْزُ الْخَلْقِ عَنْهُ]۔

(يعنى دريمه وجه دا ده چه د قرآن نظم او تاليف ډير عجيب او غريب دے او په بلاغت كښ داسے حد ته رسيدلے دے چه مخلوق هغه حد ته د رسيدلو نه عاجز دے۔ بيا ئے ددے نظم قرآنى د اعجاز وجوهات تفصيلاً بيان كړيدى)۔

[اعجاز القرآن ص (۳۳) لابى بكر محمد الباقلانى]۔

٤- [مِنْهَا الْاُسْلُوْبُ الْبَدِيْعُ الَّذِىْ لَايَعْرِفُهُ الْعَرَبُ]۔

(قرآن كريم داسے ناشنا اسلوب او طرزِ بيان اختيار كړيدے چه هغه عربو نۀ پيژندلو يعنى الفاظ ئے فصيح دى او معنے ئے شريفے دى)

٥- [اِشْتِمَالُهٗ بِالنُّكَتِ الْبَلَاغِيَّةِ اِلَى الْغَايَةِ الْقُصْوٰى]۔

(قرآن كريم پداسے نكتو او اسرارو او حكمتونو مشتمل دے چه هغه انتهائى درجے ته رسيدلے دے چه انسانان په خپل كلام كښ داسے نكتے او رازونه نشى راوستے)۔

٦- [وَضْعُ كُلِّ كَلِمَةٍ مَوْضِعَهَا]۔

(هره كلمه په خپل ځائے كښ واقع ده)۔

٧- [وَاِلْبَاسُ الْمَعَانِىْ لِبَاسًا يُنَاسِبُ اُسْلُوْبَ السُّوْرَةِ فِىْ كُلِّ مَوْضِعٍ]

(معانيو ته ئے داسے لباس (الفاظ) اغوستى دى چه په هر ځائے كښ د سورت د اسلوب او طرز مناسب دى)۔

٨- [اَعْظَمُ الْاَسَالِيْبِ الَّتِىْ خَالَفَ بِهَا الْقُرْاٰنُ اَسَالِيْبَ الْعَرَبِ اَنَّهٗ جَاءَ فِىْ نَظْمِهٖ بِاُسْلُوْبٍ جَامِعٍ بَيْنَ مَقْصَدَيْهِ وَهُمَا : مَقْصَدُ الْمَوْعِظَةِ وَمَقْصَدُ التَّشْرِيْعِ]۔

(يعنى د قرآن كريم ډير عظيم طرز او اسلوب چه په هغې سره د عربو د طرز نه جدا شويدے هغه دا دے چه دده الفاظ په داسے نظم او ترتيب سره راوړے شويدى چه دوه مقصده ئے پکښې راګير كړيدى يو دا چه موعظه او نصيحت هم پکښې پروت وى او بل طرف ته تشريع او احكام او آداب هم پکښې پراته وى، نو په ظاهر كښې خطبه او وعظ وى خو عالم خبير د هغې نه ډير احكام او آداب او د ژوند طريقے راوباسى. لكه الله تعالىٰ فرمايلى دى: ﴿وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ إِلَّا اللَّهُ وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ﴾ دا هم دے ته اشاره ده څكه چه د قرآن كريم معانيو كښې عموم او علتونو او مقاصدو ته اشارات وى. [مقدمة التنوير ۱۱۳/۱].

۹- [تَضَمَّنَ الْقُرْآنُ لِجَمِيعِ الْعُلُومِ مِنَ الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ وَالسِّيَاسَةِ وَسَائِرِ الْأَحْكَامِ وَالْآدَابِ وَالْعَقَائِدِ].

(قرآن كريم ټول علوم راګير كړيدى كه هغه حلال حرام دى او كه سياست دے او كه باقى احكام، آداب او عقائد دى)

**علامه زرقانى** رحمه الله د اعجاز څوارلس وجوه اوطريقے ډير په تفصيل سره ذكر كړيدى چه دے موضوع ته ئے پوره حق وركړيدے.

هغه فرمائى: ((د اعجاز القرآن معنى دا ده چه قرآن كريم خلق عاجز كړيدى د راوړو نه په شان ددے قرآن يا يو سورت ددے قرآن په شان. او دا عاجز كول خپله مقصود نۀ دى بلكه ددے سره يوه خبره لازم ده هغه مقصود ده او هغه دا چه دا خبره واضحه شى چه دا كتاب د الله تعالىٰ حق كتاب دے او هغه رسول چه دا كتاب ئے راوړيدے هغه رشتينى رسول دے نو پدے سره به خلق تيار شى دے خبرے ته چه خلقو كښې شعور راشى او بيا ايمان راوړى او دا يقين ئے راشى چه دا معجزات د هغه الله تعالىٰ نه صادر دى چه هغه قادر په هر شى دے، او بيا ددے په نتيجه كښې ددے تابعدارى شروع كړى چه په دنيا او آخرت كښې مقصد ته اُورسيږى. بيا ئے هغه وجوه ذكر كړيدى چه بعض دا دى:

(۱۰) [لُغَتُهُ وَأُسْلُوبُهُ].

(يعنى قرآن كريم دا زړه راښكونكے اسلوب او طرز اختيار كړيدے او په داسے اُوچتو خصوصياتو مشتمل دے چه دا خصوصيات په هيڅ كلام او هيڅ علم كښې پداسے طريقه نۀ دى موجود څنګه چه په قرآن كريم كښې موجود دى، كله چه نبى ﷺ ددے د مقابلے اعلان اُوكړو نو د فصاحت ستنے او د بلاغت ګرګے ئے عاجز او چاړا ګ'ن كړل سره ددے نه چه

په زمانه د نزول د قرآن کښې تر نن تاریخ پورې هر قسم فصاحت او بلاغت والا خلق تیر شویدی خو هیچا داسې اسلوب سره کلام نهٔ دې پیش کړې څنګه چه قرآن کریم پیش کړیدې۔

الله تعالیٰ فرمائی: ﴿ قُلْ لَئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَى أَنْ يَأْتُوا بِمِثْلِ هَذَا الْقُرْآنِ لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا ﴾ [الاسراء: ۸۸]۔

(اُووایه که انسانان او پیریان ټول راجمع شی چه د قرآن په شان کتاب راوړی نو ددې په شان به را نهٔ وړی اګرکه بعض د بعضو سره مددګار شی)۔

اول کښې الله تعالیٰ دوی ته په سورة الطور کښې تحدی او د مقابلې اعلان په ټول قرآن سره اُوکړو۔ ﴿ فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ مِثْلِهِ ﴾ [الطور۳۳]۔

لیکن کله چه دوی ددې نه بند شو نو بیائې ورته رسئ اُوږده کړه او په سورة هود کښې ئې ورته د لس سورتونو د مقابلې اعلان اُوکړو:

﴿ قُلْ فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِثْلِهِ مُفْتَرَيَاتٍ ﴾ [هود: ۱۳]۔

لیکن کله چه دوی پدې ځل هم عاجز شو نو رسئ ئې ورته تر آخر پورې سسته کړه او په سورة البقره کښې ئې ورته اُووئیل چه د یو سورت مقابله خو اُوکړئ ﴿ فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِنْ مِثْلِهِ ﴾ [البقره ۲۳]۔

نو ددې نه روستو هم چه دوی عاجز شو نو دا عجز به د دوی ډیر شنیع او قبیح وی او پدې سره الله تعالیٰ په دوی باندې د شکست ټاپه او مهر همیشه دپاره اُووهلو، نو نهٔ ئې مقابله کړیده او نهٔ به ئې اُوکړی۔ او تاریخ نقل کړیدی چه ابو العلاء المعری او ابو الطیب المتنبی او ابن المقفع دا ارادې کړې وې چه د قرآن کریم معارضه او مقابله اُوکړی لیکن مقابله ئې لا شروع کړې نهٔ وه چه قلمونه ئې مات کړل او خپلې پاڼړې او صحیفې ئې اُوشوکولې، ځکه دوی ته پدې لاره کښې مشکلات ښکاره شو۔

(۱۱) – [طَرِيقَةُ تَالِيفِ الْقُرْآنِ]۔

قرآن کریم په درویشتو کالو کښې لږ لږ نازل شویدې۔ بعض سورتونه مخکښې زمانه کښې او بعضې روستو زمانه کښې۔ دارنګه بعض لږ لږ نازل شویدی لکه سورة البقره څه دپاسه اتیا حصو باندې تقسیم ده چه دا په نهه کاله کښې نازل شویده یعنی څه آیتونه پکښې د ابتداء د هجرت د زمانې دی لکه تحویل القبله او صوم رمضان او څه په کښې د

آخری زمانے دی لکه (واتقوا یوماً ترجعون فیه الی الله) او بعض سورتونه لکه سورة الانعام تول په یو ځل نازل شویدے (طبرانی موقوفاً علی ابن عباس)

او د دوارو سورتونو ترمینځ په نظم او دقت د معنیٰ او وحدت فنی کښی هیڅ فرق نشته، نو که دا چرته د محمد ﷺ کلام وے یا د بل چا وے نو د اول او د آخر کلام به څومره فرق وے پدے خبره سوچ اُوکړه نو پدے طریقه د تالیف او راجمع کولو د قرآن کښی معجزه ښکاره شوه۔

(۱۲) [عُلُوْمُهٗ وَمَعَارِفُهٗ]۔

(قرآن کښی په داسے علوم او معارفو باندے مشتمل دے چه مقاصد ئے اُوچت دی او دلیل ئے واضح دے او اثر ئے ښائسته دے او فائده ئے عامه ده نو دا په هدایت د خلقو کښی حق طرف ته داسے مرتبے ته رسیدلے دے چه عقل دا بعیده گنړی چه دا دِے محمد ﷺ د ځان نه جوړ کړے وی ځکه چه هغه خو یو امی شخص وو چه امیانو کښی لوئی شوے وو۔ دا قرآن چه گورے نو د اصلاح روح پکښی څومره قوی دے هر طرف نه ئے کمالات راګیر کړیدی، فلاسفه ؤ چه په فلسفه سره کوم فساد پیدا کړیدے قرآن د هغے اصلاح کړیده، که مشرکانو په شرك سره کوم نقصان کړیدے د هغے تدارك ئے کړیدے، که مخکنو دینونو والو په خپلو دینونو کښی کوم تحریفونه کړیدی نو د هغے تصحیح ئے کړیده، عقیدے ته که اُوګورے نو انسان ته ئے یوه داسے عقیده راشده ورکړیده چه د بنده همت اُوچتوی او مضبوط عبادات ئے ورله ورکړیدی، داسے اُوچت اخلاق ئے ورخودلی چه انسان کښی د اهلیت پیدا کوی چه د الله تعالیٰ خلیفه جوړ شی په زمکه کښی، شخصی، مدنی، اجتماعی احکام ئے داسے طریقے سره ذکر کړیدی چه اجتماعیت د فساد او خرابی نه بچ کوی، او د اطمینان او صحیح انتظام او سلامتیا او نیکبختئ ژوند ورکوی، د یهودیانو علاج ئے کړیدے چه هغوی ځان ته شعب الله المختار وئیلو۔ او د ګمراه نصاراؤ اصلاح ئے کړیده چه ځان ته ئے ابناء الله واحباء ه وئیل، بعض یهودیانو د خلقو مالونه او هر شے ځان دپاره حلال کړی وو ﴿ لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ ﴾۔ د هغوی اصلاح ئے اُوکړه۔

او بعض عابدان نصاراؤ په ځان باندے حلال څیزونه حلال کړی وو ﴿ قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ الَّتِي أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ وَالطَّيِّبَاتِ مِنَ الرِّزْقِ ﴾ [اعراف ۳۲] نو د هغوی رهنمائی ئے اُوکړه۔ او ټولے ډلے ئے اعتدال او صحیح لارے ته رادعوت کړل۔ ﴿ وَمَا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي اخْتَلَفُوا فِيهِ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ (النحل : ٦٤]۔

(۱۳) - [وَفَاؤُهٗ بِحَاجَاتِ الْبَشَرِ]۔

(قرآن کریم داسے کامل او پوره هدایات راوړیدی چه په هره زمانه او هر ښار او علاقه کښې د ټولو انسانونو حاجتونه ئے پوره کړیدی، دا کار په بل هیڅ دین کښې نشته۔ چه ددے تفصیل داسے دے چه ۱ – اول قرآن کریم د عقائدو اصلاح کړیده، دعوت ئے ورکړیدے ایمان بالله وملائکته وکتبه ورسله والیوم الآخر ته۔

۲ – دویم اصلاح د عباداتو ئے کړیده چه خلقو ته ئے هغه کارونه خودلی دی چه په هغے سره د دوی د نفسونو تزکیه راځی او روحونو ته ئے غذاء ورکوی، او اراده ئے مضبوطوی او یو فرد او مجموعه انسانانو ته هغه فائده ورکوی۔

۳ – دریم دا چه اصلاح د اخلاقو ئے پداسے طریقه کړیده چه خلقو ته ئے ددے فضائل ذکر کړیدی او د رذائلو نه ئے هغوی ته نفرت ورکړیدے او پدے کښې ئے اعتدال او درمیانه روی کړیده۔

۴ – څلورم اصلاح د اجتماعیت ئے کړیده چه خلقو ته ئے د صفونو یو کولو رهنمائی کړیده او د تعصبونو اوډله بازئ او فرقه پرستئ نه ئے منع کړیدی۔

۵ – دارنګه اصلاح د سیاست او حکومت ئے کړیده په عدل او مساوات سره او رحمت او غمخورئ او محبت ته ئے دعوت ورکړیدے۔ او د ټولو بد صفاتو نه ئے منع کړیدی چه هغه ظلم، غدر، وعده کښې خلاف کول، دروغ، خیانت، د خلقو په باطل سره مالونه خوړل لکه سود وغیره۔

٦ – د مال اصلاح ئے کړیده چه دعوت ئے اقتصاد ته ورکړیدے او خلق ئے د مال ضائع کولو نه منع کړیدی او په واجب انفاق باندے ئے امر کړیدے، او خاص او عام حقوق اداء کولو او صحیح کاروبار باندے ئے امر کړیدے۔

۷ – د زنانو اصلاح ئے کړیده چه د هغوی احترام کول او هغوی ته ټول انسانی او دینی حقوق ورکولو ته ئے دعوت ورکړیدے۔

۸ – د جنګونو اصلاح ئے کړیده د هغے اصول او قواعد او مبدأ او غایه ئے خودلے ده او په هغے کښې ئے د غدر او نقض عهد نه منع کړیده۔

۹ – د غلامانو د آزادولو ترغیبات ئے ورکړیدی او هغه ئے په کفاراتو کښې مقرر کړیدی۔

۱۰ – د انسانانو عقلونه او فکرونه ئے آزاد کړیدی او د اکراه او دینی غلبے نه ئے منع

کړيدی۔ ﴿فَذَكِّرْ إِنَّمَا أَنتَ مُذَكِّرٌ، لَّسْتَ عَلَيْهِم بِمُصَيْطِرٍ﴾ [الغاشية ۲۱] هرکله چه الله تعالیٰ په قرآن کريم کښې د ټول انسانيت حاجات پوره کړيدی نو ددے وجه نه عام کافران د قرآن هدايت ته په شعوری يا غير شعوری طريقے سره غاړه اږدی او دے ته رجوع کوی لکه مثلًا :

۱- امريکے په اخيره کښې رسمی طريقے سره په شرابو باندے پابندی اُولګوله، ليکن دا امرئے کامياب نشو ځکه چه د اسلام په طريقه باندے نهٔ وو۔

۲- امريکے طلاق مباح کړل اګرکه دے باره کښې ئے ډير اسراف کړيدے۔ ۳- د اسبانيا حکومت دا قانون صادر کړو چه زمونږ په ملك کښې به رسمی طريقے سره زنا بنده وی او هغه زنانه چه د سمندرونو په غاړو باندے په جانګو او فاحشو جامو کښې اُوځی نو هغه به منع کولے شی۔

٤- يورپ کښې چه کوم مصلحين دی هغوی دا نعرے وهی چه د ډيرو ودونو اجازت ډے خلقو ته ورکړے شی ځکه چه دے ته ډير ضرورت دے ترڊے چه بعض زنانو هم دا مطالبه کړے وه۔

(۱٤) [مَوْقِفُ الْقُرْآنِ مِنَ الْعُلُوْمِ الْكَوْنِيَّةِ]۔

(قرآن کريم کښې الله تعالیٰ کونی علمونه راجمع کړيدی چه دا دليل دے چه دا کتاب مُعجز دے۔ په قرآن کښې چه کوم کونی څيزونه ذکر کيږی نو مقصد پکښې يو هدايت وی او د خالق په وجود باندے دليل وی او ددے کائناتو نه الله تعالیٰ په قرآن کريم کښې ډيرے فائدے انسانانو ته ورکړيدی او ددے کونی څيزونو د ذکر کولو نه د قرآن مقصد دا نهٔ وی چه مثلًا د علم هيئت تشريح اُوکړی يا د طبيعيت او کيمياء او طب او حساب او هندسے تشريحات اُوکړی ددے وجه نه کوم مفسرين چه ددے په باره کښې ډيره توسع او فراخی کوی نو داسے نهٔ ده پکار اګرکه د هغوی نيت به ښه وی ځکه چه دا د قرآن مقصد خرابوی۔

(۱۵) [سِيَاسَتُهٗ فِى الْإِصْلَاحِ]۔

(قرآن د اصلاح په باره کښې داسے سياست او تربيت کړيدے چه هغه دومره کامل دے چه دا ممکن نهٔ ده چه هغه د محمد ﷺ يا د بل انسان نه صادر شی) او دا په ډيرو طريقو سره دے :

۱- یو دا چه دا کتاب ئې لړ لړ نازل کړیدې، دې دپاره چه په خلقو آسانی راشی او ددې قبلولو ته تیار شی۔

۲- دا کتاب پداسې ښائسته اسلوب سره راغلې دې چه هر چا ته محبوب دې دې دپاره چه ددې په وجه ددې تعلیمات واوری او د هغې منلو ته تیار شی۔

۳- اوامر او نواهی ئې داسې مرتب دی چه ټولو خلقو ته شاملیږی سره د تفاوت د استعداد د خلقو نه، او په اعمالو کښې ئې درجات مقرر کړیدی، مثلًا اول اسلام بیا ایمان بیا احسان، مستحب، سنت فرائض وغیره۔

٤- قرآن د روح او جسد دواړو حقوق او مطالب پوره کوی۔

۵- قرآن د دنیا او آخرت مقاصد بیان کړیدی۔

٦- قرآن په آسانئ راتلل کوی او د مخلوق نه حرج او تنګسیا پورته کوی۔

﴿ وَمَا جَعَلَ عَلَيۡكُمۡ فِي الدِّيۡنِ مِنۡ حَرَجٍ﴾ [الحج: ۷۸]۔

(۱٦) [اَنۡبَاءُ الۡغَيۡبِ فِيۡهِ]۔

(قرآن د غیبو خبرونه ورکړیدی او هغه صادق شویدی دا څه په ماضی زمانه کښې تیر شویدی لکه واقعات الانبیاء او د اقوام مکذبه او مصدقه ؤ حالات ۔ او څه د حاضر سره تعلق لری لکه د الله تعالیٰ او د ملائکو او جناتو او جنت او جهنم په باره کښې خبر ورکړیدې چه هغه ټول رسول الله ﷺ لیدلی هم نهٔ وو۔ د منافقانو حالونه ئې راښکاره کړیدی او دارنګه د راتلونکې زمانې احوال ئې بیان کړیدی او هغه بیا صادق شویدی او صادق کیږی به۔ لکه ددې خبرې تفصیل مخکښې هم ذکر شو۔

(۱۷) [آيَاتُ الۡعِتَابِ]۔

(د قرآن کریم د معجزه کیدو بل دلیل دا دې چه د رسول الله ﷺ نه به کله یو اجتهاد اُوشو او په یوه مسئله او حادثه کښې به ورته حکم الهٰی نهٔ وو نازل شوې او هغه به په خپل علم او اجتهاد سره عمل اُوکړو نو که الله تعالیٰ ته به نهٔ وو خوښ، زر به ئې آیتونه نازل کړل او خپل نبی ﷺ ته به ئې عتاب او ملامتیا ورکړه لکه په فدیه د قیدیانو د جنګ بدر کښې رسول الله ﷺ باندې آیتونه نازل شو، چه فدیه اخستل د دوی نه صحیح نهٔ وو بلکه ددې کافرانو وینه تویه کول پکار وو۔ ﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنۡ يَّكُوۡنَ لَهٗۤ اَسۡرٰى حَتّٰى يُثۡخِنَ فِي الۡاَرۡضِ﴾ [انفال : ٦۷]۔

رسول الله ﷺ د تبوك نه د پاتے شوو منافقانو نه عذرونه قبول کړل او کله چه هغوی د تبوك نه په پاتے کیدو کښې عذرونه کول نو نبی ﷺ اجازت ورکړو نو پدے کښې آیتونه نازل شول

﴿عَفَا اللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَتَعْلَمَ الْكَاذِبِينَ﴾ [التوبه : ٤٣]۔

(۱۸) [مَا نَزَلَ بَعْدَ طُوْلِ انْتِظَارٍ]۔

(یعنی کله به رسول الله ﷺ دیو کار په باره کښې د وحی انتظار کولو چه وحی نازله شی لیکن هغه به د رسول الله ﷺ د خواهش مطابق سمدست نۀ نازلیدله بلکه وخت به ئے واخستو نو که دا د محمد ﷺ د ځان نه جوړ کړے کتاب وے نو بیا د انتظار څه معنیٰ وه سره ددے نه چه انتظار څو مره گران کار دے او خاصکر چه کله یو ے خبرے ته ضرورت وی۔

۱- د تحویل القبله په باب کښې اُوګوره نبی ﷺ به بره بره کتل چه وحی راشی او ما ته حکم اُوشی چه کعبے ته مخ واړوه۔

۲- واقعه د افك ته اُوګوره چه په ام المؤمنین عائشه رضی الله عنها باندے تهمت اُولګیدو نبی ﷺ د وحی انتظار کولو ډیر وخت بعد وحی نازله شوه۔

۳- د نبی ﷺ نه د اصحاب کهف، د ذی القرنین او د روح په باره کښې تپوس اُوشو نو هغه اُوفرمایل : صبا راشئ خبر به درکړم، خو ان شاء الله ترے هیره شوه نو صبا له وحی رانغله، قریشو اعتراضونه شروع کړل چه خپل رب ورسره دشمنی شروع کړه او پریے ئے خودو۔ نو الله تعالیٰ سورة الضحی نازل کړو۔ او دغه شان نور مثالونه واخله۔

(۱۹) [مَظْهَرُ النَّبِيِّ ﷺ عِنْدَ هُبُوْطِ الْوَحْيِ]۔

(رسول الله ﷺ باندے به چه کله وحی نازلیده نو د هغه به ډیر ناشنا حالت جوړیدو، تندے مبارك به ئے خولے شو او په بدن کښې به ئے دروند والے پیدا شو، که په چا باندے به ئے کوم اندام پروت وو نو هغه به هم ددے دروند والی احساس کولو۔ دا پوره دلیل دے چه دا د رسول الله ﷺ د ځان نه جوړ شوے کتاب نۀ دے۔

(۲۰) [آيَةُ الْمُبَاهَلَةِ]۔

(قرآن کریم مباهلے ته دعوت ورکړیدے چه اے یهود او نصاراؤ ! که تاسو ځان ته په حق وایئ، راځئ زما نبی سره الله تعالیٰ ته عاجزی او زاری اُوکړئ او چه څوك دروغجن وی په هغه باندے د الله تعالیٰ نه ښیرے طلب کړئ چه مرګ ورله راولی۔ نو ټول باطل پرست

یهود او نصاریٰ دے ته نهٔ دی تیار شوی، دا عظیمه معجزه ده چه قرآن کریم د الله تعالیٰ کتاب دے، چه باطل پرستو ددے مقابله نهٔ ده کړے. رسول الله ﷺ د نجران نه د راغلو نصاراؤ په باره کښې اُوفرمایل : [وَلَوْ لَاعَنُوْا لَمُسِخُوْا قِرَدَةً وَخَنَازِيْرَ].
(که دے خلقو مباهله کړے وے نو شادوګان او خنزیران به ترے جوړ شوی وے).
(۲۱) [عِجْزُ الرَّسُوْلِ عَنِ الْاِتْيَانِ بِبَدَلٍ لَهٗ].
(رسول الله ﷺ هم ددے نه عاجز دے چه د قرآن په بدل کښې بل کتاب راوړی یا په کښې د خپل طرف نه تبدیلی اُوکړی).
لکه د اسلام دشمنانو دا مطالبه کړے وه چه ددے قرآن نه علاوه بل قرآن راوړه یا پدے کښې تبدیلی اُوکړه. نو الله تعالیٰ آیتونه نازل کړل چه د نبی ﷺ د طرف نه ئے جوابونه اُوکړل :
﴿ وَقَالَ الَّذِيْنَ لَايَرْجُوْنَ لِقَاءَ نَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هٰذَا اَوْ بَدِّلْهُ، قُلْ مَا يَكُوْنُ لِيْ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِيْ، اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰى اِلَيَّ، اِنِّيْ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ الخ﴾ [یونس : ۱۵].
(۲۲) [عَشْرُ الآيَاتِ الَّتِيْ تَجَرَّدَ الرَّسُوْلُ مِنْ نِسْبَتِهٖ اِلَيْهِ].
(ډیر داسے آیتونه موجود دی چه په هغے کښې د رسول الله ﷺ نه نفی شویده چه دا کتاب ډے دهٔ جوړ کړے وی، بلکه الله تعالیٰ خو هغه ته وئیلی وو چه اے زما رسوله ! ما تا ته کتاب راولیږو چه ددے نه مخکښې تا کتاب نهٔ پیژندلو او نهٔ درته ایمان معلوم وو او تا له مے کتاب او حکمة درکړو او خپل فضل مے دریاندے اُوکړو نو دا ټول دلیل دے چه دا د رسول الله ﷺ کلام نهٔ دے بلکه دا د الله تعالیٰ کلام دے او رسول الله ﷺ صرف د الله تعالیٰ د طرف نه رسونکے دے) بلکه رسول الله ﷺ به ددے نه یریدو چه دا مدد د وحی ما نه منقطع نهٔ شی او کله چه به ترے وحی روستو شوه نو ډیر به غمجن وو او جبریل نه به ئے مطالبه کوله چه ته ولے زما ملاقات ته ډیر نهٔ راځے. الله تعالیٰ هم ورته فرمایلی وو :
﴿ وَلَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيْ اَوْحَيْنَا اِلَيْكَ ثُمَّ لَاتَجِدُ لَكَ بِهٖ عَلَيْنَا وَكِيْلًا﴾ [اسراء : ۸۶] . (که مونږ اُوغواړو، ختم به کړو هغه وحی چه مونږ ئے تا ته کوو بیا به ته د خپل ځان دپاره د هغے په راوستو څوك ذمه وار پیدا نهٔ کړے). دا ټول واضح ثبوت دے چه رسول الله ﷺ دا کتاب د ځان نه نهٔ دے جوړ کړے.
(۲۳) [تَاْثِيْرُ الْقُرْآنِ وَنَجَاحُهٗ].

(د قرآن د معجزه کیدو بل دلیل دا دے چه قرآن کریم په نفسونو د انسانانو کښې داسے تاثیر لری چه هغه د هیچا په کلام کښې نشته او داسے کامیابئ ته رسیدلے دے چه هیڅ کتاب داسے نشی کیدے، ددے وجه نه په لږ وخت کښې قرآن کریم په عالم کښې داسے انقلاب راوستو چه دا د هیڅ کتاب دپاره نۀ مخکښې ثابت شوے وو او نۀ به ثابت شی، ټول بشری قوانین ددے په شان انقلاب راوستو نه عاجز دی، د عقیدے اصلاح، د مجتمع اصلاح، د اخلاقو اصلاح، خپل مقصد ته متوجه کول ددے کتاب خصوصیت دے۔

نو قرآن کریم د ورو او غتهو په زړه او روح کښې ایمان داخل کړیدے او نفسونو کښې ئے د شعور او بیدارئ ماده پیدا کړیده او علماً او عملاً ئے دعوت ورکړیدے چه ددے کتاب په تعلیمات او هدایت دے عمل اُوکړی سره ددے نه چه دا کتاب د یو امی سړی نه صادر دے او یو عام انسان دے چه هیڅ حکومت او طاقت ئے نۀ وو، لکه قرآن کریم پخپله دے خبرے ته اشاره کړیده : ﴿ وَكَذٰلِكَ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡكَ رُوۡحًا مِّنۡ اَمۡرِنَا ﴾ [الشوری : ۵۲] ۔ (قرآن د روحونو کتاب دے) او دے ته ئے نور وئیلے دے ﴿ قَدۡ جَآءَكُمۡ مِّنَ اللّٰهِ نُوۡرٌ وَّكِتٰبٌ مُّبِيۡنٌ ﴾ [المائدة : ۱۵] ۔ او پدے کتاب کښې حیوة د انسانانو پروت دے ﴿ اَوَمَنۡ كَانَ مَيۡتًا فَاَحۡيَيۡنٰهُ وَجَعَلۡنَا لَهٗ نُوۡرًا ﴾ [الانعام : ۱۲۲]

قرآن انسانانو ته حیٰوة طیبه ورکوی۔ ﴿ مَنۡ عَمِلَ صَالِحًا مِّنۡ ذَكَرٍ اَوۡ اُنۡثٰى وَهُوَ مُؤۡمِنٌ فَلَنُحۡيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً ﴾ [النحل : ۹۷] ﴿ اِسۡتَجِيۡبُوۡا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوۡلِ اِذَا دَعَاكُمۡ لِمَا يُحۡيِيۡكُمۡ ﴾ [انفال : ۲۴]

د قرآن د تاثیر څه مثالونه اُوګوره : ۱ – مشرکانو به د شپے په تیاره کښې د مسلمانانو تلاوتونو ته غوږ کیخودلو، وجه همدا وه چه دے قرآن په هغوی غلبه کړے وه لیکن عناد او کبر حق ته نۀ پریخودل۔

۲ – ابوبکر صدیق د خپل کور مخے ته قرآن لوستلو نو کفارو پرے پابندی لګوله پدے وجه چه هلکان او زنانه به هغه ته راجمع کیدل او د هغه د قراءت نه به ئے تلذذ او مزه اخسته او د هغے نه به متأثر کیدل نو مشرکانو سره خطره پیدا شوه نو هغه ئے منع کړو۔

۳ – د قرآن د تاثیر نه یریدل نو یو بل ئے منع کول د قرآن د اوریدو نه۔

﴿ وَقَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَا تَسۡمَعُوۡا لِهٰذَا الۡقُرۡاٰنِ وَالۡغَوۡا فِيۡهِ لَعَلَّكُمۡ تَغۡلِبُوۡنَ ﴾ [فصلت : ۲۶]۔

٤ – کافران به رسول الله ﷺ ته په غلطه اراده راغلل او د هغه د مرګ اراده به ئے وه لیکن چه کله به ئے د الله تعالیٰ دا عظیم کتاب واوریدو نو اسلام به ئے راوړو او د داسے قسم

واقعاتونه کتابونه د سیرت ډك دي۔
او د قرآن تاثیر په منونکو خلقو څومره ډیر وو چه صحابه کرامو به ددے په حفظ او قراء ت کښې څومره رغبت او مینه لرله !!۔
۲- په قرآن به ئے څومره عمل کولو او ددے تعلیمات ئے څومره نافذ کړی وو، د قرآن د تعلیماتو او هدایاتو خلاف تعلیمات ئے تول پریخودی وو۔
۳- د قرآن په نشرو اشاعت کښې ئے څومره بهادری کوله او د قرآن او د هغه د هدایت نه ئے څومره دفاع کوله۔ او غټه معجزه ئے دا هم ده چه د نبی ﷺ نبوت او قرآن کریم د هغه به تر قیامته پورے همیشه دپاره موجود وی او په امت کښې به ضرور داسے خلق وی چه هغوی به ددے کتاب تعلیمات کلك رانیولی وی۔
علامه قرطبیؒ لس وجوه د اعجاز ذکر کړیدی لیکن هغه اکثر یو په بل کښې داخلیږی او هغه تقریباً تولے پدے مخکنی بحث کښې ذکر شویدی۔ او بعض پکښې هغه دی چه هغه وجه د اعجاز نهٔ معلومیږی ځکه خصوصیت ئے د قرآن پورے نهٔ وی، لکه عدم اختلاف او تناقض په معانی د قرآن کښې۔ والله اعلم۔
[راجع مناهل العرفان فی علوم القرآن للزرقانی ۲/۶۳٤) والفوائد (۱)۔

## ۱۹- الامر التاسع عشر : المتشابهات والمحكمات :

[ نولسم بحث : متشابهات او محکمات پیژندل ]

د کتاب الله د صحیح فهم او پوهے دپاره ددے بحث پیژندل هم ډیر ضروری دی او پدے سره د ډیرو آیتونو ترمینځ د ظاهری الفاظو تعارض دفع کیږی او د مبتدعینو او باطل پرستو غلط استدلالات واضح کیږی۔
مُحکم : د احکام نه جوړ دے په معنیٰ د مضبوطولو او د یو کار نه د منع کولو دپاره استعمالیږی۔ او ددے نه حَکَمَه لفظ استعمالیږی د اس په خوله کښې هغه کړئ ته وئیلے شی چه د اَس د واگے دواړه طرفونه پرے د خوزولیدو نه منع کولے شی۔
او متشابه د تَشَابُهُ نه اخستے شویدے په معنیٰ د مماثلت او مشاکلت او مشابهت او گډوډ والی سره استعمالیږی۔ لکه ﴿ إِنَّ الْبَقَرَ تَشَابَهَ عَلَيْنَا ﴾ [البقره : ۷۰]۔
په قرآن کریم کښې دا هم راغلی دی چه تول قرآن مُحکم دے لکه ﴿ كِتَابٌ أُحْكِمَتْ آيَاتُهُ ﴾

[هود :۱] ۔ او دا هم راغلی دی چه ټول متشابه دے لکه ﴿ اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحۡسَنَ الۡحَدِيۡثِ كِتَابًا مُّتَشَابِهًا﴾ [الزمر :۲۳] ۔ او دا هم راغلی دی چه بعض آیتونه محکمات دی او بعض متشابهات دی لکه ﴿ هُوَ الَّذِیۡ اَنۡزَلَ عَلَيۡكَ الۡكِتَابَ مِنۡهُ آيَاتٌ مُّحۡكَمَاتٌ هُنَّ اُمُّ الۡكِتَابِ، وَاُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ﴾ [آلعمران :۷]۔

ددے درے واړو خبرو منافات نشته اوله خبره هم صحیح ده چه ټول قرآن محکم دے پدے معنیٰ چه ددے نظم او ترتیب کلك او مضبوط دے هیڅ قسم لفظی او معنوی خطائی پکښې نشته، گویا کښې داسے مضبوط آبادے (بلډنگ) دے چه هیڅ وهن او کمزورتیا او چاودل پکښې نشی راتلے۔

او دویمه خبره هم صحیح ده چه ټول قرآن متشابه دے پدے معنیٰ چه د قرآن بعض آیتونه د بعضو سره مشابه دی په مضبوطوالی او حسن او ښائست کښې او دا چه الفاظ او معانی ئے د حد الاعجاز اعلیٰ درجے ته رسیدلی دی۔

او دریمه خبره هم صحیح ده چه بعض آیتونه ئے متشابه او بعض محکم دی ځکه ددے معنیٰ دا ده چه د قرآن د بعض آیتونونه د الله تعالیٰ مراد او مقصد زر واضح کیږی او بعض هغه دی چه د هغے دلالت په معنیٰ مراد د الله تعالیٰ باندے بندگانو ته زر نۀ واضح کیږی۔ نو اول محکم شو او دویم متشابه شو۔

بیا محکم کله مقابل د منسوخ کښې استعمالیږی، یعنی دا آیت محکم دے مطلب دا وی چه دا آیت منسوخ نۀ دے او کله محکم مقابل د متشابه استعمالیږی۔ معنیٰ دا وی چه هغه نصوص (الفاظ) د کتاب او سنت چه د هغے معنیٰ واضحه وی چه هیڅ خفاء او پټوالے پکښې نۀ وی۔

## تعریفات المحکم والمتشابه

۱- بعض اهل علم فرمائی :

[اَلۡمُحۡكَمُ : اَلۡوَاضِحُ الدَّلَالَةِ الظَّاهِرُ الَّذِیۡ لَا يَحۡتَمِلُ النَّسۡخَ وَالۡمُتَشَابِهُ هُوَ الۡخَفِیُّ الَّذِیۡ لَايُدۡرَكُ مَعۡنَاهُ عَقۡلًا وَلَانَقۡلًا وَهُوَ مَا اسۡتَأۡثَرَ اللّٰهُ تَعَالٰى بِعِلۡمِهٖ كَقِيَامِ السَّاعَةِ وَالۡحُرُوۡفِ الۡمُقَطَّعَةِ فِیۡ اَوَائِلِ السُّوَرِ]۔

(محکم هغه دے چه دلالت ئے په معنیٰ مراده د الله تعالیٰ باندے واضح او ظاهر وی، احتمال د منسوخ کیدو نۀ لری، او متشابه هغه دے چه معنی مراده ئے داسے پټه وی چه

عقلًا او نقلًا نهٔ معلومیږی، او الله تعالیٰ ځان پورے د هغے علم خاص کړے وی لکه د قیامت راتلل یا لکه حروف مقطعات شو په ابتداء د سورتونو کښې) علامه آلوسیؒ فرمائی : دا زایه د احنافو علماؤ ده۔

۲- [اَلْمُحْكَمُ مَا لَايَحْتَمِلُ اِلَّا وَجْهًا وَاحِدًا مِنَ التَّأْوِيْلِ اَمَّا الْمُتَشَابِهُ فَهُوَ مَا احْتَمَلَ اَوْجُهًا] ۔

(عبد الله بن عباسؓ ته منسوب دی چه محکم هغه ته وائی چه صرف یو احتمال لری (یعنی ډیرے معانی پکښې نشی راتلے) او متشابه هغه ته وائی چه په هغے کښې ډیر احتمالات او معانی راتلے شی) دا قول د اکثرو اصولینو دے۔

۳- بعض وائی :

[اَلْمُحْكَمُ مَا اسْتَقَلَّ بِنَفْسِهٖ وَلَمْ يَحْتَجْ اِلَى بَيَانٍ، وَالْمُتَشَابِهُ هُوَ الَّذِیْ لَايَسْتَقِلُّ بِنَفْسِهٖ، بَلْ يَحْتَاجُ اِلَى بَيَانٍ فَتَارَةً يُبَيَّنُ بِكَذَا وَتَارَةً يُبَيَّنُ بِكَذَا]۔

(محکم هغه ته وئیلے شی چه خپله مستقل وی او بیان ته ئے حاجت نهٔ وی او متشابه هغه دے چه خپله مستقل نهٔ وی بلکه بیان ته ئے حاجت وی نو کله ئے یو شان بیان کیږی او کله بل شان۔ یعنی کله ئے یو مصداق ذکر کیږی او کله بل) ځکه ددے په تاویل کښې اختلاف وی۔ دا قول د امام احمدؒ نه نقل دے۔

۵- امام رازیؒ فرمائی :[اَلْمُحْكَمُ مَا كَانَتْ دَلَالَتُهٗ رَاجِحَةً وَهُوَ النَّصُّ وَالظَّاهِرُ، وَالْمُتَشَابِهُ مَا كَانَتْ دَلَالَتُهٗ غَيْرَ رَاجِحَةٍ وَهُوَ الْمُجْمَلُ وَالْمُؤَوَّلُ وَالْمُشْكِلُ]۔ (محکم هغه دے چه دلالت ئے په معنیٰ مراده باندے راجح وی نو دا شامل دے نص ته هم او ظاهر ته هم۔ او متشابه هغه دے چه دلالت ئے په معنیٰ مراده باندے راجح نهٔ وی او دا مجمل، مؤول او مشکل ټولو ته شامل دے)۔

## انواع المتشابهات :

### [ د متشابهاتو اقسام ]

متشابهات په درے قسمه دی (۱) اول دا چه د ټولو انسانانو علم هغے ته نشی رسیدلے لکه علم د الله تعالیٰ په ذات او حقائق د صفاتو د هغه یا لکه علم شو په وقت د قیامت، او دغه شان حالات د قبر او جنت او جهنم او نور غیبی خبرے چه د هغے علم الله تعالیٰ پورے خاص دے۔ او ددے مثال حروف مقطعات هم دی۔

(۲) دویم قسم : هغه دی چه هر انسان طاقت لري چه هغه اُوپیژني په طریقه د بحث او تالاش سره لکه هغه متشابهات شو چه په هغې کښې اجمال او بسط او ترتیب وغیره وي۔ ددې مثال لکه الفاظ غریبه (ناشنا کلمات) او مغلق احکام چه زر نهٔ معلومیږي۔ (او ددې مثال هر آیت چه دوه احتماله لري صحیح او غلط لکه ددې بیان روستو راځي)۔

(۳) دریم قسم هغه دی چه خواص علماء او راسخین فی العلم ئې پیژني نهٔ عوام۔ لکه هغه اسرار او حکمتونه چه خواص بندګان ئې په وخت د تدبر کولو د کتاب الله نه راوباسي۔

لکه دې ته اشاره شویده پدې قول د رسول الله ﷺ کښې علي بن ابي طالب او ابن عباسؓ ته : [اَللّٰهُمَّ فَقِّهْهُ فی الدِّین وعَلِّمْهُ التاویل]۔ (اې الله ! ته د په دین کښې پوهه ورکړې او د خپل کتاب په تفسیر باندې ئې پوهه کړې)۔

## حکمة نزول المتشابهات :

[ د متشابهاتو د نازلیدو حکمت ]

پدې مقام کښې باطل پرست خلق دا اعتراض کوي چه هرکله الله تعالیٰ قرآن کریم د خلقود هدایت دپاره رالیږلې دې نو بیا ولې ئې پکښې متشابهات راوړیدي ؟۔

ددې جواب دا دې چه په قرآن کریم کښې د متشابهاتو په نازلولو کښې ډیر حکمتونه دي غوره پکښې دا دي :

۱ – [اَلْاِبْتِلَاءُ وَالْاِخْتِبَارُ يَعْنِىْ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَهٗ مُخْتَبِرًا بِهٖ عِبَادَهٗ فَاَمَّا الْمُؤْمِنُ فَلَا يُدَاخِلُهٗ فِيْهِ شَكٌّ وَلَايَعْتَرِيْهِ رَيْبٌ الخ]۔

(یعني الله تعالیٰ په دې سره په بندګانو امتحان کوي نو مؤمن ته خو پکښې هیڅ شك او شبهه نهٔ راپیدا کیږي ځکه دا دوه قسمه دي یو هغه چه قادر وي چه دا متشابه راجع کړي محکم ته او که محکم ته ددې په واپس کولو باندې قادر نهٔ وي او په معنیٰ ئې نهٔ پوهیږي نو بیا وائي چه (آمنا به کل من عند ربنا) یعني مونږ پرې ایمان لرو او دا ټول د الله تعالیٰ د طرف نه دي۔ نو بیا هم دده دپاره فائده او خیر دې ځکه چه پدې سره به ئې ثواب او اجر زیاتیږي۔ او منافق پکښې شك پیدا کړي نو بس تاواني شي او هرچه اهل زیغ دي لکه مبتدعین وغیره نو هغوی د متشابهاتو پسې روان شي چه ددې په وجه خلق د قرآن او صحیح سنت نه واړوي او د خپل بدعت مطابق ئې معنی اُوکړي او دا حکمة د سورة آل

عمران (۷) آیت نه معلومیږی.
﴿هُوَ الَّذِیْ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آیَاتٌ مُحْكَمَاتٌ الخ﴾.
(۲) دویم حکمة: [اِنَّ فِیْ اِنْزَالِ الْمُتَشَابِهَاتِ اِظْهَاراً لِفَضْلِ الْعُلَمَاءِ وَتَفَاضُلِهِمْ فِیْمَا بَیْنَهُمْ، وَفِیْهِ اَیْضًا تَعْرِیْضُهُمْ لِمَزِیْدِ الْمَشَقَّةِ وَالصُّعُوْبَةِ فِیْ مَعْرِفَةِ الْحَقِّ مِنْهَا فَیَعْظُمُ اَجْرُهُمْ وَیَرْتَفِعُ عِنْدَ اللّٰهِ شَأْنُهُمْ]
[الطعن فی القرآن ص [۹٤] والاتقان فی علوم القرآن [۲/۳۰]].
(د متشابهاتو په نازلولو کښې د علماء کرامو د فضیلت اظهار دے او په دے سره د هغوی د درجو تر مینځ جدا والے راځی، او علماء کرام په دے باندے مکلف کول او مشقت کښې اچول دی چه تاسو ددے نه حکم معلوم کړئ نو ستاسو اجر به لوئی شی او ستاسو مرتبه به د الله تعالیٰ په نیز اُوچته شی).
دارنګه په متشابهاتو سره ډیر علوم مینځ ته راځی هر عالم به د خپل علم مطابق د آیت او حدیث نه احکام مستنبط کوی او د هغے نه به ئے په تدبر سره راوباسی نوځکه الله تعالیٰ بعض داسے آیتونه رالیږلی دی چه هغه د ډیرو مطلبونو او معانیو احتمال لری. او په دے کښې علماؤ ته د استنباط موقع ورکوی چه تاسو ددے نه باریکے معانی راوباسئ.
او که ټول قرآن محکم نازل شوے وے او هیڅ متشابه پکښې نۀ وے نو بیا به ددے په پیژندلو کښې عالم او جاهل برابر وے.
(۳) دریم امام رازیؒ ذکر کړیدے:
[لَوْ كَانَ الْقُرْآنُ كُلُّهٗ مُحْكَمًا بِالْكُلِّیَّةِ لَمَا كَانَ مُطَابِقًا اِلَّا لِمَذْهَبٍ وَاحِدٍ وَكَانَ بِصَرِیْحِهٖ مُبْطِلًا لِجَمِیْعِ الْمَذَاهِبِ الْمُخَالِفَةِ لَهٗ وَذٰلِكَ مُنَفِّرٌ لِاَرْبَابِ الْمَذَاهِبِ الْاُخْرٰی عَنِ النَّظْرِ فِیْهِ، اَمَّا وُجُوْدُ الْمُتَشَابِهِ وَالْمُحْكَمُ فِیْهِ فَیَطْمَعُ كُلُّ ذِیْ مَذْهَبٍ اَنْ یَّجِدَ فِیْهِ كُلَّ مَا یُؤَیِّدُ مَذْهَبَهٗ، فَیَضْطَرُّ اِلَی النَّظْرِ فِیْهِ وَقَدْ یَتَخَلَّصُ الْمُبْطِلُ عَنْ بَاطِلِهٖ اِذَا اَمْعَنَ فِیْهِ النَّظْرُ، فَیَصِلُ اِلَی الْحَقِّ]
[الطعن فی القرآن الکریم ص (۹٤) ومناهل العرفان [۵۳۸]].
(یعنی که ټول قرآن بالکلیه محکم وے نو بیا به صرف د یو مذهب مطابق وے او ددے مذهب نه چه کوم مخالف مذاهب وے نو هغه به ئے صراحةً باطل کولے، نو په دے سره به نفرت پیدا شوے وے د نورو مذاهبو والو نو هغوی به قرآن له ګوتے نۀ وروړلے او خوا له به ورله نۀ راتلے، خوکله چه په قرآن کښې محکمات هم شته او متشابهات هم نو هر مذهب والا دا طمع لری چه زما د مذهب تائید به پکښې موجود وی نو په دے سره به هغه په قرآن کښې نظر

كـولـو تـه مـجبوره شي نو كله به باطل پرست د باطل نه خلاص شي كله چه په قرآن كښې جوخت نظر اُوكړي نو بس حق ته به اُورسي)۔

(٤) بـعـض متشـابهـاتـو كـښې حـكـمة دا وى چـه دليـل شي په عجز د انسان او د هغه په جهالـت بـانـدے چه كه ددۀ استعداد او قابليت هر څومره غټ شي او علم ئے هرڅومره ډير شي خـو بيـا هـم د ډيـرو خبـرو د پـوهـے نـه عاجز دے او دا به دليل وى په قدرت او علم د الله تـعالىٰ باندے چه د هغه سره دومره علم دے چه انسان د هغه د علم احاطه نشي كولے۔ (دا د هغه متشابهاتو حكمة دے چه معنىٰ ئے معلومه نۀ وى لكه حروف مقطعات وغيره)۔

(٥) [إِنَّ الْـمُتَشَـابِهَـاتِ لَيْسَـتْ فِـى الْأُمُـوْرِ الْـمَطْلُوْبَةِ مِنَ الْمُكَلَّفِ الْعَمَلُ بِهَا، وَإِنَّمَا هِيَ فِيْ بَعْضِ الْأُمُـوْرِ الْعَقَدِيَّةِ الَّتِيْ يُطَالَبُ فِيْهَا الْمُكَلَّفُ بِالتَّفْوِيْضِ وَالتَّسْلِيْمِ لِلّٰهِ تَعَالٰى فِيْهَا، وَيَقُوْلُ (آمَنَّا بِهٖ كُلٌّ مِنْ عِنْدِ رَبِّنَا) [الطعن فى القرآن ص [٩٥]۔

( متشـابهات په هغه كارونو كښې نشته چه هغے باندے د عمل كولو مطالبه د مكلف نه شوے وى بـلـكـه دا صـرف پـه هـغـه عقيدوى امورو كښې وى چه د مكلف نه ئے دا مطالبه شـويـده چـه دا كـارونـه الله تـعالىٰ ته اُوسپاره او داسے اُووايه : مونږ پدے سره ايمان راوړے دا ټول زمونږ د رب د طرف نه دى)۔

(٦) فخر الدين الرازيؒ ذكر كړيدى : [مَتٰى كَانَتِ الْمُتَشَابِهَاتُ مَوْجُوْدَةً كَانَ الْوُصُوْلُ إِلَى الْحَقِّ أَصْعَبَ وَأَشَقَّ، وَزِيَادَةُ الْمَشَقَّةِ تُوْجِبُ مَزِيْدَ الثَّوَابِ، قَالَ تَعَالٰى: أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جَاهَدُوْا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِيْنَ] [آلعمران :۲: ۱٤۲] [الطعن فى القرآن]۔

(كـلـه چه قرآن كريم كښې متشابهات موجود وى نو پدے سره به حق ته رسيدل ګران وى او مشقت والا به وى او څومره چه مشقت زيات وى نو اجر به زياتيږى)۔

(٧) [أَلْقُـرْآنُ إِذَا كَـانَ مُشْتَـمِلاً عَـلَى الْمُتَشَابِهِ، اِفْتَقَرَ إِلَى الْعِلْمِ بِطَرِيْقِ التَّأْوِيْلَاتِ، وَتَرْجِيْحِ بَعْضِهَا عَـلٰى بَعْضٍ، وَافْتَـقَرَ فِيْ تَعَلُّمِ ذٰلِكَ إِلٰى عُلُوْمٍ كَثِيْرَةٍ مِنْ عِلْمِ اللُّغَةِ وَالنَّحْوِ وَالصَّرْفِ وَالْمَعَانِيْ وَالْبَيَانِ الخ] [الطعن فى القرآن]۔

(كله چه قرآن كښې متشابهات شته نو پدے سره به بنده محتاج وى چه پدے باندے علم راولى پـه طـريـقه د تاويلاتو او احتمالاتو سره او بعضو له به په بعضو ترجيح وركوى او دا كـار هـلـه كيـږى چه انسان ددے دپاره علوم زده كړى چه هغه علم اللغة او نحو او صرف او مـعـانـى او بيـان دى۔ چـه طـريـقـه د تاويل اُوپيژنى۔ نو اُوګوره متشابهاتو سره نورو علوم

راپیدا کیږی۔

(۸) امام رازیؒ وائی : [بِاشْتِمَالِ الْقُرْآنِ عَلَى الْمُحْكَمِ وَالْمُتَشَابِهِ يَضْطَرُّ النَّاظِرُ فِيهِ إِلَى الْاِسْتِعَانَةِ بِالْاَدِلَّةِ الْعَقْلِيَّةِ، فَيَتَخَلَّصُ مِنْ ظُلْمَةِ التَّقْلِيدِ، وَفِيْ ذٰلِكَ تَنْوِيهٌ بِشَأْنِ الْعَقْلِ وَالتَّعْوِيلُ عَلَيْهِ، وَلَوْ كَانَ كُلُّهُ مُحْكَمًا لَمَا احْتَاجَ إِلَى الدَّلَالَةِ الْعَقْلِيَّةِ، وَلَظَلَّ الْعَقْلُ مُهْمَلاً،آه]

[مناهل العرفان ۵۳۹/۲]۔

(قرآن کښې محکم او متشابه موجود دی دے دپاره چه پدے کښې کتونکے ددے په معلومات کښې د عقلی ذلیلونو نه مدد واخلی او پدے سره د تقلید د تیارو نه اُوځی نو پدے کښې د عقل عظمت شان ذکر دے نو که قرآن ټول محکم شی نو بیا به عقلی دلیل ته حاجت رانشی او عقل به بیکاره شے اُوګرځی)۔

(۹) [فِيهِ تَحْقِيقُ إِعْجَازِ الْقُرْآنِ لِاَنَّ كُلَّ مَا اسْتَتْبَعَ فِيهِ شَيْئًا مِنَ الْخَفَاءِ الْمُؤَدِّيْ إِلَى التَّشَابُهِ لَهٗ مَدْخَلٌ عَظِيمٌ فِيْ بَلَاغَتِهٖ وَبُلُوْغِهِ الطَّرَفَ الْاَعْلٰى فِي الْبَيَانِ] [مناهل]۔

(متشابه چه په قرآن کښې راغلی دی نو پدے سره د قرآن کریم اعجاز ښه مضبوط شویدے ځکه چه کوم الفاظو کښې چه داسے خفاء او پټوالے وی چه هغه احتمال د ډیرو معانیو لری نو په بلاغت کښې ددے لوئی دخل وی او دا په بیان او وضاحت کښې اعلیٰ طرف ته رسیدلے وی) ځکه چه دغه کلام مشتمل وی پداسے نکتو او لوازم او خواصو باندے چه هغه اعلیٰ درجه د بلاغت وی۔ او ددے تشریح په کتابونو د بلاغت کښې ذکر کیږی۔

د متشابهاتو مثالونه چه محکماتو ته واپس کولے شی او مبتدعینو د هغے نه غلط استدلالات کړیدی هغه به په تفسیر د سورة آل عمران کښې راشی ان شاء الله تعالیٰ۔

## ۲۰- الامر العشرون : هل فی القرآن مجاز ام لا ؟۔

### [ آیا په قرآن کښې مجاز شته ؟ ]

دا هم یو مهم بحث دے چه ډیرو مبتدعینو ترے غلطه فائده اخستے ده، دا علمی بحث دے پدے وجه که عوام ورونه پدے پوهه نشی نو معذرت غواړو :

(۱) اکثر اهلِ علم وائی چه لفظ عربی په دوه قسمه دے یو حقیقت دے او بل مجاز۔ او حقیقت دیته وائی چه لفظ د یو معنیٰ دپاره وضع شوے وی۔ او په همدے معنیٰ کښې

استعمال شی او مجاز دیته وائی چه دغه لفظ په غیر معنیٰ موضوع له کښې استعمال شی د وجه د یوے قرینے نه۔ او دا په کلام عربی کښې موجود دے لکه مثلًا ته اُووائے : [رَأَيْتُ اَسَدًا]۔ (ما زمرے اُولیدو) او ستا مراد ددے نه یو بهادر سړے وی، نو اُوګوره د اسد لفظ خپله معنیٰ زمرے دے (یعنی حیوان مفترس) هغه حیوان چه شوکول کوی)۔ دلته لفظ د اسد استعمال شو د خپلے معنیٰ نه علاوه په بله معنیٰ کښې چه هغه بهادر شخص دے نو دا مجاز شو۔

۲- دارنګه آیت کښې دی : ﴿مِمَّا تُنۢبِتُ الْاَرْضُ﴾۔ (زمکه رازرغون کوی) نو اُوګوره رازرغون کونکے خو الله تعالیٰ دے او دلته ئے نسبت زمکے ته شویدے۔

۳- ﴿يُرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ فَاَقَامَهٗ﴾ (دیوال پریوتو ته مائل وو نو خضر علیه السلام برابر کړو) نو اُوګوره اراده کول صفت د ذی روح شی دے او دلته ئے د دیوال دپاره استعمال کړیده۔ نو دا استعمال د لفظ شو په غیر معنی موضوع له کښې نو بس دا مجاز شو۔ دغه شان نور ډیر مثالونه واخله لکه القریه لفظ کلی دپاره وضع شویدے او بیا استعمالیږی په معنیٰ د کلی اُوسیدونکی خلقو کښې۔

(۲) لیکن صحیح خبره دا ده چه په قرآن کریم کښې لا څه چه په لغت عربی کښې مجاز نشته۔

**دلائل -اول دلیل :** دا دے چه تقسیم د لفظ حقیقة او مجاز ته بدعت دے او دا په کلام د عربیؤ کښې یوه نوے اصطلاح راوستل دی چه نۀ د نبی ﷺ نه نقل ده او نه د صحابه کرامو او نۀ د تابعینو او نۀ د تبع تابعینو نه او نۀ د هغه امامانو نه چه هغه مشهور دی په علم کښې او نۀ د ائمه اربعهؒ نه او نۀ د ثوریؒ، اوزاعیؒ، ابوحنیفهؒ، او شافعیؒ نه ثابت دے بلکه د لغت د امامانو نه هم ددے ثبوت نۀ ملاویږی لکه خلیل، سیبویه، ابوعمرو بن العلاء وغیره۔

نو په لغت کښې بیا په قرآن کریم کښې داسے اصطلاح بیانول چه هغه د هیڅ اهل لغت او امام نه ثابته نۀ وی دا افتراء ده په هغه علماؤ باندے، صرف ابوعبیده معمر بن المثنیٰ نه منسوب دی چه هغه په خپل کتاب کښې په لفظ د مجاز باندے تکلم او تلفظ کړیدے لیکن د هغه مقصد هم د مجاز نه هغه مجاز نۀ دے کوم چه مقابل د حقیقت دے بلکه هغه د مجاز الآیة نه مراد هغه الفاظ اخستی دی چه په هغے سره د آیت نه تعبیر کیږی۔

نو چا چه دا خبره اُوکړه چه اهل لغت دا وائی چه دا لفظ حقیقة دے او دا مجاز دے نو دا په هغوی باندے افتراء ده ځکه اهل لغت او سلف الامة او علماء السلف هیڅ کله دا خبره نۀ

ده کړے بلکه دا یوه مبتدعه اصطلاح ده، او د معتزلو نه نقل ده۔

پدے امت کښې امام شافعیؒ هغه اولنۍ شخصیت دے چې په اصول الفقه کښې اول هغه خبرے کړیدی او هغه چرته دا تقسیم نۀ دے کړے۔ او نه ئې په لفظ د حقیقت او مجاز باندے تلفظ کړیدے دغه شان محمد بن الحسن الشیبانیؒ په الجامع الکبیر کښې هغه مسائل ذکر کړیدی چه هغه په کلام عربي باندے مبني دی او هغه پکښې حقیقة او مجاز نۀ دے ذکر کړے۔ نو احناف وغیره چه دا خبره کوی چه مجاز خلیفه د حقیقت دے په حق د تلفظ کښې په نیز د ابوحنیفةؒ او خلیفه د حکم دے په نیز د صاحبینو نو دا په هغوی باندے افتراء ده۔ او هغوی ددے تقسیم نه خبر هم نۀ وو۔ که څوك اُووائي چه د امام احمد بن حنبلؒ نه خو نقل دی چه هغه په کتاب (الرد علی الجهمیه) کښې وئیلی دی چه (انا، او نحن او ددے په شان الفاظ په قرآن کریم کښې د مجاز اللغة نه دی، لکه یو تن د خپل ځان دپاره د جمعے صیغه استعمالوی او داسے وائي [اِنَّا سَنُعْطِيْكَ، اِنَّا سَنَفْعَلُ] ۔(مونږ به ئې درکړو او مونږ به ئې اُوکړو)۔

ددے جواب دا دے چه د امام احمد د شاګردانو نه ابوالحسن الجزريؒ، ابو عبد الله بن حامدؒ، او ابو الفضل التمیمي بن ابی الحسن التمیميؒ وئیلی دی چه د امام احمدؒ د مجاز اللغة نه مراد معنیٰ لغوی ده یعنی دا استعمال هم په لغت کښې جائز دے چه یو تن ځان دپاره د جمع صیغه استعمال کړی [ای مِمَّا یَجُوزُ فِی اللُّغَةِ]۔

او دغه اصطلاح ئې هیڅ کله مراد نۀ ده چه مجاز نه مراد مقابل د حقیقت دے۔ ځکه که دا ئې مراد وے نو په بل ځائے کښې به ئې هم دغه استعمال کړے وے او حال دا چه د هغه نه په ټول کتاب کښې هیڅ یو ځائے کښې اصطلاح د حقیقة او مجاز نۀ ده ثابته۔ بلکه تقسیم د لفظ حقیقة او مجاز ته دا اصطلاح په څلورمه صدیٔ کښې ایجاد شویده چه ابتداء ئې په آخر د دریمه صدیٔ کښې شویده۔ ددے وجه نه مشهور امامانو لکه محمد بن خویز منداد وغیره د مالکیه ؤ نه او داود بن علي، او د هغه ځوی ابوبکر او منذر بن سعید البلوطي ددے نه منع کوی چه په قرآن کښې دے مجاز راشي او بلوطي صاحب پدے باندے کتاب هم لیکلے دے۔

۲ - **دلیل** : دا تقسیم د لفظ حقیقة او مجاز ته فرع ددے دے چه فرق اُوشي په مابین د وضع او استعمال کښې او حال دا چه پدے فرق باندے هیڅ دلیل نشته۔ ددے تفصیل دا دے چه دوی وائي حقیقت دیته وئیلے شي چه لفظ اولاً وضع شي د یوے معنیٰ دپاره بیا

استـعـمـال شي په بـلـه مـعـنیٰ کښې۔ نو استعمال ئې په اوله معنی کښې حقیقت دے او په دویمه معنیٰ کښې مجاز دے۔ نو دوی فرق کوی په مابین د وضع او استعمال کښې او حال دا چه دا فرق غلط دے ځکه په دنیا کښې صرف او صرف استعمال شته او وضع بعینهٖ همدغه استعمال دے، جدا شے نهٔ دے۔ ځکه چه صحیح مذهب دا دے چه انسانانو ته لغات او ژبے الله تعالیٰ ورکړیدی لکه الله تعالیٰ فرمائی: ﴿عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ﴾ [النمل ۱٦] ﴿قَالُوْا اَنْطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِیْ اَنْطَقَ كُلَّ شَیْءٍ﴾ [فصلت ۲۱] - ﴿اَلَّذِیْ خَلَقَ فَسَوّٰی - وَالَّذِیْ قَدَّرَ فَهَدٰی﴾ [الاعلی : ۳/۲] ﴿اَلرَّحْمٰنِ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ خَلَقَ الْاِنْسَانَ عَلَّمَهُ الْبَیَانَ﴾ [الرحمن : ۱-٤]۔

دا آیتـونـه دلیـل دی چه انسانانو وغیرو ته ژبے الله تعالیٰ ورزده کړیدی نو د کوم وخت نه چه الله تعالیٰ آدم علیه السلام تـه ژبـه ورزده کـړه نـو د هغه وخت نه هغه استعمال هم کړه نو دغه استـعـمـال ته بعینهٖ وضع وائی۔ او داسے هیڅ کله نهٔ ده چه مثلاً څه خلق دے راجمع شوی وی او الـفـاظ عـربـی دے ئے اول د یوے معنیٰ دپاره وضع کړی وی مثلاً داسے دے وئیلی وی چه لـفـظ د اسـد اول کـښې زمـری ته وئیلے شي او بیا دے نور خلق راغلی وی او هغوی دے دغـه لفظ د اسد په بهادر انسان کښې استعمال کړی وی پدے فرق بانْدے دلیـل نشته۔ بلکه د کوم وخت نه چه انسان اسد لفظ استعمال کړو نو دا ئے زمری ته هم وئیلو او د بهادر دپاره ئے هم استعمال کړو۔ او دا فرق د هیڅ اهل لسان نه نهٔ دے نقل۔ بلکه هر بچے چه کله پیدا شي نـو کله چه زمانے د تمییز ته اُورسیږی نو د مور پلار یا د مربی نه اَوری چه هغه الفاظ وائـی او یـوے مـعـنـی تـه اشاره کـوی نـو دا بـچے دا فـهـموی چه دا لفظ ددے معنیٰ دپاره استـعـمالیږی او ددے متکلم ددے لفظ نه همدا معنی مراده وی، بیا یو یو لفظ اوری تردے چه د هغه قوم ټول لغات واوری کوم کښې چه دا لوئی کیږی بغیر ددے نه چه قوم دده دپاره مخکښې نه یو اصطلاح وضع کړی وی۔

دارنـګـه بیـا دوی وائی چه یو لفظ چه د یوے معنیٰ دپاره وضع شي او لا استعمال شوے نهٔ وی نـو دا لـفـظ قبـل الاستعمال نهٔ حقیقت دے او نهٔ مجاز دے۔ نو مونږ وایو چه دا کوم لفظ دے چه د یـوے معنیٰ دپاره وضع شوے وی او لا استعمال شوے نهٔ وی مثلاً دغه لفظ د اسد وضع شـوے وی دپـاره د زمـری او لا پـه زمـری کـښې استعمال شوے نهٔ وی۔ بلکه کله نه چه عـربـی انسان زمرے لیدلے دے نو دغه لفظ ئے ورله استعمال کړیدے۔ نو انسان ته مثلاً د اول نـه د اسـد پـه لیـدلـو سره دا خـودلـی دی چه دے تـه بـه زمرے وئیلے شي نو دا وضع (یعنی کیخودل د لفظ د معنیٰ دپاره) بعینهٖ استعمال دے۔

نو معلومه شوه چه الله تعالیٰ بنی نوع انسان ته دا الهام کړیدے چه دوی تعبیر اُوکړی د خپلو مقاصدو او ارادو نه په خپلو الفاظو سره او دا اول د دوی پلار آدم علیه السلام زده کړی وو، او بیا اولادو هم د هغه په شان زده کړل اګرکه لغات به مختلف وو. لکه الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته وحی په عبرانئ کښې کړے وه او محمد ﷺ ته ئے په عربی کښې اُوکړه او دواړه د الله تعالیٰ کلام دے. نو چا چه دا دعوی اُوکړه چه وضع مقدم ده په استعمال باندے نو دا یے علمه خبره کوی بلکه انسانانو ته معلوم شے صرف استعمال دے.

۳- **دلیل** : دوی وائی چه حقیقت د مجاز نه پدے باندے جدا کیږی چه په حقیقت کښې په استعمال د لفظ سره اکتفاء کیږی او قرینے ته ئے ضرورت نهٔ وی او په مجاز کښې قرینه وی. نو دا هم دلیل دے چه خبره ټوله متعلق ده د استعمال پورے نهٔ د وضع متقدم پورے.

دویم دا چه : ددے تقسیم دپاره هیڅ حقیقت نشته او چا چه د حقیقت او مجاز ترمینځ فرق کړیدے نو د هغوی دپاره څه صحیح حد نشته چه په هغے سره حقیقت د مجاز نه جدا شی نو معلومه شوه چه دا تقسیم باطل دے. او دا د هغه چا تقسیم دے چه خبرے کوی او سوچ پرے نهٔ کوی بلکه یے علمه لګیا وی، څکه چه دوی وائی : حقیقة هغه لفظ دے چه مستعمل شی په ما وضع له کښې او مجاز هغه لفظ دے چه مستعمل شی په غیر ما وضع له کښې نو دوی پدے کښې محتاج دی چه اثبات د وضع سابق اُوکړی په استعمال. او دا کار ګران دے.

۳- بله دا چه دوی پخپله دا فرق باطل کړیدے او هغه داسے چه دوی حقیقت درے قسمه کوی حقیقت لغویه او عرفیه او شرعیه. د حقیقت عرفیه تعریف دا کوی چه په عرف عام کښې یو لفظ دلالت اُوکړی په یوه معنیٰ باندے نهٔ په لغت کښې. او دغه معنیٰ به کله د لغوی معنی نه عامه وی او کله به خاص وی او کله به ترے مباینه نهٔ وی لیکن د دواړو ترمینځ به علاقه وی چه د هغے د وجه نه به استعمال شوے وی لکه ددے مثال لفظ د ظعینه دے چه دا په لغت کښې نوم د داپے وو بیا دوی هغه ښځے ته دا نوم ورکړو کومه چه پدے باندے سوریږی نو دا حقیقة عرفی د څه خلقو حقیقت نهٔ دے چه هغوی ددے په نقل کولو باندے اتفاق کړے وی بلکه بعض کسانو پدے باندے تلفظ اُوکړو او د سورے زنانه دپاره ئے استعمال کړو او بیا دغه استعمال مشهور شو نو حقیقت عرفی اُوګرځیدو. لکه دوی دا خبره هم کوی چه کله په بعض الفاظو باندے استعمال غلبه اُوکړی نو په هغه لفظ کښې معنیٰ ډیره مشهوره شی او چه مطلقاً ذکر شی نو همدغه مشهوره معنیٰ ئے مرادہ

وی نوگوره دلته حقیقت عرفی ناسخ شو د حقیقت لغوی دپاره، نو دے حقیقت عرفی هغه حقیقت لغوی ختم کړو۔ نو دلته يو استعمال بل استعمال لره ختم کړو سره ددے نه چه دلته ددے استعمال نه مخکښ وضع نشته۔ نو دا قاعده ئے هم خطاء شوه چه د هر مجاز دپاره حقیقت ضروری دے۔

**سوال :** دوی وائی چه د حقیقت او د مجاز فرق شته پدے طریقه چه حقیقت هغه دے چه د قرینو نه خالی وی او مجاز کښ قرینه ضروری وی، دارنګه حقیقت هغه دے چه معنیٰ ئے د مطلق لفظ نه معلومیږی او مجاز هغه دے چه معنیٰ ئے هله معلومیږی چه قید ورسره اُولګولے شی۔ دارنګه حقیقت هغه دے چه کله مطلق ذکر شی نو ذهن هغے ته سبقت کوی او مجاز هغه دے چه ذهن هغے ته سبقت نهٔ کوی۔

**جواب :** مونږ تپوس کوو چه د تجرید عن القرائن او اقتران بالقرائن نه ستاسو څه مراد دے؟ که ددے نه لفظی قرینے مراد وی لکه مثلاً د اضافت سره استعمالیږی یا د لام التعریف سره یا د فاعل او مفعول او مبتداء او خبر سره مقرون استعمالیږی نو بیا خو په مرکب کلام کښ هیڅ یو اسم نشته مګر هغه ضرور مقید دے په یو لفظی قید سره دغه شان فعل هم مقید استعمالیږی کله د فاعل سره او کله د مفعول به او کله د ظرف او مفعول معه او حال وغیره سره نو فعل هم مقید دے او دغه شان حرف خو بالکلیه مقید راځی۔ نو بناء پدے هر اسم او فعل او حرف چه په کلام عربی وغیره کښ استعمالیږی نو هغه مقید استعمالیږی او مطلق پکښ نشته نو اُوس دا وئیل به خطاء وی چه حقیقی لفظ هغه دے چه مطلقاً د هرے قرینے نه خالی وی، او مجاز هغه دے چه قرینه ورسره وی۔ خو که دوی اُووائی مراد زمونږ بعض قرینے دی نهٔ بعض۔ نو جواب دا دے چه ته مونږ ته هغه قرینه اُوښایه چه د هغے سره لفظ حقیقت ګرځی او هغه قرینه چه د هغے سره لفظ مجاز ګرځی۔ او دا هیڅ کله نشی خودلے۔

بیا که دوی اُووائی چه صحیح ده چه د هر حقیقت سره هم قرینه شته او مجاز سره هم شته لیکن زمونږ مراد قرائن متصله او منفصله دی نو که یو لفظ سره قرینه متصله راغله، دا به حقیقت وی او که قرینه منفصله (بعیده) راغله نو دا به مجاز وی۔ نو مونږ ورته جواب کښ وایو چه ستا د متصلے قرینے نه څه مراد دے ؟ لفظی مراد کوے او که هغه قرینه چه د خطاب په وخت کښ موجوده وی یعنی قرینه معنوی۔

نو که قرینه لفظی مراد کوے کومه چه د لفظ نه معلومیږی او لفظ پرے دلالت کوی نو

بیا خو ددے نه دا لازمیږی چه کومه قرینه د حال د متکلم نه یا د اَوریدونکی نه معلومیږی نو هغه به قرینه منفصله وی مثلًا یو لفظ په الف لام تعریفی سره استعمال شی او متکلم او مخاطب دواړو ته هغه شخص معلوم وی نو دا دِے مجاز شی لکه مثلًا اُووئیلے شی (قَالَ النَّبِیُّ ﷺ)۔

(نو دلته د مسلمانانو په نیز ددے نه مراد رسول الله ﷺ دے) او دغه شان کله چه (الصدیق) استعمال شی نو د مسلمانانو په نیز ددے نه ابوبکر صدیق مراد وی دارنګه یو سړے خپل ملګری ته اُووائی (اذهب الی الامیر او القاضی او الوالی) او مراد دده دا وی چه هغه امیر او قاضی او والی ته لاړ شه چه ما او تا ته معلوم دے نو پکار دا ده چه دا دِے مجاز شی ځکه چه دلته هم معلومات د حال د مخاطب نه اُوشو نهٔ د لفظ نه۔ او حال دا چه دا خو ستاسو په نیز هم مجاز نهٔ دے۔

او دغه شان چه یو ضمیر یو معلوم شی ته راجع شی چه هغه مخکښ ذکر نهٔ وی لکه ﴿اِنَّا اَنْزَلْنَاهُ﴾ ۔ یا ﴿حَتّٰی تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ﴾ ۔ (قرآن او شمس مخکښ لفظاً ذکر نهٔ دی او د حال د مخاطب او متکلم نه معلومیږی نو دے ته دِے هم مجاز اُووئیلے شی او حال دا چه دیته هیڅوك مجاز نهٔ وائی۔

دغه شان برعکس واخله چه مثلًا یو انسان د یو بهادر شخص په باره کښ اُووائی : [هٰذَا الْاَسَدُ فَعَلَ الْیَوْمَ کَذَا] یا د بلید (کمعقل) په باره کښ اُووائی : [هٰذَا الْحِمَارُ قَالَ الْیَوْمَ کَذَا] ۔ یا د یو سخی په باره کښ داسے اُووائی : [هٰذَا الْبَحْرُ جَرٰی مِنْهُ الْیَوْمَ کَذَا] ۔ نو دا دِے حقیقت شی ځکه چه دلته د اسد نه مراد رجل شجاع دے او قرینه لفظی ورسره ذکر ده چه هغه هذا دے نو بیا خو دا بالکل مجاز نشو۔

او که ته د متصل قرینے نه مراد عامه اخلے چه هغه په وخت د خطاب کښ موجوده وی او که نهٔ وی نو بیا جواب دا دے چه خبره خو د مخکښ نه هم زیاته سخته شوه ځکه چه هر شخص چه په مجاز باندے تکلم کوی نو خامخا به هغه سره د حال د مخاطب نه داسے قرینه وی چه په هغے سره معنیٰ مراده ښکاره کیږی ځکه که داسے قرینه ورسره نهٔ وی نو بیا خو په دغه لفظ باندے تلفظ او تکلم جائز نهٔ دے۔ نو ثابته شوه چه د مجاز او حقیقت ترمینځ فرق په قرینو سره هم صحیح نهٔ دے۔

بعض وائی دا نزاع لفظی ده ځکه چه لفظ د اسد چه کله استعمال کړے شی په رجل شجاع کښ نو دا مجاز دے اګر که ته ورته مجاز نوم نهٔ ایږدے، لیکن دا خبره هم خطاء ده

وجه دا ده چه دا خبره بناء ده پدے چه لفظ په دوه قسمه دے یو حقیقت او بل مجاز او حقیقت استعمال د لفظ دے په معنیٰ موضوع له کښې او مجاز استعمال د لفظ دے په غیر ما وضع له کښې لکه لفظ د اسد او حمار چه په بهادر یا بلید (کمعقل) کښې استعمال شي نو دا مجاز دے۔ او دا بناء دے په فرق په مابین د وضع او استعمال کښې او پدے چه وضع مقدم وی په استعمال باندے او حال دا چه پدے فرق باندے هیڅ دلیل نشته او وضع او استعمال دواړه یو شے دے۔ او چا چه فرق کړیدے نو هغه باطل دے۔

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله فرمائی :

[بَلْ وَتَقْسِيمُ اللَّفْظِ اِلٰى حَقِيقَةٍ وَمَجَازٍ تَقْسِيمٌ مُحْدَثٌ مُبْتَدَعٌ لَمْ يَنْطِقْ بِهِ السَّلَفُ، وَلَيْسَ النِّزَاعُ فِيهِ لَفْظِيًّا بَلْ يُقَالُ : نَفْسُ هٰذَا التَّقْسِيمِ بَاطِلٌ لَا يَتَمَيَّزُ هٰذَا عَنْ هٰذَا وَلِهٰذَا كَانَ كُلُّ مَا يَذْكُرُونَهُ مِنَ الْفُرُوقِ تُبَيِّنُ اَنَّهَا فُرُوقٌ بَاطِلَةٌ، وَكُلَّمَا ذَكَرَ بَعْضُهُمْ فَرْقًا اَبْطَلَهُ الثَّانِىْ] [مجموع الفتاوی [۱۱۳/۷] ۔

## جوابات الشبهات :

اوس دلته هغه الفاظ او دلائل بیانیږی چه علماؤ هغے ته مجاز وئیلے وی او حال دا چه هغه مجاز نهٔ وی بلکه هغه بعینهٖ حقائق دی او په کلام عربی کښې بالکل مجاز نشته بلکه ټول حقائق دی خو کله عرب دغه الفاظ په یوه طریقه استعمالوی او کله ئے په بله طریقه۔ نو دیته جریان الکلام علی اسالیب العرب وائی۔ او مجاز وئیل ورته صحیح نهٔ دی۔ ځکه چه د مجاز دارومدار په فرق دے په مابین د وضع او استعمال کښې او د هغے بطلان خو تا اُوپیژندلو۔

۱ – اول دا چه دوی وائی : قرآن کښې راغلی دی : ﴿ جِدَارًا يُرِيْدُ اَنْ يَنْقَضَّ ﴾ (الکهف : ۷۷)۔ نو دوی وائی چه جدار (دیوال) خو څه حیوان نهٔ دے چه هغه دپاره اراده ثابته شی ځکه اراده خو د حیوان وی نو دلته دا لفظ په میلان کښې استعمال شویدے نودا مجاز شو۔

**جواب** : ددے جواب دا دے چه د ارادے دپاره دوه استعماله دی۔ کله استعمالیږی په هغه میلان کښې چه د هغے سره شعور وی چه هغه د ژوندی حیوان میلان دے او کله استعمالیږی په هغه میلان کښې چه د هغے سره شعور نهٔ وی۔ لکه د دیوال میلان شو۔ او دا خبره په لغت کښې مشهوره ده۔ لکه عرب وائی : [هٰذَا السَّقْفُ يُرِيْدُ اَنْ يَّقَعَ]۔ (دا چهت راپریوتو ته مائل دے) او [هٰذِهِ الْاَرْضُ تُرِيْدُ اَنْ تَحْرُثَ] ۔ (دا زمکه کروندے ته مائله ده) نو دلته اراده لفظ په قدر مشترک بین المعنیین کښې استعمال دے خو که په یو کښې ئے

حقیقت اُوګرځو او په بل کښې مجاز نو بیا خلاف الاصل کار لازمیږي۔ دارنګه پدے کښې داسے نۀ وئیلے کیږي چه (یرید) لفظ اول کښې د انسان دپاره وضع شوے وو بیا د هغے نه روستو په دیوال کښې استعمال شو۔ ځکه چه پدے تقدیم او تاخیر باندے هیڅ دلیل د لغت نه نشته بلکه عرب دواړه الفاظ یو شان استعمالوی په جدار کښې ئے هم استعمالوی او په حیوان کښې هم۔ او ددے دواړو استعمالینو ترمینځ په تقدم او تأخر باندے ډیر څوك دلیل پیش کړی او هیڅ کله ئے نشی پیش کولے۔ نو دلته قدر مشترك دا مفهوم کلی شو او ارادة الحیوان او ارادة الجدار دواړه ئے نوعین شو۔ او دواړه فردین حقیقیین دی۔

۲- دویم دوی وائی : لفظ د اسد یا حمار چه استعمال شی په حیوان کښې نو دا حقیقت دے او چه استعمال شی په بهادر شخص یا کمعقل شخص کښې نو دا مجاز دے۔

**جواب** دا دے چه دواړه استعمالونه حقیقت دے۔ او هیڅ مجاز پکښې نشته بلکه اهل لغت دواړه محاورے یو شان استعمالوی کله چه د اسد نسبت حیوان ته کوی نو د هغے نه درنده اخلی او که انسان ته ئے نسبت کوی نو بهادر شخص ترے اخلی۔

۳- دارنګه دوی استدلال کوی پدے قول د الله تعالیٰ :﴿ فَـأَذَاقَهَـا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ﴾ [النحل :۱۱۲]۔

(الله تعالیٰ دوی ته اُوڅکولو جامه د لوږے او د یرے)

نو بعض خلق وائی چه ذوق لفظ حقیقت دے په څکولو د خُله کښې او لباس هغه ته وئیلے شی چه خلق ئے بدن ته اغوندی نو دلته په ذوق کښې استعاره شویده او په لباس کښې هم استعاره شویده۔ او دا مجاز دے۔ **جواب** دا دے چه امام خلیل (د لغت وغیره مشهور امام) وئیلی دی چه ذوق په لغت د عربو کښې وئیلے شی : [وُجُوْدُ طَعْمِ الشَّیْءِ] -(د یو شی خوند موجودیدل) او د عربو استعمال هم پدے باندے دلالت کوی الله تعالیٰ فرمائی : ﴿وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْاَدْنٰى دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ﴾ (الم السجدة : ۲۱) ۔ وقال : ﴿ ذُقْ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْكَرِيْمُ﴾ (الدخان : ٤٩) ۔﴿ فَذَاقَتْ وَبَالَ اَمْرِهَا﴾ (الطلاق : ۹) ۔ وقال : ﴿ لَا يَذُوْقُوْنَ فِيْهَا الْمَوْتَ اِلَّا الْمَوْتَةَ الْاُوْلٰى﴾ (الدخان ٥٦) ۔ نو ذوق لفظ په هر هغه شی کښې استعمالیږی چه د هغے احساس کیږی او انسان د هغے درد یا خوند مونده کوی) نو دا دعوه کول چه ذوق صرف د خُله په څکلو کښې استعمالیږی غلطه ده۔ بلکه ذوق په هر شی کښې مقید استعمالیږی لکه (ذقتُ الطعام والشراب) چه اُووئیل شی نو بیا به مراد د خولے څکل وی او که ذقت العذاب والالم اُووئیلے شی نو بیا به د بدن وغیره څکل وی۔ دغه شان لباس لفظ

استعمالیږی د هر هغه شی دپاره چه انسان پټوی او د انسان نه راتاویږی. الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ لِبَاسًا﴾. ﴿ وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ذٰلِكَ خَيْرٌ﴾ (اعراف : ۲٦). ﴿ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَاَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ﴾ (البقره : ۱۸۷).

او لکه وئیلے شی [لَبْسَ الْحَقِّ بِالْبَاطِلِ] یعنی چه حق د باطل سره ګډوډ کړی تردے چه حق پټ شی بیا ئے تمییز نهٔ کیږی. نو دلته نکته دا ده چه د کومے لوږے درد تول بدن د انسان مومی دغه شان هغه خوف چه تول بدن باندے راغلے وی نوکه د هغے په باره کښ داسے اُووئیلے شی [فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ الْجُوْعَ وَالْخَوْفَ] . (الله تعالیٰ دے ته لوږه او یره اُوڅکوله) نو دا دلالت نکوی چه ګنے دا د اُوږی انسان تولو اجزاؤ ته رسیدلے ده خو کله چه داسے اُووئیلے شی : [لِبَاسُ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ] (چه جامه د لوږے ئے اُوڅکوله) نو دے نه دا معلومه شوه چه دا لوږه د هر جزء ددے انسان نه راتاو شویده او دغه شان هر جزء ته ئے دا خوف رسیدلے دے.

٤- دغه شان دوی دعوی کوی چه لفظ د مکر، استهزاء او سخریه چه نسبت ئے الله تعالیٰ ته شوے وی نو دا مجاز دے په قرآن کښ. او دوی وئیلی دی چه دا مشاکلةً استعمال شویدی او مشاکلت مجاز دے. **جواب** دا دے چه دا خبره خطاء ده بلکه دا عین حقیقت دے چه د الله تعالیٰ دپاره حقیقةً استعمالیږی او دا د الله تعالیٰ صفات فعلیه حقیقیه دی. ځکه مکر او استهزاء او سخریه دوه قسمه ده یو دا چه دا کارونه اُوکړے شی د هغه چا پسے چه هغه د عقوبت او سزاء مستحق نهٔ وی نو بیا دا کارونه ظلم دے او کله چه د خپل مستحق پسے اُوشی کوم چه اول کښ سخریه او مکر کړے وی نو هغه دپاره دا سزاء ده او دا بعینهٖ عدل دے. لکه الله تعالیٰ فرمائی :﴿كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ ﴾ . (یعنی لکه څنګه چه ورونو د یوسف د هغه دپاره چل جوړ کړے وو نو دغه شان الله تعالیٰ هم چل جوړ کړو د هغه د اُوچتولو او غالبه کولو دپاره) او الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ اِنَّهُمْ يَكِيْدُوْنَ كَيْدًا وَّاَكِيْدُ كَيْدًا﴾.

نو دا د الله تعالیٰ حقیقی صفت دے څنګه چه د الله تعالیٰ د شان او مرتبے سره لائق وی. هیڅ مجازیت پکښ نشته.

٥- د دوی مشهور مثال دا هم دے چه قرآن کښ راغلی دی :

﴿ وَاسْئَلِ الْقَرْيَةَ﴾ [یوسف ۸۲]. چه کلے خو دیوالونو او کورنو ته وئیلے شی نو دلته مضاف حذف دے او مضاف الیه د هغے قائم مقام دے یعنی (وَاسْئَلْ اَهْلَ الْقَرْيَةِ) .(یعنی د کلی

اُوسیدونکو نه تپوس اُوکړه) نو دا مجاز شو، دغه شان لفظ د مدینه او نهر او میزاب وغیره واخله چه وئیلے شی جری النهر او سال المیزاب۔

**جواب** : د قرینه مدینه، میزاب او نهر وغیره الفاظ ددے نه دوه معانی مراد کیږی یو حال او بل محل او دواړه په معنیٰ ددے الفاظو کښې داخل دی نو کله د قریه نه مراد اُوسیدونکی وی او کله ترے مراد ځائے د اُوسیدو یعنی کورونه وغیره وی۔

دغه شان میزاب کله پرنالے ته وئیلے شی او کله هغه اُوبه چه په پرناله کښې بهیږی۔ دغه شان نهر نه کله مراد کنده وی او کله ترے مراد هغه اُوبه چه په هغه کنده کښې روانے وی او دواړه معنے د دغه الفاظو دی۔ او دواړه یو شان استعمالیږی لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَكَمْ مِنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنَاهَا فَجَاءَ هَا بَأْسُنَا بَيَاتاً اَوْ هُمْ قَائِلُوْنَ﴾ (اعراف : ٤،٥)۔ دارنګه (وَ كَاَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ هِيَ اَشَدُّ قُوَّةً مِنْ قَرْيَتِكَ الَّتِيْ اَخْرَجَتْكَ اَهْلَكْنَاهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ﴾ (محمد : ۱۳)۔نو دلته ترے اُوسیدونکی مراد دی۔ او فرمائی : ﴿ اَوْ كَالَّذِيْ مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا﴾ ۔ نو دلته د قریه نه مراد علاقه او کورونه او مکان دے نۀ اُوسیدونکی۔ او د هر یو سره قرینه شته که هلاکت وغیره ذکر شی، معلومیږی چه اُوسیدونکی مراد دی او که سقوط او خواية او عروش لفظ ذکر شی نو د قریه نه مراد کورونه وی۔

دغه شان لفظ د انسان بدن ته هم شاملیږی او روح ته هم بیا کله احکام بدن ته شاملیږی او کله روح ته ځکه د دواړو ترمینځ تلازم دے۔ نو دغه شان قریه واخله کله چه د هغے اُوسیدونکو ته عذاب ورکړے نو کورونه ئے خراب شی او کله چه کورونه خراب شی نو دا عذاب شو د اُوسیدونکو دپاره نو د دواړو ترمینځ تلازم شو۔ نو اُوس دا خبره کول چه واسأل القریه کښې مضاف حذف دے او دا مجاز دے بالکل صحیح نشوه بلکه همدا بعینهٖ حقیقت دے۔

ددے وجه نه مونږ ته دا فائده حاصلیږی چه کله یو متکلم د یو معنیٰ او مقصد نه په کوم لفظ سره تعبیر کوی نو دا یو لغت ګرځی او همدا حقیقت وی ددے وجه نه کوم صحابه کرام چه د نبی ﷺ د الفاظو سره اموخته او عادت وو او د هغه د الفاظو اهتمام ئے کولو نو هغوی به د رسول الله ﷺ په مراد باندے زر پو هیدل چه دومره به نور خوك نۀ پو هیدل نو مفسر وغیره له هم مناسب دی چه کله د قرآن یا د حدیث یو لفظ ذکر شی نو د هغه لفظ سره نور نظائر او هم مثل الفاظ ذکر کړی، دے دپاره چه د الله تعالیٰ او د هغه رسول مراد معلوم کړے شی نو پدے طریقه به لغت د قرآن او حدیث او طریقه د الله تعالیٰ

او د هغه رسول اُوپیژنی۔
بیا کله چه د دغه لفظ نور مثالونه د بل چا په کلام کښ هم موجود وی او دغه مثالونه زیات وی نو ددیے نه به معلومیږی چه دغه عادت او لغت عام مشترك دیے او د رسول الله ﷺ پوریے خاص نۀ دیے بلکه دا ئے د ټول قوم لغت دیے۔ نو ددیے وجه نه د رسول الله ﷺ او دغه شان د الله تعالیٰ کلام به په هغه عاداتو او اصطلاحاتو نشی حمل کولے کوم چه روستو زمانه کښ پیدا شویدی او د نبی ﷺ او د هغه د صحابه کرامو په خطاباتو کښ مشهور نۀ وو لکه ډیر خلق دا کار کوی خپله یوه اصطلاح جوړه کړی او بیا د قرآن او حدیث د هغئے مطابق تشریح کوی۔ لکه احناف چه واجب یوه درجه ګڼړی په مابین د فرض او سنتو کښ نو کله چه حدیثو کښ لفظ د واجب راشی نو دوی تریے زر استدلال اُوکړی حال دا چه قرآن او حدیث کښ واجب په معنیٰ د ثابت سره راځی یا په معنیٰ د فرض سره وی۔ او دغه خاص درجه بین الفرض والسنة تریے نۀ وی مراده۔ نو ددیے مخکښ تحقیق نه ثابته شوه چه څوك د حقیقت او د مجاز ترمینځ فرق کوی نو دا غلطه طریقه ده۔ او دا په لغت باندیے افتراء ده۔ او ددیے بحث د تفصیل دپاره اُوګورئ :

[کتاب الایمان ص (٣٦) لشیخ الاسلام، مجموع الفتاوی (٧/٩٩- ١١٣ بحث ما یتناوله اللفظ) و (٢٠/٤٠٧) وتفسیر القاسمی (١٣٦-١٥٤)

چه هغوی په ډیر ناشنا او محققانه انداز کښ مجاز د لغت او د قرآن نه باطل کړیدیے۔ او دیته ئے بدعت او افتراء وئیلے ده۔

**تکمیل** : علماء کرام خصوصاً اهل الحدیث علماء د مجاز د نفی کولو او ددیے د نۀ منلو په باره کښ ډیر تشدد ولے کوی ؟ ددیے څه حکمة دیے؟ دا خو یوه لغوی اصطلاح ده که راشی نو څه بدیت لازمیږی ؟ نو اصل کښ وجه دا ده چه یو خو دا په لغت د عربو باندیے یوه افتراء او بهتان دیے چه هغوی لفظ دوه اقسامو ته تقسیم کړیے نۀ دیے او خلق په کښ حقیقت او مجاز دوه اقسام راویاسی بلکه د اهل لغتو په نیز ټول کلمات عربیه حقائق دی چه هیڅ مجاز پکښ نشته نو د مجاز اصطلاح غلطه ده۔

دویم دا چه ددیے اصطلاح نه او د مجاز د منلو نه په قرآن او حدیث کښ ډیر لوئی شر لو فساد او بدعت او غلطے عقیدیے پیدا شویدی او دا اصل کښ ایجاد د معتزله او روافضو او جهمیه او معطلو او اهل بدعو دیے چه د دریمے صدئ په اواخرو او د څلورمے صدئ په اوائلو کښ پیدا شو نو داسیے اصطلاح په قرآن او حدیث او د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو

کښې چلول چه قرآن او سنت او صحیح نقل او لغت او عقل ئے تائید نۀ کوی- غلط کار دے۔ ځکه چه کله به دے معتزله او جهمیه ؤ ته اُووئیلے شو چه قرآن کریم کښې د الله تعالیٰ رحمة راغلے دے دغه شان ید او ساق او قدم د الله تعالیٰ صفات راغلی دی دا اُوومنئ۔ نو دوی به وئیل چه ددے خپلے لغوی او حقیقی معانی نۀ دی مراد بلکه لوازم مراد دی نو ذکر د رحمة او مراد ترے نه لازم د رحمة دے چه هغه فیضان د خیر او اعطاء د خیر ده۔ او د ید نه مراد قدرت دے او د ساق او قدم نه مراد تسلط او قدرت دے۔ یعنی پدے کښې مجاز شویدے۔ او ددے نه مونږ مجازی معانی اخلو۔ نو په نصوصو کښې به ئے غلط تاویلات کول او د قرآن کریم تفسیر به ئے په خپله رایه او عقل کولو او په هغه لغت کوم چه دوی د ځان نه جوړ کړے وو۔ ددے وجه نه دوی د رسول الله ﷺ په احادیثو او د صحابه کرامو او د امامانو د دین په اجماع باندے هیڅ اعتماد نۀ کوی د خپل خواهش تابع دی۔ که دوی ته به اُووئیلے شو چه قرآن کریم د الله تعالیٰ کلام دے نو دوی به وئیل چه دا کلام لفظی (کوم باندے چه تلفظ کیږی) د الله تعالیٰ کلام نۀ دے بلکه د الله تعالیٰ کلام هغه دے چه د هغه په نفس کښې دے لیکن نفس ئے هم نۀ منی نو نفس په معنیٰ ذات سره اخلی یعنی د الله تعالیٰ په نفس کښې چه کوم کلام وو نو هغه د الله تعالیٰ صفت دے او دے کلام لفظی ته چه کلام وئیلے شی نو دا مجاز دے یعنی دا کلام لفظی دال (دلالت کونکے) دے په هغه کلام نفسی باندے کوم چه د الله تعالیٰ په نفس کښې وو۔ نو د ټولو سلفو (صحابه کرام او تابعینو او تبع تابعینو او سلف الامة) خلاف ئے اُوکړو او یوه غلطه عقیده ئے رامینځ ته کړه او پدے کښې به ئے د حقیقت او مجاز د اصطلاح نه فائده اخسته، نو فکر اُوکړه چه ددے حقیقت او مجاز د اصطلاح نه څومره لوئی فساد پیدا شو چه د خلقو عقیدے ئے تباه او برباد ے کړے۔ نو ددے اصطلاح د شهرت د وجه نه بیضاوی ملا راولګیدو او خلقو دپاره ئے په باب د عقیده کښې داسے قاعده جوړه کړه چه کوم ځائے د الله تعالیٰ اسماء او صفات راشی چه په ظاهر کښې د هغے اطلاق او استعمال په الله تعالیٰ باندے صحیح نۀ وی نو د هغے نه مراد به غایات وی مجازاً او مبادی به نۀ وی مراد۔ لکه مثلًا چه الله تعالیٰ ته رحمن او رحیم وئیلے شی نو دا په اعتبار د غایه سره مراد وی یعنی د رحمت چه کوم شی ته انتهاء کیږی او ثمره د رحمت وی نو هغه به مراد وی چه هغه فیضان او ورکړه د نعمتونو دہ۔ او عین مبدأ چه (رحمة) دے دا به د الله تعالیٰ صفت نۀ وی۔ دغسے نور مثالونه واخله۔ نو ددے حقیقت او مجاز نه داسے فساد خور شو۔ (والله یهدینا وایاهم سواء السبیل)۔

## ۲۱- الامر الحادی والعشرون:
## نزول القرآن علی سبعة احرف :

[ د قرآن په اُوو حرفونو نازلیدل ]

(ددے څه مطلب دے چه قرآن په اُووه حرفونو نازل شویدے؟)

نو دلته یو څو خبرے زده کړه ! اول دا چه قرآن کریم الله تعالیٰ په اُووه حرفونو نازل کړیدے او ددے ثبوت په احادیثو سره شویدے لکه حدیث د بخاری کښ راغلی دی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی :

[إِنَّ هٰذَا الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلٰى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ فَاقْرَأُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ]

(صحیح بخاری باب کلام الخصوم بعضهم فی بعض، مسلم فی صلوة المسافرین باب ان القرآن علی سبعة احرف]۔

(دا قرآن په اُووه حرفونو نازل شویدے نو په کومه طریقه چه تاسو ته آسان وی دا لولئ) پدے حدیث کښ رسول الله ﷺ امت ته اجازه ورکړه چه په هر حرف باندے چه آسانه وی نو قرائت کولے شی۔ او مسلم کښ په حدیث د ابی بن کعبؓ کښ راغلی دی :

[فَأَتَاهُ جِبْرِيْلُ فَقَالَ: إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكَ أَنْ تَقْرَأَ أُمَّتُكَ الْقُرْآنَ عَلٰى حَرْفٍ، فَقَالَ: أَسْأَلُ اللّٰهَ مُعَافَاتَهُ وَمَغْفِرَتَهُ، وَإِنَّ أُمَّتِيْ لَاتُطِيْقُ ذٰلِكَ ثُمَّ آتَاهُ الثَّانِيَةَ فَقَالَ : إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكَ أَنْ تَقْرَأَ أُمَّتُكَ الْقُرْآنَ عَلٰى حَرْفَيْنِ فَقَالَ : أَسْأَلُ اللّٰهَ مُعَافَاتَهُ وَمَغْفِرَتَهُ وَإِنَّ أُمَّتِيْ لَاتُطِيْقُ ذٰلِكَ، ثُمَّ جَاءَهُ الثَّالِثَةَ فَقَالَ : إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكَ أَنْ تَقْرَأَ أُمَّتُكَ الْقُرْآنَ عَلٰى ثَلَاثَةِ أَحْرُفٍ فَقَالَ : أَسْأَلُ اللّٰهَ مُعَافَاتَهُ وَمَغْفِرَتَهُ وَإِنَّ أُمَّتِيْ لَاتُطِيْقُ ذٰلِكَ ثُمَّ جَاءَهُ الرَّابِعَةَ فَقَالَ: إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكَ أَنْ تَقْرَأَ أُمَّتُكَ الْقُرْآنَ عَلٰى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ، فَأَيُّمَا حَرْفٍ قَرَأُوْا عَلَيْهِ فَقَدْ أَصَابُوْا آه]۔

(نبی ﷺ ته جبریل علیه السلام راغلو ورته ئے اُووئیل : الله تعالیٰ تا ته حکم کوی چه امت ته قرآن په یو حرف باندے اُولوله۔ نبی ﷺ اُوفرمایل : د الله تعالیٰ نه د هغه عافیت او مغفرت غواړم، زما امت خو ددے طاقت نهٔ لری، بیا ورته دویم ځل راغلو ورته ئے اُووئیل : الله تعالیٰ تا ته حکم کوی چه خپل امت ته قرآن په دوه حرفونو اُولوله۔ آخر دا چه) اُووه

کرتو ته اُورسیدل۔ آخر کښې ئے اُوفرمایل: په کوم حرف باندے چه امت قرائت کوی نو صحیح قراء ت کوی)

او په بل روایت کښې دی: [حَتّٰی بَلَغَ سَبْعَةَ اَحْرُفٍ فَكُلُّ حَرْفٍ شَافٍ كَافٍ] (سنن النسائی کتاب افتتاح الصلاة باب جامع ما جاء فی القرآن)۔

(اُووه حرفونو ته اُورسیدو نو دا ټول حرفونه کافی شافی دی)۔

او په روایت د ترمذی کښې دی چه نبی ﷺ جبریل علیه السلام ته اُوفرمایل: [اِنِّیْ بُعِثْتُ اِلٰی اُمَّةٍ اُمِّیِّیْنَ، فِیْهِمُ الشَّیْخُ الْفَانِیْ، وَالْعَجُوْزُ الْكَبِیْرَةُ وَالْغُلَامُ]۔ ((زه یو اُمیین امت ته رالیږلے شوے یم چه په دوی کښې بوډا او بوډئ او واړه هلکان هم شته)۔

داسے نور ډیر احادیث د اُووه حرفونو د ثبوت دپاره موجود دی

او قرآن پدے اُووه حرفونو نازلولو کښې د الله تعالیٰ ددے امت سره آسانی کول مقصد دے۔

۲- دارنګه پدے اختلاف د قراء ت سره کله نا کله یو حکم د احکامو بیانول مقصود وی لکه په کفاره د یمین کښې ﴿ اَوْتَحْرِیْرُ رَقَبَةٍ ﴾ سره (مؤمنة) لفظ په یو قراء ت کښې زیات راغلے دے نو پدے سره دا حکم معلوم شو چه په کفاره د قسم کښې مؤمن غلام آزادول شرط دے لکه چه دا مذهب د امام شافعیؒ وغیره دے۔

## د حروف سبعه تعلق صرف د الفاظو سره دے

دویمه خبره دا زده کړه چه ددے حروف سبعه ۆ تعلق صرف د الفاظو سره دے نهٔ د معانیو سره۔ دلیل پرے دا دے چه عمر فاروق رضی الله عنه فرمائی چه ما یو ځل د هشام بن حکیم نه سورة الفرقان واوریدو نو هغه په ډیرو داسے حروفو سره لوستلو چه ما ته رسول الله ﷺ هغه شان نهٔ وو لوستلے نو نزدے وه چه ما د غصے په وجه په هغه باندے په مانځه کښې حمله کړے وے، مګر انتظار مے اُوکړو تردے چه سلام ئے واړولو نو ما د هغه په غاړه کښې څادر واچو نو او تپوس مے ترے اُوکړو چه تا ته دا سورة چا لوستلے دے؟ نو هغه اُوویل: [اَقْرَاَنِیْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ]۔ (ما ته رسول الله ﷺ لوستلے دے)، ما اُوویل: غلط وائے، ما ته خو رسول الله ﷺ دا سورت په بله طریقه لوستلے دے چه ستا د قرائت نه جدا دے نو ما هغه رسول الله ﷺ ته راوستو۔ ما اُوویل: یارسول الله ما دده نه سورت فرقان په هغه حروفو سره

واوریدو چه تا ما ته نهٔ وو لوستلے۔
نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : دا پریده اے عمر ! او هشام ته ئے حکم اُوکړو چه ته اُووایه نو هغه شان ئے اُولوستل څنګه چه ترے ما اَوریدلے وو نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [هٰكَذَا أُنْزِلَتْ]۔
(همدغه شان نازل شویدے)۔
بیا رسول الله ﷺ ما ته حکم اُوکړو چه اے عمر ! ته اُووایه ! ما هغه شان اُولوستلو څنګه چه ما ته رسول الله ﷺ لوستلے وو نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [كَذٰلِكَ أُنْزِلَتْ اِنَّ هٰذَا الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ فَاقْرَأُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ]۔ (همدغه شان دا سورت نازل شویدے۔ یقیناً دا قرآن په اُووه حرفونو نازل شویدے نو په کوم چه آسان وی لولئ) [بخاری ومسلم]۔
نو ددے حدیث نه ثابته شوه چه دا اختلاف د قراء تونو بناء دے په اختلاف د الفاظو فقط نهٔ په اختلاف د معانیو یعنی په اُوه واړه حرفونو سره هیڅ تبدیلی په معنی او مضمون کښ نهٔ راځی، او د حرام او حلال ترمینځ هیڅ تبدیلی نهٔ راځی۔ کله نا کله صرف د یو زیاتی فائدے دپاره قراء ت بدل شی۔ او غالباً صرف د الفاظو تبدیلی پکښ راځی۔ لکه روستو به ئے مثالونه راشی۔

## د حروف سبعه نه مراد څه شے دے ؟

د انزل القرآن علی سبعة احرف په معنیٰ او مراد کښ تقریباً څلویښت اقوال علماؤ ذکر کړیدی چه په هغه ټولو کښ د اکثرو علماؤ په نیز راجح هغه قول دے چه امام ابن جریرؒ او د هغه متبعینو اختیار کړیدے او هغه دا چه :
(۱) ددے نه د عربو اُووه لغات مراد دی چه هغه لغت د ((قُرَيْش، هُذَيْل، ثَقِيْف، هَوَازِن، كِنَانَه، تَمِيْم، او د يَمَن)) دے او دا قول د اکثرو علماؤ دے او بیهقیؒ صحیح کړیدے او ابهریؒ غوره کړیدے او صاحب د قاموس په همدے باندے اقتصار کړیدے۔
ابوعبیدؒ وائی : دا لغات په قرآن کښ تقسیم دی بعض په لغت د قریشو دی او بعض په لغت د هذیل او بعض په لغت د هوازن او بعض په لغت د یمن وغیره دی۔
او دا مطلب نهٔ دے چه هره کلمه به په اُووه لغتونو لوستلے شی۔ مطلب دا چه قرآن به ددے اُووه لغاتونه نهٔ اُوځی۔
لیکن په دے قول باندے ډیر اعتراضونه دی چه هغه ابن جریرؒ جواب کړیدئ۔ مګر

علامه زرقانیؒ پدے باندے دوه اعتراضونه نور کړیدی او هغه دا دی :
(۱) چه قرآن کریم کښ ډیر الفاظ شته چه هغه د اُووه لغاتونه علاوه د نورو قبائلو لغات دی لکه کلمه د (سامدون) (النجم ٦۱) چه دا د حِمْیَر قبیلے لغت دے۔یا لکه ﴿اِنِّیٓ اَرٰىنِیٓ اَعۡصِرُ خَمۡرًا﴾ [یوسف : ۳٦] کښ خمراً دا اهل عُمان لغت دے چه هغوی عنب (انګورو) ته خمر (شراب) وائی۔ دارنګه ﴿لَا یَلِتۡكُمۡ مِّنۡ اَعۡمَالِكُمۡ شَیۡـًٔا﴾ [الحجرات ۱٤] کښ (لایلتکم) (د کموالی معنیٰ) لغت د بنی عبس دے دارنګه ﴿فَبَآءُوۡ﴾۔ (اخته شو او مستحق شو) لغت د جُرْهُمْ دے۔ دارنګه ﴿تُسِيۡمُوۡنَ﴾ [النحل : ۱۰] ۔ (په معنیٰ د څرولو سره) دا لغت د خَثْعم دے۔

بلکه واسطی رحمه الله په خپل کتاب کښ چه په (القراء ات العشر) کښ ئے لیکلے دے نقل کړیدی چه په قرآن کریم کښ د څلویښتو نه زیات لغات د عربو دی او د هغے نومونه ئے ذکر کړیدی چه [قُرَیْش، هُذَیْل، کِنَانَة، وَخَثْعَم، وَالْخَزْرَج، وَاَشْعَر، ونَمِیْر، قَیْس عَیْلَان، وجُرْهُم، وَالْیَمَنُ، وَاَزْدِ شَنُوْءَة، وکِنْدَة، وتَمِیْم، وحِمْیَر ومَدْیَن، ولَخْم، وسَعْدُ الْعَشِیْرَة، وحَضْرَمَوْت، وسَدُوْس، وَالْعَمَالِقَة واَنْمَار، وغَسَّان، ومَذْحِج، وخُزَاعَة وغَطَفَان، وسَبَأ، وعُمَّان، وبَنُوْحَنِیْفَة وثَعْلَب، وطَیّ، وعَامِرُ بْنُ صَعْصَعَة، واَوْس، ومُزَیْنَة، وثَقِیْف وجُذَام، وبَلِی، وعَذْرَة، وهَوَازِن، والنَّمِرُ وَالْیَمَامَة] (نتهیٰ)۔

دا ټول لغات بیا په لغت د قریشو کښ استعمالیږی۔ نو دا خبره هم صحیح ده چه قرآن په ژبه د قریشو نازل دے او همدا عامه عربی ده۔

دویم رد دا دے چه کومه توجیه ابوعبیدؒ ذکر کړه نو ددے نه دا لازمیږی چه قرآن به ابعاض او حصے حصے وی۔ بعض به په لغت د قریشو وی او بعض به په لغت د هذیل وی او دغه شان ورځه۔ او حال دا چه دا په واقع کښ ثابت نۀ دے ځکه ددے نه خو دا لازمیږی چه هر شخص ته دا ممکن نۀ ده چه قراء ت اُوکړی مګر په هغه حصه چه ددۀ په لغت نازل وی نۀ په هغه حصه چه د بل په لغت نازل وی فتدبر۔

دارنګه د دغه اُووه لغاتو تعیین بعض علماؤ یو شان کړیدے او بعضو بل شان۔ لکه ابوحاتم السجستانیؒ وئیلی دی :

[نَزَلَ بِلُغَةِ قُرَیْشٍ وَهُذَیْلٍ، وتَیْمِ الرَّبَابِ، وَالْاَزْدِ، وَرَبِیْعَةَ، وَهَوَازِنَ وَسَعْدِ بْنِ بَکْرٍ] (فتح الباری ۱۰/٤۰۲ –فضائل القرآن باب انزال القرآن علی سبعة احرف)۔ (قرآن په دغه اُووه لغتونو نازل دے)۔

بل اعتراض ابوبکر بن الطیبؒ متوفی (٤۰۳ھ) او ابن الجزریؒ متوفی (۸۳۳ھ) او

سیوطیؒ متوفی (۹۱۱ھ) دا کړیدي چه عمرؓ او هشام بن حکیمؓ دواړه د یوې قبیلې یعنی د قریشونه دي او ژبه د دواړو یوه ده نو بیا د هغوی ترمینځ د سورة الفرقان په قراء ت کښې اختلاف څنګه پیدا شو ؟ که د حروف سبعه نه د قبائل سبعه ؤ لغات سبعه مراد وي نو بیا به د هغوی ترمینځ اختلاف نهٔ وي لیکن د هغوی اختلاف خو په بخاري او مسلم حدیث کښې ثابت دې نو ددې نه خو معلومیږی چه د حروف سبعه ؤ نه مراد په لغت د قریشو کښې د قراء ت د نوعیتونو اختلاف دې۔

لیکن ددې نه ابن عطیه غرناطیؒ متوفی (۵٤۱ھ) دا جواب ورکړیدې چه: [لِأَنَّ مُنَاكَرَتَهُمْ لَمْ تَكُنْ لِأَنَّ الْمُنْكِرَ سَمِعَ مَا لَيْسَ فِيْ لُغَتِهِ فَأَنْكَرَهُ وَإِنَّمَا كَانَتْ لِأَنَّهُ سَمِعَ خِلَافَ مَا أَقْرَأَهُ النَّبِيُّ ﷺ وَعَسَاهُ قَدْ أَقْرَأَهُ مَا لَيْسَ مِنْ لُغَتِهِ وَاسْتِعْمَالِ قَبِيْلَتِهِ] [المحرر الوجيز ۱/٤۰-٤۱]۔

(دا اعتراض نهٔ واردیږی ځکه چه د هغوی اختلاف پدې وجه نهٔ وو چه اختلاف کونکی د خپل لغت خلاف قراء ت اوریدلے وو بلکه ددې وجه دا وه چه هغه د نبی ﷺ د خولې شوی قراء ت خلاف قراء ت اَوریدلے وو او دا هم کیدې شي چه هغه ته نبی ﷺ د هغه د خپل لغت او د هغه د خپلې قبیلې د استعمال خلاف د بلې قبیلې په لغت کښې دغه سورت لوستلې وی) ځکه چه دا څه منع نهٔ ده چه یو صحابی د یوې قبیلې سره تعلق لری نو هغه ته به د بلې قبیلې په لغت لوستل صحیح نهٔ وی۔

دې قول ته چه کومو علماؤ ترجیح ورکړیده نو هغوی داسې وائی چه د حروف سبعه ؤ نه د قبیلو اُووه لغات ځکه مراد دی چه د یوې قبیلې ژبې ویونکو ترمینځ د قرائت د نوعیتونو او د طرز اداء فرق دومره زیات نهٔ وی چه هغوی دپاره په یو لغت کښې لوستل دومره مشکل شي چه په نورو حروفو باندې د لوستلو اجازت طلب کولو ضرورت راپیښ شي۔ د یوې قبیلې خلق که بوډاګان وی او که واړه وی، ځوانان وی، او که زنانه وی، ناخوانده وی او که خوانده هغوی د خپلې ژبې حروف د بلې قبیلې د حروفو په مقابله کښې زیات په آ..نئ او روانئ سره لولی۔ بلکه بعض اوقات د بلې قبیلې تعلیم یافته خلق هم خپل تلفظ د هغوی نه اَوریدو سره صحیح کوی۔ دا خبره یواځې د عربو په باره کښې نهٔ ده بلکه د دنیا د تمامو قومونو او قبیلو مشاهده او تجربه همدغه ده۔ لیکن د یوې قبیلې او علاقې ژبه اګرکه عربی وی د بلې قبیلې او علاقې خلقو دپاره مشکله کیږی خاصکر چه کله ناخوانده او انپړهـ هم وی ځکه چه د بوډاګانو، ځوانانو او ماشومانو او ښځو او نا خوانده خلقو په ژبو باندې چه کله یو ځل د خپلې قبیلې او علاقې تلفظ اُوخیژی او د خپلې خاص لهجې او

محاورے او مکالمے عادي شي نو بيا د هغوی په ژبه باندے د بلے قبيلے او بلے علاقے تلفظ خيژول او د هغوی د محاورے او مکالمے عادي جوړول مشکل کيږی ، نو ددے مشکل د آسانولو دپاره رسول الله ﷺ په نورو ژبو کښ د لوستلو اجازت طلب کړو او الله تعالیٰ د هغه درخواست قبول کړو او د عربو په اُووه مشهورو او افصح اللسان قبائلو په ژبه لوستلو اجازت ئے ورکړو دے دپاره چه د قرآن تلاوت او قراء ت آسان شي او هغوی د قريشو د لغت په زده کولو په محنت او مشقت کښ پرے نۀ وځی۔

او ددے رخصت مطلب هيچرے دا نۀ وو چه يو شخص د قريشو په ژبه نازل شوے لفظ په خپله ژبه کښ ترجمه کولو سره اُولولی، بلکه کله چه به د الله تعالیٰ د طرف نه د بلے قبيلے په لغت کښ يو لفظ نازل شو نو رسول الله ﷺ به فرمايل چه همدغه شان نازل شويدے او تاسو ئے همدغه شان اُولولئ، ليکن په هيڅ حديث کښ دا نۀ دی راغلی چه د هرے قبيلے خلق به لازماً په خپل لغت کښ نازل شوی کلمات لولی او د بلے قبيلے او علاقے په لغت کښ نازل شوی کلمات نشی وئيلے۔ قريشی به د غير قريشی په لغت کښ نازل شوی کلمات هم لوستلے شو ځکه چه د اُووه لغاتو نه چه په کوم لغت کښ هم نازل شوی کلمات يو شخص لوستل نو هغه به قرآن لوستلو البته چا ته چه به په لوستلو کښ څه مشکلات او دقت راتلو نو هغه ته اجازت ورکړے شوے وو چه ددے اُووه لغاتو نه په کوم لغت لوستل هغه ته آسان وی، لوستلے شي او هرچه عجم خلق دی نو هغوی ته د عربو ټولے ژبے اجنبی او ناشنا دی نو هغوی به لازماً د عربي تلفظ زده کوی او د هرے قبيلے ژبه چه هغوی ته زده کړے شی نو په محنت سره ئے زده کولے شی، پدے وجه عجمو ته په دے اُووه لغاتو کښ د لوستلو ضرورت نۀ وو۔

البته د عربو قبائلو ته په اُووه حروفو کښ د لوستلو ضرورت وو۔ ليکن د عثمان د دور خلافت پورے د قرآن اصل ابتدائی ژبه يعنی لغت د قريشو کښ لوستل نورو قبيلو دپاره هم آسان شوی وو پدے وجه هغه په لغت د قريشو کښ سرکاری نسخه تياره کړه او د هغے نُقول ئے د مختلفو علاقو مرکزی مقاماتو ته واستول دے دپاره چه خلق ددے سرکاری نسخے مطابق قراء ت اُوکړی او باقی لغات سته ئے خو منسوخ نۀ کړل ځکه چه د الله تعالیٰ د طرف نه نازل شوے حکم يو خليفه راشد هم نشی منسوخ کولے او د ټول امت اجماع ئے هم نشی منسوخ کولے بلکه هغه ئے متروك القراء ة اُوګرځول۔[علوم القرآن للشيخ گوهر رحمان ١/ ٢٤٠) لکه ددے تفصيل روستو راځی۔

(۲) **دویم قول** : علامه زرقانیؒ وائی زما په نیز باندے راجح قول د امام رازیؒ دے چه هغه وئیلی دی :

[اَلْكَلَامُ لَايَخْرُجُ عَنْ سَبْعَةِ اَحْرُفٍ فِي الْاِخْتِلَافِ، اَلْاَوَّلُ : اِخْتِلَافُ الْاَسْمَاءِ مِنْ اِفْرَادٍ وَتَثْنِيَةٍ وَجَمْعٍ، وَتَذْكِيرٍ وَتَأْنِيثٍ، اَلثَّانِيُ : اِخْتِلَافُ تَصْرِيفِ الْاَفْعَالِ مِنْ مَاضٍ وَمُضَارِعٍ وَاَمْرٍ، اَلثَّالِثُ : اِخْتِلَافُ وُجُوهِ الْاِعْرَابِ، اَلرَّابِعُ : اَلْاِخْتِلَافُ بِالنَّقْصِ وَالزِّيَادَةِ. اَلْخَامِسُ : اَلْاِخْتِلَافُ بِالتَّقْدِيمِ وَالتَّاخِيرِ، اَلسَّادِسُ : اَلْاِخْتِلَافُ بِالْاِبْدَالِ، اَلسَّابِعُ : اِخْتِلَافُ اللُّغَاتِ (يُرِيْدُ اللَّهْجَاتِ) كَالْفَتْحِ وَالْاِمَالَةِ وَالتَّرْقِيْقِ وَالتَّفْخِيمِ وَالْاِظْهَارِ وَالْاِدْغَامِ وَنَحْوِ ذٰلِكَ انتهىٰ].

(یعنی کلام د الله تعالیٰ په اختلاف کښې د اُووه حرفونو نه نهٔ اُوځی. اول اختلاف دے په اسماؤ کښې چه مفرد، تثنیه، جمع او تذکیر او تانیث دے. لکه ددے مثال : ﴿وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُوْنَ﴾ [المؤمنون : ۸] . نو امانا‌تهم صیغه د جمع ده او په بل قراءت کښې (لِاَمَانَتِهِمْ). مفرد ذکر دے.

۲- دویم اختلاف د صیغو دے چه ماضی مضارع او امر د یو بل په ځائے استعمال شوے وی لکه ﴿فَقَالُوْا رَبَّنَا بَاعِدْ﴾ [سبأ: ۱۹] پدے کښې [رَبُّنَا بَعَّدَ] ربنا مرفوع شی او باعد د امر په ځائے ماضی راغلے ده.

۳- دریم اختلاف د وجوه الاعراب دے. یعنی د اعراب طریقے مختلفے وی لکه ﴿وَلَا يُضَارَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ﴾ [البقره : ۲۸۲].

پدے کښې د لا یضار د راء د فتحه په ځائے ضمه هم راغلے ده. نو که لا ناهیه شی، راء باندے به فتحه وئیلے شی او که لا نافیه شی نو بیا به په راء ضمه وئیلے شی. یا لکه ﴿ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيْدُ﴾ [البروج : ۱۵]. پدے کښې المجید مرفوع دے لیکن جر هم راغلے دے چه صفت د العرش شی.

٤- څلورم : اختلاف په نقصان او زیادة د کلمے سره لکه ﴿وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى﴾ [اللیل :۳] پدے کښې ﴿وَالذَّكَرِ وَالْاُنْثٰى﴾ هم راغلے دے چه ما خلق کلمه په کښې نهٔ وی.

۵- پنځم : اختلاف په تقدیم او تاخیر سره وی بعض کلمه مخکښې بعض روستو وی. لکه ﴿وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ﴾ [ق : ۱۹] پدے کښې داسے هم لوستلے شویدے :﴿وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْحَقِّ بِالْمَوْتِ﴾. لیکن دا قراءت پکښې بیا منسوخ شویدے.

٦- شپږم اختلاف په ابدال سره دے. چه د یو حرف په ځائے بل حرف وئیلے شوے وی لکه ﴿وَانْظُرْ اِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنْشِزُهَا﴾ [البقره : ۲۵۹] پدے کښې د زاء په ځائے بل قراءت کښې

راء راغلې ده لکه [نُنشِرُهَا]۔ یا لکه ﴿ وَطَلۡحٍ مَّنضُودٍ ﴾ [الواقعة : ۲۹] پدې کښې [وَطَلۡعٍ] په عین سره هم وئیلې شویدې۔

۷- اُووم : چه طریقه د تلفظ او لهجه مختلفه شي لکه ﴿ وَهَلۡ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ ﴾ [النازعات:۱۵] پدې کښې اماله او فتحه اُووئیلې شي په اتی او لفظ د موسیٰ کښې [وَهَلۡ اَتٰیکَ حَدِیۡثُ مُوۡسٰی) ۔ یا لکه ﴿ بَلَىٰ قَٰدِرِينَ ﴾ [القیامة : ٤] پدې کښې اماله او فتحه لوستلې شي [بَلَیٰ]۔

حاصل ددې مذهب دا دې چه د حروف سبعه نه مراد د قراءت وجوه سبعه مراد دي یعنی د قراءت اُووه نوعیتونه او طریقې مراد دي۔ یعني د دوی په نیز قرآن په اُووه لغاتو کښې نهٔ دې نازل شوې بلکه صرف د قریشو په لغت نازل دې او په همدې لغت کښې مصحف عثماني تیار شوې وو لیکن پدې لغت واحده کښې نازل شوی قرآن کښې د قرائت اُووه قسمه نوعیتونه او وجوه او طریقې نازلې شوې وې او ددې نه دهرې نوع قرائت جائز دې پدې شرط چه د مصحف عثمان د رسم الخط مطابق وي او متواتر وي، برابره ده که د قراء تونو تعداد لس وي یا شل وي یا اُووه وي یا کم او زیات وي ټول په ټوله په دې اُووه وجوهو او نوعیتونو کښې داخل دي، ددې نه بهر هیڅ قراءت نشته۔ او اتم قسم تر اُوسه پورې د هغوی په نیز د هیچا په علم کښې نهٔ دې راغلې۔ او کومو کلماتو کښې چه د اُووه قراءتونو نه علاوه زیات راغلي دي لکه ﴿ أُفٍّ ﴾ کښې علامه رمانیؒ اُووه دیرش (۳۷) قراءتونه ذکر کړیدي نو د هغې ټولو رجوع همدې اُووته کیږي۔ او ددې نه نهٔ بهر کیږي۔

او دا ئې وئیلي دي چه د حروف سبعهٔ تفسیر په دې وجوهو د اختلاف باندې کول بالکل صحیح دي او دا د تتبع د قراءتونو نه معلومیږي چه ټول قسم اختلافات همدې اُووه طریقو ته راجع کیږي او هغوی ددې انحصار دپاره دلیل استقراء تام ګرځولې ده چه دا هم یو وزني دلیل ګڼړلې کیږي۔

ددې قول قائلین بیا ددې نوعیتونو په تعیین کښې مختلف دي چه دا په اصل کښې د استقراء اختلاف دې۔ نو پدې عام قول کښې ورسره امام ابن قتیبهؒ، محقق ابن الجزریؒ، او قاضي ابوبکر بن الطیبؒ هم ملګرې دې۔ چه د هغوی مذاهب هم دې ته نزدې نزدې دي۔ یعني صرف د استقراء اختلاف دې۔

حافظ ابن الجزریؒ وئیلي دي چه ما د (۳۰) کالو نه زیاته موده ددې حدیث په مفهوم او معنی باندې سوچ کولو تردې چه الله تعالیٰ په ما باندې ددې مفهوم راکولاؤ کړو او شاید

چه هغه به صحیح وی او هغه دا دے چه ما کله صحیح، شاذ، ضعیف او منکر قرائتونه تلاش کړل نو د هغے ټولو اختلاف په اُووه قسمونو کښ منحصر وو، د هغے نه بهر نهٔ وو۔ چه هغه (۱) اختلاف د حرکاتو دے چه په هغے سره په معنیٰ او صورت کښ هیڅ تبدیلی نهٔ راځی لکه ﴿ البخل ﴾ کښ د قراءت څلور نوعیتونه دی۔ او (یَحْسِبُ)۔ کښ دوه نوعیتونه دی۔

(۲) دویم اختلاف د حرکاتو چه په هغے سره معنیٰ بدلیږی، نهٔ لفظ۔ لکه ﴿ فَتَلَقّٰی آدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ ﴾ د آدم د میم په پیش سره او په زیر سره) او کلمات په زیرونو او پیشونو سره۔

یا لکه (وَادَّکَرَ بَعْدَ اُمَّةٍ، اَوْ بَعْدَ اَمَهٍ)۔

(۳) دریم : اختلاف حروف چه په هغے سره معنی بدلیږی لیکن صورت کښ فرق نهٔ راځی لکه ﴿ تَبْلُوْا او تَتْلُوْا- یا نُنَجِّیْكَ بِبَدَنِكَ او نُنَحِّكَ بِبَدَنِكَ ﴾۔ (٤) اختلاف د حروفو چه په هغے سره صورت بدلیږی لیکن معنیٰ باندے هیڅ اثر نهٔ پریوزی لکه [بَسْطَةً او بَصْطَةً، یا الصِّرَاط او السِّرَاط]۔

(۵) اختلاف د هغه حروفو چه په هغے سره د لفظ شکل او معنی دواړه بدلیږی لکه (اَشَدُّ مِنْكُمْ) او (مِنْهُمْ)۔

(٦) اختلاف د تقدیم او تاخیر لکه (سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ) او (سَكْرَةُ الْحَقِّ بِالْمَوْتِ)۔ (۷) اختلاف د زیادة او نقصان لکه (وَاَوْصٰی)۔ او

﴿ وَوَصّٰی ﴾ یا لکه ﴿ وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰی ﴾ او [وَالذَّكَرِ وَالْاُنْثٰی]۔ نو دا هغه اُووه قسمونه او نوعیتونه دی چه ددے نه د قرائت اختلاف بهر نهٔ دے۔ [النشر فی القراء ات العشر ۱/ ۲٦]۔

بیا پدے باندے چه کوم اعتراضات واردیږی هغه ئے جواب کړیدی۔

نو پدے کښ راجح قول که اول شی نو بیا به د دغه اُووه لغاتونه مشهور لغات مراد وی چه هغه اُووه دی او باقی به په هغے کښ داخل وی۔

## اقوال اخریٰ فی هذا الحدیث :

پدے باره کښ نور اقوال چه هغه ضعیف دی دا دی چه د ما قبل سره نمبر وار ذکر کیږی

(۳) یو دا چه دا حدیث د مشکلاتو نه دے چه معنیٰ مقصود ئے مونږ ته نهٔ معلومیږی ځکه چه حروف جمع د حرف ده او حرف مشترك لفظی دے په ډیرو معانیو باندے ئے اطلاق کیږی او مونږ سره د معنی مقصود د تعیین هیڅ دلیل نشته۔

لیکن دا قول ضعیف دی وجه دا ده چه دلته قرینه په تعیین د معنی مقصود ے شته چه هغه د مخکښ حدیثونو نه معلومیږی چه هغه اختلاف د قراء ت د الفاظو دے نۀ د معانیو۔

او دارنگه دغه اختلاف د الفاظو په اُووه طریقو کښ بند دے۔ لکه چه مخکښ بیان شو۔ بله دا چه هرکله ددے حدیث په معنیٰ څوك نۀ پو هیږی نو ددے په وینا کښ بیا حکمة څه شو ؟۔

٤- بل قول : قاضی عیاض ؒ او د هغه متبعین وائی چه لفظ د سبعه چه پدے حدیث کښ راغلے دے نو ددے نه حقیقةً اووه عدد نۀ دے مراد بلکه دا کنایه ده د کثرت او ډیروالی نه په احادو (ایکائی) کښ لکه په عربئ کښ سبعین لفظ کنایه وی د کثرت نه په عشراتو (دهائیو) کښ لکه سبعمائة کنایه وی د کثرت نه په مئات (سینکړو) کښ۔

لیکن دا قول هم ضعیف دے۔ وجه دا ده چه قرائن او دلائل موجود دی چه د سبعه نه مراد حقیقةً هغه عدد دے چه د شپږو نه پورته او د اتو نه خکته وی۔ ځکه چه حدیث کښ جبرئیل علیه السلام به یو یو حرف زیاتولو تردے چه اُووتو اُورسیدو او زیادت ئے اُونکړو۔ لکه مخکنی حدیثونه اُوګوره۔

٥- پنځم قول : بعض وائی : د حروف سبعه ؤ نه د قراء سبعه ؤ قراء اتِ سبعه مراد دی۔لیکن دا هم ضعیف دے صاحب ددے قول اُولیدل چه د قراء سبعه ؤ قراء ات سبعه ؤ ته په امت مسلمه کښ مقبولیت او شهرت حاصل شویدے، او غالباً عام کلمات ددے اُووه قراء تونو نه بهر نۀ دی نو دوی په حدیث کښ د حروف سبعه ؤ تفسیر په قراء ات سبعه ؤ سره اُوکړو حال دا چه پدے باندے تقریباً اجماع ده چه ددے نه قراء ات سبعه مراد نۀ دی ځکه چه تر دریمے صدئ پورے قرائتونه منضبط او مدون شوی نۀ وو۔

د ټولو نه رومبے ابوعبید قاسم بن سلام متوفی (۲۲٤ هـ) ((کتاب القراء ات)) اُولیکلو چه په هغے کښ ئے د (۲۵) قاریانو قراءتونه جمع کړیدی چه په هغے کښ مشهور قراء سبعه هم شامل دی۔ نو اُوګوره دا قراء تونه خو روستو مشهور شویدی او حدیث د رسول الله ﷺ مخکښ وئیلے شویدے۔

ددے وجه نه د علم قرائت مشهور امام ابن الجزریؒ متوفی (۸۳۳هـ) دا قول ډیر په سختئ سره رد کړیدے او لیکلی ئے دی چه د شاذ او ضعیف قراء ت نه علاوه متواتر قراء تونه هم په اُوو کښ منحصر نۀ دی بلکه ددے نه ډیر زیات دی۔

[انظرعلوم القرآن للشیخ گوهر رحمان]۔

علامہ زرقانیؒ پدے قول باندے داسے رد کړیدے چہ یا بہ مراد ددے نہ دا وی چہ هرہ کلمہ د قرآن بہ پہ اُوہ قراء تونولوستلے شی نو دا خو ممنوع دہ ځکہ چہ داسے کلمات خو پہ قرآن کښں ډیرکم دی چہ هغے کښں اُووہ قرائتونہ وی۔ او کہ مراد ددے نہ دا وی چہ آخری درجہ د قراء تونو پہ یوہ کلمہ کښں تر اُوو پورے رسیږی نو دا خبرہ هم مسلم نۂ دہ ځکہ چہ بعض کلمات د قرآن داسے هم شتہ چہ هغہ د اُووہ قرائتونو نہ پہ زیاتو باندے هم لوستلے کیږی لکہ پہ ﴿ عَبَدَ الطَّاغُوتَ ﴾ [المائدہ : ٦٠] کښں علماء د علم القراء ۃ لیکلی دی چہ دا پہ (۲۲) طریقو سرہ لوستل جائز دی۔ لهذا دا قول هم ضعیف شو۔ [مناهل العرفان ۱۲۸/۱]۔

البتہ دا اُووہ قراء تونہ داخل دی پہ دغہ اُووہ حرفونو کښں نو د قراء اتِ سبعہ او احرف سبعہ ترمینځ عموم خصوص مطلق دے قراء ات خاص دی او اُحرف سبعہ عام دی۔ځکہ چہ دغہ حروف سبعہ هر هغہ قراء ت تہ شاملیږی چہ نبی ﷺ کړے وی۔

دارنګہ صحابہ کرامو کړے وی او دغہ شان شاملیږی هغہ تہ هم چہ دغہ اُووہ قاریانو کړے وی بلکہ د اُوو نہ زیاتو (لسو وغیرہ) تہ هم شاملیږی او کوم چہ منسوخ شوی وی او دغہ قاریانو تہ رسیدلے نۂ وی هغے تہ هم شاملیږی۔

٦- شپږم قول : بعض وائی : د حروف سبعہ ؤ نہ معانی سبعہ مراد دی یعنی زجر، امر، حلال، حرام، محکم، متشابہ او امثال۔ دا قول ضعیف دے ځکہ دذے پہ بارہ کښں چہ د ابن مسعودؓ نہ روایت نقل دے نو هغہ منقطع دے۔لکہ روایت داسے دے :

[عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ اَنَّهٗ قَالَ :كَانَ الْكِتَابُ الْاَوَّلُ نَزَلَ مِنْ بَابٍ وَّاحِدٍ وَعَلٰى حَرْفٍ وَّاحِدٍ وَنَزَلَ الْقُرْاٰنُ مِنْ سَبْعَةِ اَبْوَابٍ وَعَلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ: زَجْرٌ وَاَمْرٌ وَحَلَالٌ وَحَرَامٌ وَمُحْكَمٌ وَمُتَشَابِهٌ وَاَمْثَالٌ فَاَحِلُّوْا حَلَالَهٗ وَحَرِّمُوْا حَرَامَهٗ وَافْعَلُوْا مَا اُمِرْتُمْ بِهٖ وَانْتَهُوْا عَمَّا نُهِيْتُمْ عَنْهُ، وَاعْتَبِرُوْا بِاَمْثَالِهٖ وَاعْمَلُوْا بِمُحْكَمِهٖ وَآمِنُوْا بِمُتَشَابِهِهٖ وَقُوْلُوْا آمَنَّا بِهٖ كُلٌّ مِنْ عِنْدِ رَبِّنَا]

[الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان (٦٣/٢) رقم الحدیث : ٧٤٢) ابن جریر ٣٠/١) مشکل الآثار (١٨٥/٤) وقال منقطع واخرجه الحاکم (٢٨٩/٢) وقال صحیح ولکن قال الذهبی : منقطع] ۔

(ابن مسعودؓ نہ روایت دے چہ رسول اللہ ﷺ فرمایلی دی : مخکنی کتابونہ پہ یو باب سرہ او پہ یو حرف سرہ نازل شوی وو او قرآن پہ اُووہ بابونو او اُووہ حرفونو سرہ نازل

شویدي یعنی زجر، امر، حلال، حرام، محکم، متشابه او امثال باندې. نو تاسو حلال حلال اُوګنړئ او حرام حرام اُوګنړئ، او د کوم کارچه تاسو ته حکم شویدې په هغې عمل اُوکړئ او د کوم کار نه چه تاسو منع شوی یئ د هغې نه منع شئ او د مثالونو نه عبرت حاصل کړئ او په محکم باندې عمل اُوکړئ او په متشابه باندې ایمان راوړئ او داسې اُووایئ چه مونږ په متشابه باندې ایمان راوړو دا ټول زمونږ د رب د طرف نه دی)). نو امام طحاویؒ او ذهبیؒ دې ته منقطع وئیلي دي. ځکه چه د ابوسلمه بن عبد الرحمن بن عوف ملاقات د ابن مسعود سره نۀ دې شوې. ځکه ابن مسعودؓ په خلافت د عثمان کښې په سنه (۳۲ یا ۳۳) کښې وفات شویدې او د ابوسلمه وفات په (۹٤) یا (۱۰٤) کښې شویدې دوه قوله پکښې دی.

[تهذیب الکمال للمزی ۲۷۲/۱۲].

حافظ ابن جریرؒ ددې دویم جواب داسې ورکړیدې چه که دا حدیث د ابن مسعودؓ قابل قبول هم شي نو بیا هم پدې کښې د مضامین سبعه ؤ (یعنی ابوابو) تفصیل بیان شویدې او د حروف سبعه ؤ بیان نۀ دې شوې. دغه شان نور اقوال هم شته لیکن هغه بعید دی. بس پدې باندې اکتفاء کوو والله اعلم.

## هل بقی الاحرف السبعة فی المصحف العثمانی ؟

[ آیا په مصحف عثمانی کښې اووه حرفونه موجود وو؟ ]

پدې باب کښې د ابن جریر الطبریؒ او د امام طحاویؒ ترمینځ اختلاف دې.

۱- د امام ابن جریر الطبریؒ او د هغه د تابعدارو رایه دا ده چه د مصحف عثمانی د لغت قریش نه علاوه باقی شپږ لغات منسوخ شوی نۀ وو بلکه متروك القراءت ګرځولي شوی وو، دې دپاره چه فتنه د خلقو ختمه شي ځکه چه خلقو اختلاف د لغاتو سبب د فتنې او د یو بل د تکفیر ګرځولې وو نو عثمان قرآن په یو لغت د قریشو تیار کړو چه فتنه ختمه شي او باقی حروف ئې اُونۀ لیکل اګرکه په روستو زمانه کښې چه د فتنې یره ختمه شوه نو په نورو لغاتو هم لوستل جائز دی لکه سبع قراءات کښې هغه لوستلې شي.

۲- او د امام طحاویؒ متوفی (۳۲۱هـ) رائې دا ده چه ((قرآن کریم اصل کښې د قریشو په

ژبه نازل شوے وو ځکه چه دا د رسول الله ﷺ قوم وو لیکن چونکه د عربو د نورو قبیلو دپاره د قریشو په ژبه قراءت کول گران او مشکل وو پدے وجه په ابتداء کښ دا اجازه ورکړے شوه چه کومو خلقو ته په یو لغت کښ تلاوت کول مشکل وی نو هغه دے د خپلے علاقے په مرادف او هم معنیٰ الفاظو کښ تلاوت اُوکړی او د هغه متبادل الفاظو انتخاب هغوی پخپله نشو کولے بلکه رسول الله ﷺ به هغوی ته تعلیم ورکولو او د هغے تعیین به ئے ورته کولو او صرف د هغه الفاظو اجازت وو کوم چه به رسول الله ﷺ خودلی وو۔ نو د عربو قبیلو به پدے اجازت باندے عمل کولو تردے چه په هغے کښ لیکونکی خلق زیات شو، او د قریشو په ژبه لوستلو باندے عادت او اموخته شو او هغوی قرآن کریم په هغه الفاظو کښ وئیل او یادول شروع کړل په کومو چه په ابتداء کښ نازل شوے وو، نو بیا د قرآن د اصل لغت نه علاوه د نورو قبیلو په ژبه کښ د لوستلو اجازت ختم شو۔ مطلب دا چه په اُووه لغاتو باندے د قرآن د لوستلو اجازت صرف څه خاص وخت دپاره ورکړے شوے وو او کله چه هغه ضرورت ختم شو نو په حروف سبعه کښ د قراءت کولو رخصت هم ختم شو او قرآن دوباره په یو حرف یعنی د قریشو په لغت کښ لوستل شروع شو۔ نو د امام طحاویؒ په نیز د رسول الله ﷺ د وفات نه مخکښ د ژوند په آخری رمضان کښ د جبریل ؑ سره د قرآن کریم آخری دور کړے وو چه دے ته په احادیثو کښ (عرضۂ اخیره) وئیلے شی۔ نو پدے دور کښ د باقی لغاتو لوستلو اجازت منسوخ کړے شو او صرف د قریشو لغت پاتے شو۔ نو د طحاوی په نیز د ابوبکر صدیق صحائف او د عثمان مصحف دواړه د قریشو په لغت کښ مرتب شوی وو ځکه چه باقی شپږ لغات پخپله د رسول الله ﷺ په عرضه اخیره کښ پورته کړے شوی وو۔

[مشکل الآثار للطحاوی ١٨٥/٤) طبع حیدر آباد دکن]۔

نو د ابن جریرؒ او د طحاویؒ د دواړو د رائے فرق دا شو چه ددے دواړو ترمینځ صرف د منسوخ او متروك اختلاف دے چه د طحاوی په نیز د قریشو د لغت نه علاوه حروف سته منسوخ شویدی او د ابن جریر په نیز منسوخ شوی خو نهٔ دی بلکه صرف متروك (پریخودلے شوی) دی۔ دا دواړه قولین پدے طریقه راجمع کیدے هم شی چه نن صبا چه کوم مصحف الامام (مصحف عثمانی) موجود دے نو هغه صرف د قریشو په لغت راجمع شویدے۔ او دواړه امامان دا خبره منی۔ اختلاف ئے صرف په باقی حروفو کښ دے چه یا منسوخ دی یا متروك دی۔

لیکن امام طحاویؒ د نسخ په دعوه کښې هیڅ دلیل نۀ لری۔ ځکه چه د بخاری، مسلم او د سنن او مسانیدو په احادیثو کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ به د جبریل علیه السلام سره دور د قرآن کولو او په آخری رمضان کښې ئې دا دور دوه ځل کړے وو لیکن دا خبره په هیڅ مرفوع حدیث کښې نۀ ده راغلے چه په اخیری عرضه کښې د قریشو نه علاوه نور لغات منسوخ شویدی او حال دا چه د نسخ دعوئ دپاره قطعی دلیل پکار دے۔

علامه ابن الجزریؒ په (النشر) کښې لیکلی دی چه عثمان رضی الله عنه ډیر مصاحف لیکلی وو چه بعض ئې مکے ته بعض یمن ته بعض بصرے او بعضے کوفے او بعض شام ته لیږلی وو او یو مصحف ئې ځانله مدینه کښې ایسار کړے وو چه هغے ته ئې (مصحف الامام) وئیلو او ټول امت پدے متفق دے چه دے مصاحفو کښې کوم الفاظ او کلمات او قراءات موجود وی نو هغه به مقبول وی او ددے نه علاوه چه کوم زیادت او نقصان، یا ابدال د یوے کلمے په بله باندے وو او د هغے اجازه امت ته ورکړے شوے وه دپاره د آسانی او فراخی راوستلو په هغوی باندے او هغه په متواتره طریقه د قرآن نه ثابت نۀ وی نو هغه امت پریخے دے۔

[راجع مقدمة تفسير القاسمي ۱/۱۷۹]۔

(۳) قول : علامه زرقانیؒ وائی : دا خو د هغه علماؤ مذهب وو چه هغوی د حروف سبعه ؤ نه لغات سبعه مراد کول لیکن مونږ دا غوره کړیدی چه د حروف سبعه نه د الفاظ او کلماتو اُووه قسمه تغیرات او وجوه د اختلاف دی نو بناء پدے باندے مونږ وایو چه عثمان رضی الله عنه د خپل مصاحفو رسم الخط داسے تیار کړے وو چه په هغے کښې دا وجوه اکثر راګیریدل او کوم کلمات چه د یو بل نه مخالف وو او په یو رسم الخط کښې دواړه نۀ جمع کیدل نو هغه ئې په نورو مصاحفو کښې لیکلے وو نو ټول مصاحف مشتمل وو په دغه ټولو تغیراتو باندے یعنی مجموعه مصاحف د یو حرف نه هم بالکلیه خالی نۀ وو۔ بنا ئې د هغه رسم الخط طریقے په اُووه قسمه تغیراتو کښې ذکر کړیدی لکه مثلاً اول اختلاف د اسماؤ په افراد او جمعیت کښې لکه :

﴿ وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ ﴾ [المؤمنون ۸] پدے کښې مفرد قراءت هم راغلے دے لکه ﴿ لِأَمَانَتِهِمْ ﴾ نو عثمان داسے رسم الخط کړیدے : [ لِأَمَٰنَٰتِهِمْ] نو پدے کښې که ولاړ زبرونه اُووئیلے شی نو د جمعے صیغه ترے جوړیږی او که صرف په میم باندے ولاړ زبر اُووئیلے شی نو مفرد ترے جوړیږی۔

دغه شان دویم اختلاف د افعالو وو لکه ﴿ یَعۡکُفُونَ عَلٰی اَصۡنَامٍ لَّهُمۡ﴾ [اعراف :۱۳۸] نو پدے کښ په کاف باندے ضمه (پیش) او کسره (زیر) دواړه راغلی ده او دا صیغه دواړه احتماله لرلے شی۔ ځکه چه مصحف عثمانی کښ زبر، زیر، پیش نهٔ وو لیکلے شوی۔
دریم اختلاف د وجوه الاعراب وو لکه﴿ وَلَایُضَارَّ کَاتِبٌ﴾ ۔ پدے کښ په راء باندے فتحه او ضمه دواړه راغلی ده نو دا کلمه د دواړو برداشت کولے شی لکه دا خبره واضحه ده۔
څلورم اختلاف د نقصان او زیادت وو نو بعض به هغه وو چه په بعض مصاحفو کښ به د رسم موافق وو لکه ﴿ وَاَعَدَّ لَهُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ تَحۡتَهَا الۡاَنۡهٰرُ﴾ [التوبة :۱۰۰] په بل قراء ت کښ ﴿ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا﴾ دے من کلمه پکښ زیاته ده او دواړه متواتر قراء تونه دی نو (تحتها) کلمه د کسرے او فتحے دواړو برداشت کولے شی لیکن د من زیادت خو په یو مصحف کښ نشی کیدے نو عثمان دا په مصحف مکی کښ اُولیکله نهٔ په نورو کښ او ددے په شان هغه قراء تونه دی چه هغه د مصحف د رسم الخط سره برابر نهٔ وی لکه قراء ت د ابن عباسؓ شو پدے آیت کښ : ﴿ یَاۡخُذُ کُلَّ سَفِیۡنَةٍ صَالِحَةٍ غَصۡبًا﴾ نو دا قراء ت د نبی ﷺ په آخری رمضانی دور کښ منسوخ کړے شویدے۔
نو معلومه شوه چه بعضو وجوهو باندے دغه مصاحف مشتمل وو او بعضو باندے نهٔ وو مشتمل پدے وجه چه هغه منسوخ شوی وو۔ دغه شان نور وجوهات ئے ذکر کړیدی۔
[مناهل العرفان فی علوم القرآن ۱/۱۲۶]۔
نو ددے قول خلاصه دا شوه چه مصحف عثمانی اګرکه په یو لغت د قریشو لیکلے شویدے لیکن ددے رسم الخط ئے په داسے ترتیب سره کړیدے چه د هغه نورو طریقو ګنجائش هم پکښ شته۔ لهذا نور قراء تونه او وجوه هم ثابت دی۔ او هغه نهٔ دی منسوخ کړے شوی او نهٔ دی متروك کړے شوی بلکه هغه ټول حروف سبعه پدے مصحف کښ جاری کیدے شی چه هغه بیا روستو زمانه کښ قراء ات سبعه یا عشره سره د علم القراء ات په کتابونو کښ جدا جدا هم ذکر شویدی۔ وجه دا ده چه مقصود د حروفِ سبعه نه امت ته تیسیر او آسانی ورکول وو دے دپاره چه امت اسلامیه ته د قرآن په اداء کښ هیڅ مشکلات راپیښ نشی۔ نو ددے حکمة د وجه نه هم دغه حروف سبعه اُوس هم باقی پاتے دی۔ [مناهل ۱/۱۳۱]۔

**فائده :** د حروف سبعه د حقیقت په باره کښ چه کوم اختلاف د آراؤ راغلے دے نو هغه د قرآن په صدق او رشتینوالی باندے هیڅ اثر نهٔ غورزوی۔ وجه دا ده چه که د حروف

سبعه نه مراد د اُووه قبائلو لغات سبعه واخستے شی لکه دا رایه د ابن جریرؒ او د هغه د تابعدارو (جمهورو امامانو د امت) وه او که د قراءت اُووه وجوه د اختلاف او تغیرات واخستے شی لکه دا قول د امام ابن قتیبهؒ او ابن الجزریؒ وغیره وو۔

دا دواړه د قرآن په صدق هیڅ اثر نهٔ غورزوی ځکه چه عثمان ﷺ چه کوم مصحف تیار کړے وو په هغے باندے د صحابه کرامو اجماع شوے وه او همدغه مصحف مونږ ته په تواتر سره رارسیدلے دے او زمونږ په لاسونو کښې موجود دے۔

دغه شان دا خبره هم اتفاقی ده چه کوم قراءتونه په تواتر سره مونږ ته رارسیدلی دی نو هغه د رسول الله ﷺ نه ثابت دی او په هغے باندے قراءت کول جائز دی لیکن د متواترو قراءتونو نه سویٰ چه کوم شاذ قراءتونه نقل شویدی نو هغه د قرآن حصه نهٔ ده ځکه چه د قرآن د حصه کیدو دپاره متواتر کیدل ضروری دی۔

دغه شان پدے خبره هم اتفاق دے چه مصحف عثمانی د قریشو په ژبه لیکلے شوے وو پدے وجه کوم قراءت چه د هغے د رسم الخط مطابق نهٔ وی نو هغه به صحیح نهٔ وی، پاتے شو حروف سبعه نو که د هغے نه لغات سبعه مراد شی چه د هغے نه شپږ متروك القراءت شویدی او یو یعنی د قریشو لغت په مصحف عثمانی کښې موجود دے او د قراءت چه څو مره نوعیتونه او وجوه دی هغه ټول په ټوله په همدے لغت د قریشو کښې موجود دی یا ددے نه مراد همدغه وجوه سبعه شی۔ دواړو صورتونو کښې د قرآن حقانیت نهٔ خرابیږی او د مصحف عثمانی په متواتر کیدو او مستند کیدو باندے ددے اختلاف هیڅ قسمه اثر نهٔ پریوزی بلکه دا اختلاف صرف د حدیث په تشریح کښې یو نظریاتی قسم او د رائے اختلاف دے، چه ددے په وجه مصحف عثمانی ته اختلافی نشی وئیلے کیدے، ځکه که ددے حروف سبعه نه لغات یا قراءت مراد شی نو په دواړو صورتونو کښې د معنی او مراد په اعتبار سره ټول حروف متحد المعنی وو او په دے سره په مضمون کښې هیڅ نقصان نهٔ راتلو او قرآن په متضاد او متناقض المعنی حروفو یا قراءتونو باندے بالکل مشتمل نهٔ دے بلکه ددے قسم اختلاف او تناقض نه پاك دے۔ او پدے خبره هم کوم دلیل موجود نهٔ دے چه د قرآن کریم لیکل، یا لوستل یا یادول په ټولو حروفو یا ټولو قراءتونو لازم دی او نهٔ په امت کښې دا د چا مذهب دے، بلکه په کوم لغت او قراءت باندے چه محفوظ کړے شی نو د قرآن کریم د حفاظت وعده پوره کیږی۔ والله اعلم۔

[راجع لتفصیل المقام مناهل العرفان ۱/۱۳۹]۔

## ۲۲- الامر : قراء سبعه، د هغوی نومونه او تاریخ وفات

د قاریانو نومونه پیژندل ضروری دی چه پدے سره به مونږ ته ضعف د هغه قول هم معلوم شی چه هغوی د حروف سبعه ؤ نه قراء ات سبعه د قراء سبعه ؤ مراد کړی وو چه د دوی او د رسول الله ﷺ ترمینځ څومره موده فاصله وه. او دا قراء ات چونکه مونږ ته ددے قاریانو په وساطت رارسیدلی دی لهذا ددے نومونه او تاریخ وفات هم پیژندل د زیات او تحقیقی علم دپاره ضروری دی.

| نوم | تاریخ وفات |
|---|---|
| ۱- د شام قاری ابن عامر یحصبی رحمه الله. | ۱۱۸ هـ |
| ۲- د مکے قاری عبد الله بن کثیر رحمه الله. | ۱۲۰ هـ |
| ۳- د کوفے قاری عاصم بن ابی النجود رحمه الله. | ۱۲۷ هـ. |
| ٤- د بصرے قاری ابوعمرو بن العلاء رحمه الله. | ۱٥٤ هـ. |
| ٥- د مدینے قاری نافع بن ابی نعیم رحمه الله. | ۱٦۹ هـ. |
| ٦- د کوفے قاری حمزه بن حبیب الزیات رحمه الله. | ۱۸۸ هـ. |
| ۷- د کوفے قاری کسائی علی بن حمزه رحمه الله. | ۱۸۹ هـ. |

دا هغه مشهور اُووه قاریان دی چه ټول په دویمه صدئ هجری کښ وفات شویدی.

دے سره درے قاریان نور هم مشهور دی چه ټول لس قاریان جوړیږی چه هغوی ته قُراء عشره وائی.

| نوم | تاریخ وفات |
|---|---|
| ۸- ابوجعفر یزید بن قعقاع رحمه الله. | ۱۳۰ هـ |
| ۹- یعقوب بن اسحاق الحضرمی رحمه الله. | ۲۰٥ هـ. |
| ۱۰- خلف بن هشام رحمه الله. | ۲۲۹ هـ. |

## ۲۳- الامر الثالث والعشرون : اسماء القرآن

[ درویشتم بحث : د قرآن کریم نومونه ]

د یو کتاب پوره پیژندل هله کیږی چه د هغه نوم اُوپیژندلے شی، او کله نا کله موضوع د یو کتاب د هغه د نوم نه هم معلومیدے شی. نو الله تعالیٰ ددے خپل کتاب دپاره ډیر

نـومونه مقرر کړيدي چه دا دلالت کوي په شرافت او فضيلت د قرآن۔ ځکه چه ډيروالي د نـومـونـو دلالـت کـوي پـه شرافت او فضيلت د مسمي بانديے، لکه د الله تعالیٰ نومونه او د رسـول الله ﷺ نـومـونه زيات دي دغه شان په عربيئ ژبه کښ د اسد (زمري) نومونه زيات دي دا دلالـت کـوي د هـغـه په قوت بانديے۔ دغه شان د شرابو نومونه زيات دي ځکه چه دا عربو ته ډير محبوب وو۔

عـلامـه ابـوالـمـعـالـي عـزيزي بن عبد الملك المعروف ب شيذله متوفي (٤٩٤هـ) په خپـل کتـاب (البرهـان فـي مشکلات القرآن) کښ ليکلي دي چه الله تعالیٰ د خپل کتاب (٥٥) نـومونه ذکر کړيدي او علامه زرکشيؒ متوفي (٧٩٤هـ) په خپل کتاب (البرهان في علوم القرآن) کښ د علامه شيذله په حواله سره دغه (٥٥) نومونه نقل کړيدي۔ او علامه ابـوالـحسـن الـحرالـيؒ متـوفي (٦٤٧هـ) د قرآن د (٩٠) نوي نومونو نه زيات ذکر کړيدي ليـکـن علامه زرکشيؒ وئيلي دي چه دغه نومونه اکثر د قرآن کريم صفات دي او اعلام نهٔ دي۔

[البرهان في علوم القرآن ٢٧٣/١) النوع الخامس عشر]۔

او عـلامـه امـام الـمفسرين محمد بن جرير الطبري متوفي (٣١٠هـ) وئيلي دي : [اِنَّ اللّٰهَ سَمّٰى تَنْزِيْلَهٗ اَسْمَاءَ اَرْبَعَةً مِنْهُنَّ الْقُرْاٰنُ وَمِنْهُنَّ الْفُرْقَانُ وَمِنْهُنَّ الْكِتَابُ وَمِنْهُنَّ الذِّكْرُ] [تفسير ابن جرير ٤٢/١]۔

(الله تعالیٰ د خپل کتاب څلور نومونه ايخودي دي، قرآن، فرقان، کتاب، ذکر)۔

عـلامـه ابـن عـطيـه غـرنـاطيؒ متـوفي (٥٤١هـ) هم دغه څلور نومونه ذکر کړيدي او عـلامـه زرقـانيؒ پـکښ پنځم نوم التنزيل اضافه کړيدے۔ او همدغه پنځه نومونه ئے ذکر کړيدي۔

[الـمـحرر الوجيز ٦٨/١) لابن عطيه طبع قطر) ومناهل العرفان للزرقاني] [١٦/١] طبع المكتبة التدمرية رياض] ۔

او عـلامـه ابـن عـاشـور متـوفـي (١٢٨٤هـ) شپږ ذکر کړيدي (تنزيل، الکتاب، الفرقان، الذکر، الوحي، کلام الله)

[التحرير والتنوير ٧٠/١) المقدمة]۔

او عـلامـه مـجد الدين الفيروز آبادي متوفي (٨٠٧هـ) پوره سل (١٠٠) نومونه د قرآن کـريـم ذکر کـړيـدي چـه په هغے کښ اسماء عَلَمِيه (ذاتي نومونه) پنځه دي۔ او باقي اسماء

صفتیه دي۔ چه د هغې تفصیل روستو راځي خو مشهور پنځه اول بیانیږي :

۱ – [اَلْقُرْآنُ]۔ ډیر مشهور نوم (القرآن) دے او ددے وجه د تسمیه دا ده : د عبد الله بن عباسؓ د قول مطابق د القرآن ماده (ق، ر، ء) ده او دا د فُعلان په وزن باندے د مصدر صیغه ده په معنیٰ د لوستلو سره لکه غُفران، کُفران، خُسران۔ او قرآن ته ځکه قرآن وائي چه دا هم د لوستلو دپاره نازل شویدے او ډیر لوستلے کیږي۔ نو قرآن مصدر په معنیٰ د مفعول دے یعنی مقروء کتاب۔ (د لوستلو کتاب)۔ ابن جریر الطبريؒ (متوفی ۳۱۰)، امام زجاج متوفی (۳۱۱ھ) همدغه قول غوره کړیدے۔ [تفسیر ابن جریر ۴۳/۱]۔

۲ – قتاده بن دعامه السدوسيؒ متوفی (۱۱۷ھ) وئیلي دي چه قَرَءَ په معنیٰ د جمع کولو سره راځي لکه عرب وائي :

[قَرَءْتُ الشَّيْءَ اِذَا جَمَعْتَهٗ وَضَمَمْتُ بَعْضَهٗ اِلٰی بَعْضٍ]۔

(یعنی کله چه یو شے جمع کیږي او د هغې اجزاء د یو بل سره یو ځائے کیږي نو په هغه وخت کښې قرءت الشيء) وئیلے کیږي یعنی ما دا فلانے شے راجمع کړو) او د قرآن کریم سورتونه او آیتونه هم د یو بل سره مربوط دي او په یو مجموعه او مصحف کښې راجمع کړے شویدي او د نزول نه مخکښې هم دا په لوح محفوظ کښې په مرتب شکل لیکلے شوي وو۔ نو د قرآن معنیٰ ده د سورتونو او آیتونو مرتب مجموعه۔

ابن جریرؒ د ابن عباسؓ قول راجح کړیدے اګرکه د عربیت په لحاظ دواړه صحیح دي۔ وجه دا ده چه د قرآن اطلاق صرف په مؤلف مصحف باندے نهٔ کیږي بلکه په یو آیت هم کیږي۔

[ابن جریر ۴۳]۔

د امام شافعيؒ نه نقل دي چه ((قرآن)) اسم مشتق نهٔ دے بلکه عَلَم دے او دا به د همزے نه بغیر لوستلے شي د فُعال په وزن قُرَان۔

[الاتقان فی علوم القرآن ۱۶۲/۱]۔

۲ – [اَلْفُرْقَانُ]۔ دویم نوم د قرآن کریم فرقان دے۔ لکه ﴿هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِّنَ الْفُرْقَانِ﴾ [البقره : ۱۸۵] ﴿وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ﴾ [آلعمران : ۴]

او فرقان د مصدر صیغه ده په معنیٰ د [اَلْفَصْلُ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ]

(یعنی د دوه څیزونو ترمینځ جدائي او فرق کول)

او د الله تعالیٰ دا کتاب د حق او باطل، د معروف او منکر، د حلال او حرام او نفع او نقصان

ترمینځ فرق او جدائي راوستو دپاره نازل شویدے او کره کوته په همدے کتاب معلومیږي۔

۳- [اَلْکِتَابُ]۔

د قرآن دا نوم (٦٨) کرته قرآن کښ استعمال شویدے۔ لکه مثلًا: ﴿هُوَ الَّذِیْ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتَابَ﴾ [آلعمران :۷]۔

کِتَابٌ او کُتُبٌ په معنیٰ د جمع کولو، اویو ځائے کولو سره راځي۔ لکه علامه جوهريّ وائي :[اَلْکُتُبُ الجَمْعُ ......وَالْکَتِیْبَةُ الجَیْشُ وَتَکَتَّبَتِ الْخَیْلُ اَیْ تَجَمَّعَتْ] [صحاح ۲۰۸/۱]۔

(کُتُبٌ په معنیٰ د جمع کولو ...... لبنکرته کتیبه وائي او د تَکَتَّبَتِ الْخَیْلُ معنیٰ ده، آسونه راجمع شول)۔

علامه سیوطيّ فرمائي : [فَاَمَّا تَسْمِیَتُهٗ کِتَاباً فَلِجَمْعِهٖ اَنْوَاعَ الْعُلُوْمِ وَالْقِصَصِ وَالْاَخْبَارِ علی اَبْلَغِ وَجْهٍ وَالْکِتَابُ لُغَةً الجَمْعُ]۔

(قرآن ته کتاب نوم پدے وجه ورکړے شو چه پدے کښ مختلف قسم علوم، قِصَص، (قصے) او واقعات او اخبارات په ډیر کامل او مؤثر طرز سره جمع کړے شویدي او کتاب په لغت کښ جمع کولو ته وائي)۔

دارنګه جوهريّ او ابن منظور افریقيّ دواړو د کتاب بله معنیٰ ۲- الفرض ۳- والحکم هم ذکر کړیده۔ او په قرآن کریم کښ هم د کتاب لفظ د فرض او وجوب او حکم او فیصلے په معنو کښ استعمال شویدے لکه ﴿کُتِبَ عَلَیْکُمُ الصِّیَامُ﴾ اَوْ ﴿کِتَابًا مَّوْقُوْتًا﴾ حدیث کښ دي : [مَنِ اشْتَرَطَ شَرْطًا لَیْسَ فِیْ کِتَابِ اللّٰهِ فَلَیْسَ لَهٗ] [صحیح البخاري ابواب المساجد]۔

(چا چه داسے شرط اُولګولو چه هغه د الله په کتاب یعني حکم کښ نهٔ وي نو هغه به نشي پوره کولے)۔

٤- (اَلذِّکْرُ)۔

دا نوم د قرآن (۲۱) آیتونو کښ راغلے دے۔ لکه ﴿اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّکْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحَافِظُوْنَ﴾ [الحجر۹] ﴿وَاَنْزَلْنَا اِلَیْكَ الذِّکْرَ﴾ [النحل : ٤٤]۔ او د ذکر معنیٰ ده یادول او یاداشت۔ لکه ابن منظور په لسان العرب او ابن درید په جمهرة اللغة کښ لیکي :[اَلذِّکْرُ وَالذِّکْریٰ وَالذُّکْرَةُ ضِدُّ النِّسْیَانِ]۔ (ذکر، ذِکْرٰی او ذُکْرَه د نسیان (هیرولو) ضد دے یعني یادول۔ او قرآن کریم هم د الله تعالیٰ د عظمت او توحید او د آخرت د وعد او وعید یاد دهاني ورکوي او خلق د

غفلت د خوب نه بیداروی۔ دارنګه قرآن کریم د مخکنو کتابونو او پخوانو انبیاؤ او تیر شوو امتونو حالات او علوم او حکمتونه خلقو ته یادوی پدے وجه ورته الذکر وئیلے شی۔

دارنګه ذکر کلمه په معنیٰ د[اَلصِّيتُ وَالثَّنَاءُ وَالشَّرَفُ] [قاموس، لسان]۔ (شهرت، مدح او صفت کول او عظمت او شرافت سره راځی) او قرآن کریم هم د عظمت او شرافت او برکت او رفعت خزانه ده او څوك چه پدے باندے ایمان راوړی او پدے عمل کوی الله تعالیٰ به ورته عظمت او شرافت او په دین او دنیا کښې شهرت ورکوی۔ لکه آیت کښې دی: ﴿ وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ﴾ [ص ۱]۔

(قرآن د ذکر یعنی د عظمت او شرافت والا کتاب دے)۔

(۵) [اَلتَّنْزِيْلُ]۔

بل نوم د قرآن کریم تنزیل دے۔ دا نوم علامه زرقانیؒ او علامه ابن عاشورؒ ذکر کړیدے او دا په قرآن کریم کښې په (۱۱) آیتونو کښې راغلے دے۔ مثال په طور: ﴿ تَنْزِيْلُ الْكِتَابِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ﴾ [الم السجدة ۲] ﴿ تَنْزِيْلُ الْكِتَابِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ [الزمر ۱] ﴿ تَنْزِيْلُ الْكِتَابِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴾ [غافر ۲]۔

تنزیل ورته پدے وجه وائی چه قرآن کریم د الله تعالیٰ د طرف نه منزل (نازل شوے) کتاب دے، دا د کوم مصنف تصنیف، او د مخلوق جوړ کړده کتاب نهٔ دے بلکه الله تعالیٰ د انسانانو د راهنمایئ دپاره نازل کړیدے۔ نو تنزیل د خالق وی او تصنیف د مخلوق وی.

۶- شپږم: [اَلْوَحْيُ]۔

لکه ﴿ قُلْ إِنَّمَا أُنْذِرُكُمْ بِالْوَحْيِ﴾ [الانبياء ٤٥]۔

قرآن ته پدے وجه وحی وائی چه دا نبی ﷺ ته په واسطه د جبریل باندے رالیږلے شویدے۔

۷- اُووم: [كَلَامُ اللّٰهِ]۔ (د الله تعالیٰ خبرے) لکه﴿ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلَامَ اللّٰهِ﴾ [التوبة :٦]۔

باقی صفتی نومونه دا دی:

(۸) (اَلْعَظِيْمُ) لکه ﴿ مِنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْآنَ الْعَظِيْمِ﴾۔

(۹) (اَلْعَلِيُّ)۔ (اُوچت) لکه ﴿ لَعَلِيٌّ حَكِيْمٌ﴾۔

۱۰- (اَلْعَزِيْزُ)۔ (عزتمند) ﴿ وَإِنَّهٗ لَكِتَابٌ عَزِيْزٌ﴾۔

۱۱- (المجید)۔ (شرافت والا) لکه ﴿ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ ﴾۔
۱۲- (اَلْمُهَيْمِنُ)۔ (په پخوانو کتابونو نگهبان) لکه ﴿ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ ﴾
۱۳- (اَلنُّوْرُ)۔ (رنړا) لکه ﴿ وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِيْ اُنْزِلَ مَعَهُ ﴾۔
۱٤- (اَلْحَقُّ)۔ لکه ﴿ قَدْ جَاءَكُمُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّكُمْ ﴾۔
۱۵- (اَلْحَكِيْمُ)۔ (حکمتونو والا) لکه ﴿ يٰسٓ، وَالْقُرْآنِ الْحَكِيْمِ ﴾۔
۱٦- (اَلْكَرِيْمُ)۔ (عزتمند، فائدو والا) لکه ﴿ اِنَّهُ لَقُرْءَانٌ كَرِيْمٌ ﴾۔
۱۷- (اَلْمُبِيْنُ)۔ (وضاحت کونکے او خپله واضح) لکه ﴿ حٰمٓ وَالْكِتَابِ الْمُبِيْنِ ﴾۔
۱۸- (اَلْمُنِيْرُ)۔ (رنړا والا) لکه ﴿ وَالْكِتَابِ الْمُنِيْرِ ﴾۔
۱۹- (اَلْهُدٰى)۔ (هدایت والا) لکه ﴿ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴾۔
۲۰- (اَلْمُبَشِّرُ)۔ (زیرے ورکونکے) لکه ﴿ وَيُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾۔
۲۱- (اَلشِّفَاءُ)۔ (د شفاء او علاج کتاب) لکه :
﴿ وَشِفَاءٌ لِمَا فِي الصُّدُوْرِ ﴾۔
۲۲- (اَلرَّحْمَةُ)۔ (د رحمت والا کتاب) لکه ﴿ وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴾۔
۲۳- (اَلْمُبَارَكُ)۔ (برکتونو والا) لکه ﴿ كِتَابٌ اَنْزَلْنَاهُ اِلَيْكَ مُبَارَكٌ ﴾۔
۲٤- (اَلْبُرْهَانُ)۔ (یقینی دلیل) لکه ﴿ بُرْهَانٌ مِنْ رَبِّكُمْ ﴾۔
۲۵- (اَلتِّبْيَانُ)۔ (ډیر وضاحت کونکے) لکه ﴿ تِبْيَاناً لِكُلِّ شَيْءٍ ﴾۔
۲٦- (بَيَانٌ)۔ (بیان کونکے) لکه ﴿ هٰذَا بَيَانٌ لِلنَّاسِ ﴾۔
۲۷- (اَلتَّفْصِيْلُ)۔ (د هر شی تفصیل کونکے) لکه ﴿ وَتَفْصِيْلاً لِكُلِّ شَيْءٍ ﴾۔
۲۸- (اَلْمُفَصَّلُ)۔ (جدا جدا بیان کړے شوے) لکه ﴿ اَلْكِتَابَ مُفَصَّلاً ﴾۔
۲۹- (اَلْفَصْلُ)۔ (فیصلے والا کتاب) لکه ﴿ اِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ﴾۔
۳۰- (اَلصِّدْقُ)۔ (رشتینے کتاب) لکه ﴿ وَالَّذِيْ جَاءَ بِالصِّدْقِ ﴾۔
۳۱- (اَلْمُصَدِّقُ)۔ (تصدیق کونکے) لکه ﴿ مُصَدِّقُ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾۔
۳۲- (اَلذِّكْرٰى)۔ (د یاداشت کتاب) لکه (وَذِكْرٰى لِكُلِّ عَبْدٍ مُنِيْبٍ)۔
۳۳- (اَلتَّذْكِرَةُ)۔ (خبره رایادونکے) لکه (اِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ)۔

۳٤- (اَلْحُكْمُ)۔ (فیصله کونکے) لکه (اِنَّا اَنْزَلْنَاهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا)۔
۳۵- (اَلْحِكْمَةُ)۔ (د حکمة کتاب) لکه (حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ)۔
۳٦- (مُحْكَمَةٌ)۔ (مضبوط) لکه (سُوْرَةٌ مُحْكَمَةٌ)۔
۳۷- (اَلْاِنْزَالُ)۔ (نازلول) لکه (لَقَدْ اَنْزَلْنَا اِلَيْكُمْ)۔
۳۸- (اَلتَّصْدِيْقُ)۔ (رشتینے کونکے) لکه (وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِىْ بَيْنَ يَدَيْهِ)۔
۳۹- (اَلْمُنَزَّلُ)۔ (نازل کرے شوے) لکه (مُنَزَّلٌ مِنْ رَبِّكَ)۔
٤۰- (اَلتَّبْصِرَةُ)۔ (د عقلمندئ او پوهے کتاب) لکه (تَبْصِرَةً وَذِكْرٰى)۔
٤۱- (اَلْبَصَائِرُ)۔ (د بصیرت او عقلمندئ کتاب) لکه (هٰذَا بَصَائِرُ لِلنَّاسِ)۔
٤۲- (اَلْمَوْعِظَةُ)۔ (نصیحت) لکه (وَمَوْعِظَةٌ لِلْمُتَّقِيْنَ)۔
٤۳- (اَلْبَيِّنَةُ)۔ (واضح دلیل) لکه (بَيِّنَةٌ مِنْ رَبِّكُمْ)۔
٤٤- (اَلْبَشِيْرُ وَالنَّذِيْرُ)۔ (زیرے) لکه (بَشِيْرًا وَنَذِيْرًا)۔
٤۵- (اَلرِّسَالَةُ)۔ (پیغام د الله تعالیٰ) لکه (فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ)۔
٤٦- (اَلنَّبَأُ)۔ (لوئی خبر) لکه (قُلْ هُوَ نَبَؤٌا عَظِيْمٌ)۔
٤۷- (اَلْقَيِّمُ)۔ لکه (قَيِّمًا لِيُنْذِرَ)۔
٤۸- (قَيِّمَةٌ)۔ لکه (فِيْهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ)۔
٤۹- (اَلرُّوْحُ)۔ لکه (رُوْحًا مِنْ اَمْرِنَا)۔
۵۰- (اَلْكَلَامُ)۔ لکه (حَتّٰى يَسْمَعَ كَلَامَ اللّٰهِ)۔
۵۱- (اَلْكَلِمَاتُ)۔ (خبرے) لکه (مَا نَفِدَتْ كَلِمَاتُ اللّٰهِ)۔
۵۲- (اَلْكَلِمَةُ)۔ لکه (وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ)۔
۵۳- (اَلْآيَاتُ)۔لکه (تِلْكَ آيَاتُ اللّٰهِ)۔
۵٤- (اَلْبَيِّنَاتُ)۔ (واضح دلائل) لکه (بَلْ هُوَ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ)۔
۵۵- (اَلْفَضْلُ)۔ (د الله تعالیٰ احسان) لکه (قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ)۔
۵٦- (اَلْقَوْلُ)۔ (وینا) لکه (اِنَّهٗ لَقَوْلٌ فَصْلٌ) (يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ)۔
۵۷- (اَلْقِيْلُ)۔ (وینا) لکه (وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيْلًا)۔

۵۸- (اَلْحَدِيْثُ)۔ لکه (فَبِاَیِّ حَدِيْثٍ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ)۔
۵۹- (اَحْسَنُ الْحَدِيْثِ)۔
(ښائسته خبره) لکه (اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ)۔
٦٠- (اَلْعَرَبِیُّ)۔ لکه (قُرْآناً عَرَبِيًّا)۔
٦١- (اَلْحَبْلُ)۔ (رسئ) لکه (وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ)۔
٦٢- (اَلْخَيْرُ)۔لکه (مَاذَا اَنْزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوْا خَيْرًا)۔
٦٣- (اَلْبَلَاغُ)۔لکه (هٰذَا بَلَاغٌ لِلنَّاسِ)۔
٦٥- (اَلْبَالِغَةُ)۔(حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ)۔
٦٦- (اَلْمُتَشَابِهُ وَالْمَثَانِیُ)۔ لکه (كِتَابًا مُتَشَابِهًا مَثَانِیَ)۔
٦٧- (اَلْغَيْبُ)۔لکه (يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ)۔
٦٨- (اَلصِّرَاطُ الْمُسْتَقِيْمُ)۔ (نیغه لاره)
لکه (اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ)۔
٦٩- (اَلْحُجَّةُ)۔ (دليل) لکه (قُلْ فَلِلّٰهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ)۔
٧٠- (اَلْعُرْوَةُ الْوُثْقٰی)۔ لکه (فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰی)۔
٧١- (اَلْقَصَصُ)۔ (بيان) لکه (فَاقْصُصِ الْقَصَصَ)۔
٧٢- (اَلْمَثَلُ)۔ لکه (ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا)۔
٧٣- (اَلْعَجَبُ)۔(تعجب والا) لکه (اِنَّا سَمِعْنَا قُرْآناً عَجَبًا)۔
٧٤- (اَلْاَثَارَةُ)۔ لکه (باقيمانده) (اَوْ اَثَارَةٍ مِنْ عِلْمٍ)۔
٧٥- (اَلْقِسْطُ)۔ (د انصاف كتاب) لکه (فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ)۔
٧٦- (اَلْاِمَامُ)۔ (پيشوا) لکه (يَوْمَ نَدْعُوْا كُلَّ اُنَاسٍ بِاِمَامِهِمْ)۔
٧٧- (اَلنُّجُوْمُ)۔ (قسطونو والا) لکه (فَلَا اُقْسِمُ بِمَوَاقِعِ النُّجُوْمِ)۔
٧٨- (اَلنِّعْمَةُ)۔ (نعمت) لکه (مَا اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ لَمَجْنُوْنٌ)۔
٧٩- (اَلْكَوْثَرُ)۔ (ډير خير) لکه (اِنَّا اَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ)۔
٨٠- (اَلْمَاءُ)۔ (د اوبو په شان) لکه (وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً)۔ (ليکن دا قول ډير بعيد دے)

۸۱- (اَلْمَتْلُوُّ). (لوستلے شوے کتاب) لکه (يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ).

۸۲- (اَلْعَدْلُ). (انصاف والا)
لکه (وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ صِدْقاً وَعَدْلاً).

۸۳- (اَلْبُشْرٰى). (زیرے) لکه (وَهُدًى وَبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ).

۸٤- (اَلْمَسْطُوْرُ). (لیکلے شوے) لکه (وَكِتَابٍ مَسْطُوْرٍ).

۸۵- (الثَّقِيْلُ). (درنه وینا) (قَوْلاً ثَقِيْلاً).

۸٦- (اَلْمُرَتَّلُ). (په ترتیب او آرام سره لوستلے شوے کتاب)
لکه (وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيْلاً).

۸۷- (التَّفْسِيْرُ). (وضاحت والا) لکه (وَاَحْسَنَ تَفْسِيْراً).

۸۸- (الْمُثَبِّتُ). (مضبوطونکے) لکه (مَا نُثَبِّتُ بِهٖ فُؤَادَكَ).

۸۹- (الصُّحُف). (لیکلے شوے پانړے)

۹۰- (اَلْمَرْفُوْعُ). (پورته کړے شوے)

۹۱- (مُكَرَّمٌ). (عزتمند)

۹۲- (اَلْمُطَهَّرُ). (پاك کړے شوے) لکه (فِيْ صُحُفٍ مُكَرَّمَةٍ مَرْفُوْعَةٍ مُطَهَّرَةٍ). [بصائر ذوی التمییز ۱/٦۳] للفیروز آبادی.

پدے کښې بعض نومونه ډیر واضح دی او بعض بالواسطه نومونه دی. علامه زرکشیؒ په کښې داسے زیادت کړیدے:

۹۳- (اَلْاَمْرُ). (حکم او فیصله) لکه (ذٰلِكَ اَمْرُ اللّٰهِ اَنْزَلَهٗ اِلَيْكُمْ).

۹٤- (اَلْاِيْمَانُ). (ایمان جوړونکے) لکه (اِنَّا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِيْ لِلْاِيْمَانِ).

۹۵- (الزَّبُوْرُ). (لیکلے شوے قرآن) لکه (وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُوْرِ).

OOOOOOOO

## ۲٤- الامر الرابع والعشرون :

## معرفة المكي والمدني

[ څليريشتم بحث : د مکی او مدنی سورتونو معلومات ]

د قرآن د فهم دپاره دا خبره پيژندل هم ضروری دی چه مکی او مدنی سورتونه اُوپيژندلے شی۔

وحی په دوه ځايونو کښ نازله شويده يو په مکه معظمه کښ او بل په مدينه منوره کښ۔ د مکی او مدنی سورتونو جدا جدا پيژندلو فائده دا ده چه د مکی سورة يو قسم مضمون وی او د مدنی بيل قسم۔ په مکه کښ جهاد نهٔ وو، هلته صرف دعوت کيدو او تکليف او پريشانی وه، په مسلمانانو باندے د کفارو د طرف نه عذابونه وو نو د هغے مطابق آيتونه به نازليدل، د صبر خبرے به کيدے او د جنت او آخرت خبرے به کيدے۔

د آخرت استحضار او د دنيا فناء او ے محبتی به بيانيدله۔ او مدينه کښ خو بادشاهی او خلافت وو۔نو احکام به بيانيدل د خلافت مسئلے، د مسلمانانو د اجتماع او د هغوی جماعت جوړول او د مسلمانانو اتفاق او اتحاد او جهاد او انفاق او حج وغيره به بيانيدل۔

نو څوك چه مکی او مدنی جدا جدا اُوپيژنی نو د سورة په مضمون او مقصد به ښه او زر پوهيږی چه دا مکی سورة دے، مکی موضوعات پکښ دی او دا مدنی سورة دے، مدنی موضوعات پکښ دی، ناسخ او منسوخ هم ددے سره معلوميږی چه ناسخ مؤخر (روستو) وی او منسوخ مقدم (مخکښ) وی او مکی مقدم وی په مدنی۔ نو که څوك وائی چه دا آيت منسوخ دے او دا ئے ناسخ دے نو تقديم تاخير ته به کتلے شی۔

دارنگه يو لفظ چه مکی سورة کښ استعمال شو او هغه عمل په مکه کښ نهٔ وی لکه د جهاد، يا د زکوٰة لفظ شو نو پدے مقام کښ به معنیٰ د آيت ته گورے چه ددے نه څه مراد دے؟ ۔

تفسير فتح البيان کښ علامه نواب صديق حسن خانؒ ليکی :

[مَعْرِفَةُ الْمَكِّيِّ وَالْمَدَنِيِّ لَازِمٌ فِيْ فَهْمِ الْقُرْآنِ]۔

(د قرآن د فهم او پوهے دپاره د مکی او مدنی سورتونو پيژندل لازم دی)۔

او دا احسان مفسرينو کړيدے چه هغوی دا معلوم کړيدی او هر آيت ئے جدا کړيدے چه

دا مکی دے او دا مدنی۔ او چه کوم کښ اختلاف دے هغه ئے هم معلوم کړیدی او غالباً د قرآن کریم د هر سورة په اول کښ ئے لیکلی هم دی چه دا سورة مکی دے او دا مدنی دے۔ بیا د مکی او مدنی دپاره د هر یو خصائص او تعریف پیژندل ضروری دی۔ نو اول تعریفات واوره: علماء کرامو مشهور ددے درے قسمه تعریفات کړیدی۔

**تعریف المکی**:

۱- [اَلْمَکِّیُّ مَا نَزَلَ بِمَکَّةَ وَلَوْ بَعْدَ الْهِجْرَةِ وَالْمَدَنِیُّ مَا نَزَلَ بِالْمَدِیْنَةِ]۔

(مکی هغه سورتونه دی چه په مکه او د هغے په ماحول (لکه عرفات، منی، مزدلفه، حدیبیه) کښ نازل شوی وی اګرکه د هجرت نه روستو وی او مدنی هغه دی چه په مدینه کښ نازل وی یا ددے په ماحول کښ لکه په بدر، احد، وغیره کښ)۔

**۲- تعریف**:

[اَلْمَکِّیُّ مَا وَقَعَ خِطَابًا لِاَهْلِ مَکَّةَ وَالْمَدَنِیُّ مَا وَقَعَ خِطَابًا لِاَهْلِ الْمَدِیْنَةِ]۔

(مکی هغه سورتونه دی چه په هغے کښ خطاب وی مکے والو ته او مدنی هغه دی چه په هغے کښ خطاب وی مدینے والو ته لکه دا مطلب د قول د ابن عباسؓ هم دے چه هغه فرمائی: چه په قرآن کښ (یا ایها الناس) خطاب مکے والو ته وی او (یا ایها الذین آمنوا) خطاب مدینے والو ته وی ځکه په مکے والو کښ کفر غالب وو نو ځکه ورته عام خطاب اُوکړے شو او د دوی نه علاوه خلق به په دے خطاب کښ ورداخل وی او په مدینے والو کښ ایمان غالب وو نو ځکه ورته په (یا ایها الذین آمنوا) سره خطاب اُوشو، اګرکه غیر د دوی به پدے کښ داخل وی) پدے تقسیم کښ صرف د مخاطبینو لحاظ شویدے۔

لیکن پدے باندے دوه اعتراضه وارد دی:

۱- یو دا چه دا تعریف نهٔ شاملیږی هغه سورتونو ته چه (یا ایها النبی) سره خطاب شوے وی یا په (اذا جاء ك المنافقون) سره خطاب شوے وی۔ نو آیا دا به مکی وی او که مدنی؟ دا نهٔ معلو میږی۔

۲- دویم دا چه سورة النساء مدنی ده او اول سر کښ ئے خطاب په (یا ایها الناس اتقوا ربکم) راغلے دے او دغه شان سورة البقره مدنی ده او په هغے کښ (یا ایها الناس) سره خطاب شویدے۔ بلکه د المعجم المفهرس د فؤاد عبد الباقیؒ نه معلومیږی چه دا خطاب په قرآن کښ (۲۰) کرت راغلے دے او لس کرته په مکی سورتونو او لس کرته په مدنی

سورتونو کښې دي۔ لکه د مکي سورتونو نه په الاعراف کښې يو کرت (۱) او په يونس کښې (٤) کرته او په النمل کښې (۱) کرت او په لقمان کښې يو کرت (۱) او په فاطر کښې (۳) کرت۔ ټول آيتونه لس دي۔

دارنګه دديے برعکس سورة الحج مکي ديے او په آخر کښې ئے خطاب په (يا ايها الذين آمنوا ارکعوا واسجدوا) (۷۷آيت) سره راغلے ديے۔ دديے نه که دا جواب ورکړيے شي چه غالب له اعتبار ديے، په مکي سورتونو کښې غالباً (يا ايها الناس) خطاب وي او په مدني سورتونو کښې (يا ايها الذين آمنوا) خطاب وي۔

ليکن پديے باندے علامه ډاکټر زرقانيؒ دا رد کړيدے چه دا خبره تقسيم نشي صحيح کولے ځکه چه شان د صحيح تقسيم دا ديے چه دا به ضابط او حاصر (راګيرونکے) وي او مطرد (عام او شامل) به وي او که د غالب قيد واخلو نو بيا هم حصر او ضبط نهٔ ثابتيږي، لهذا تقسيم معيب (عيبجن) ديے۔

نو دديے وجه نه غوره تعريف هغه ديے چه هغه جمهورو اهل علمو کړيدے او مشهور ديے او هغه دا ديے :

۳ - **دريم تعريف** : [اَلْمَكِّيُّ مَا نَزَلَ قَبْلَ الْهِجْرَةِ اِلَى الْمَدِيْنَةِ وَاِنْ كَانَ نُزُوْلُهٗ بِغَيْرِ مَكَّةَ وَالْمَدَنِيُّ مَا نَزَلَ بَعْدَ الْهِجْرَةِ وَاِنْ كَانَ نُزُوْلُهٗ بِمَكَّةَ]۔

(مکي هغے ته وئيلے شي چه د نبي ﷺ د هجرت نه مخکښې نازل وي که په هر ځائے کښې نازل وي، طائف کښې نازل وي او که په مکه کښې، يا په بل ځائے کښې۔ او مدني : چه د هجرت نه روستو نازل وي که په تبوك کښې نازل وي چه د مدينے نه ډير لرے ځائے ديے۔ يا په عرفات کښې نازل شوي وي چه دا په مکه کښې ديے)

نو ديے ټولو ته مدني وائي لکه (اليوم اکملت لکم دينکم) آيت په مکه کښې په عرفات کښې نازل ديے او علماء ورته مدني وائي، نبي ﷺ په اُوښه باندے سور وو، الله پاك دا آيت نازل کړو چه دين پوره شو۔ نو آيت مکه کښې نازل ديے او مدني ورته وئيل کيږي ځکه چه د هجرت نه روستو نازل ديے۔

دغه شان ﴿ إِنَّ اللّٰهَ يَـأْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمَانَاتِ اِلٰى اَهْلِهَا﴾ [النساء ۵۸] ۔ دا مدني آيت ديے او حال دا چه په فتح د مکے مکرمے کښې د کعبے په مينځ کښې نازل ديے۔

[مناهل العرفان ۱۴۲/۱] الاتقان في علوم القرآن [۲۷/۱] البرهان للزرکشي [۱۹۲/۱] وعلوم

القرآن للشيخ گوهر [۱/۱٦٥]۔

نو ددې دپاره د نبی ﷺ سيرت زده کولو ته هم ضرورت دے۔ علامه زرقانیؒ فرمائی : دا تقسيم د مقام نزول او د مخاطبينو په اعتبار سره نۀ دے بلکه د نزول د زمانے په اعتبار سره دے ددے وجه نه دا صحيح سالم تقسيم دے۔

۱ **فائده** : کله نا کله د سورتونو په مکی او مدنی کيدو کښې د آيتونو کثرت او قلت له هم اعتبار وی يعنی د کوم سورت چه اکثر آيتونه د هجرت نه مخکښې نازل شوی وی نو هغے ته مکے وئيلے کيږی اګرکه د هغے بعض آيتونه د هجرت نه روستو نازل شوی وی او د کوم سورت اکثر آيتونه چه د هجرت نه بعد نازل شوی وی نو هغے ته مدنی وئيلے کيږی اګرکه په هغے کښې بعض آيتونه د هجرت نه وړاندے نازل شوی وی۔

## ۲ - فائده - بم يعرف المکی والمدنی :

[مکی او مدنی سورتونه په کومه ذريعه معلوميدے شی؟ ]

نو علامه زرکشیؒ، او علامه سيوطیؒ او زرقانیؒ د قاضی ابوبکرؒ د کتاب (الانتصار) په حواله سره ليکلی دی چه هغه فرمائی :

[ اِنَّمَا يَرْجِعُ فِیْ مَعْرِفَةِ الْمَكِّيِّ وَالْمَدَنِيِّ اِلٰى حِفْظِ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ وَلَمْ يَرِدْ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ فِیْ ذٰلِكَ قَوْلٌ، لِاَنَّهٗ لَمْ يُؤْمَرْ بِهٖ، وَلَمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ عِلْمَ ذٰلِكَ مِنْ فَرَائِضِ الْاُمَّةِ، وَاِنْ وَجَبَ فِیْ بَعْضِهٖ عَلٰى اَهْلِ الْعِلْمِ مَعْرِفَةُ تَارِيْخِ النَّاسِخِ وَالْمَنْسُوْخِ، فَقَدْ يُعْرَفُ ذٰلِكَ بِغَيْرِ نَصِّ الرَّسُوْلِ]

[الاتقان، و البرهان، و المناهل]۔

(يعنی د مکی او مدنی په پيژندلو کښې به د صحابه کرام او تابعينو ياداشت طرف ته رجوع کيږی، پدے باره کښې د نبی کريم ﷺ نه هيڅ صريح قول نۀ دے نقل شوے، ځکه چه هغه ته ددے علم نۀ وو ورکړے شوے، او ددے علم الله تعالیٰ په اُمت باندے فرض کړے هم نۀ دے، اګرکه په بعض آيتونو کښې د ناسخ او منسوخ معلومولو دپاره په اهلِ علمو باندے د نزول تاريخ معلومول واجب دی ليکن دا د رسول الله ﷺ د نص (تصريح) نه بغيرْ په بله ذريعه سره هم معلوميدے شی)۔

چونکه د رسول الله ﷺ صحابه کرام د قرآن کريم د نزول په وخت عينی شاهدين وو۔ او بل ئے د رسول الله ﷺ او د الله تعالیٰ د کتاب سره انتهائی محبت وو، نو پدے وجه هغوی

بـه ددے متعلق د مکمل معلوماتو د محفوظ کولو کوشش کولو چه فلانئ خبره او آیت په کومه موقعه کښې او په کوم وخت کښې او د چا په باره کښې نازل شویدے؟۔
پدے وجـه صـحـابـه کـرامـو دا خدمت امت دپاره په مکمل طور سره سر ته رسولے دے او هغوی تابعینو ته بیان کړیدے۔
لکه د عبد الله بن مسعود ﷺ قول مونږ په ابتداء ددے کتاب کښې ذکر کړو هغه فرمائی :
[وَاللّٰهِ الَّـذِیْ لَااِلٰـهَ غَیْـرُهٗ، مَـا نَـزَلَـتْ سُـوْرَةٌ مِنْ کِتَابِ اللّٰهِ اِلَّا وَاَنَا اَعْلَمُ اَیْنَ نَزَلَتْ؟ وَلَانَزَلَتْ آیَةٌ مِنْ کِتَـابِ اللّٰهِ اِلَّا وَاَنَا اَعْلَمُ فِیْمَا نَزَلَتْ ؟ وَلَوْ اَعْلَمُ اَنَّ اَحَدًا اَعْلَمَ مِنِّیْ بِکِتَابِ اللّٰهِ تَبْلُغُهُ الْاِبِلُ لَرَکِبْتُ اِلَیْهِ ]
[بخاری]۔
(قسـم پـه هـغـه الله چه د هغه نه سوئ حقدار د بندګئ نشته، د الله تعالیٰ د کتاب نه هیڅ سورت او هیـڅ آیت نـهٔ دے نازل شوے مګر ما ته معلومه ده چه دا کوم ځائے نازل دے او د څـه بـاره کـښې نازل دے ؟ او که ما ته زما نه د الله تعالیٰ په کتاب زیات پوهه معلوم شی چه هغه ته اُوښان رسیدلے شی نو زه به ورته ضرورت ورځم) او د هغه نه به د الله تعالیٰ د کتاب علم زده کوم۔ دا خبره ئے په طریقه د تحدیث بالنعمة بیان کړیده۔
دارنګه ایوب سختیانیؒ فرمائی :
[سَـأَلَ رَجُـلٌ عِـکْـرِمَةَ عَـنْ آیَةٍ مِـنَ الْـقُـرْآنِ فَـقَالَ: نَزَلَتْ فِیْ سَفْحِ ذٰلِكَ الْجَبَلِ، وَاَشَارَ اِلٰی سَلْعٍ آه]
[ابونعیم فی الحلیة] [الاتقان] [ومناهل]۔
(یـو سړی د عکرمهؒ نه د قرآن کریم د یو آیت په باره کښې تپوس اُوکړو نو هغه اُووئیل: دا آیـت د دغـه غر په ناؤ کښې نازل شویدے او اشاره ئے سلع غر ته اُوکړه۔ (چه دا په مدینه کښې غټ غر دے)۔
علی رضی الله عنه به فرمایل :
[وَاللّٰهِ مَـا نَـزَلَـتْ آیَةٌ اِلَّاوَقَـدْ عَـلِـمْـتُ فِیْـمَ اُنْزِلَتْ وَاَیْنَ اُنْزِلَتْ، اِنَّ رَبِّیْ وَهَـبَ لِیْ قَلْبًا عَقُوْلًا وَلِسَانًا سَؤُوْلًا] (الاتقان)۔
(قسـم پـه الله هیـڅ آیت نـهٔ دے نـازل شوے مـګـر مـا تـه معلومه ده چه په څه کښې نازل شـویـدے او کـوم ځـائے نـازل شویدے، یقیناً ما ته زما رب سوچ کونکے پوهه زړه او تپوس کونکے ژبه راکړے ده)۔
عـلامـه سیـوطیؒ په ((الاتقان)) کښې د مدنی او مکی نه علاوه نور اقسام هم ذکر کړیدی

چه هغه لس اقسامو ته رسیږي لکه :

۱- بعض حضري دي : هغه آیتونه دي چه په رسول الله ﷺ باندې په خپل وطن اصلي کښ نازل شوي وو او د قرآن اکثره حصه په حضر کښ نازل شوې وه۔

۲- سفري : دا هغه آیتونه دي چه د سفر په حالت کښ نازل شوي وو۔

۳- نهاري : دا هغه آیتونه دي چه د ورځې په وخت کښ نازل شوي وو، اکثر آیتونه د ورځې نازل شوي وو۔

٤- لیلي: دا هغه آیتونه دي چه د شپې په وخت نازل شوي وو۔

٥- صیفي : دا هغه آیتونه دي چه د ګرمۍ په موسم کښ نازل شوي وو۔

٦- شتائي : دا هغه آیتونه دي چه د یخنۍ په موسم کښ نازل شوي وو۔

۷- فراشي : دا هغه آیتونه دي چه په داسې وخت کښ نازل شوي وو چه نبي ﷺ په خپله بستره باندې وو۔

۸- نومي : دا هغه آیتونه دي چه په نبي ﷺ باندې د خوب په حالت کښ نازل شوي وو۔ لکه ددې مثال سورة الکوثر ذکر شویدې، لکه په صحیح مسلم کښ د انس بن مالكؓ په روایت کښ راغلي دي چه دا په خوب حالت کښ نازل شوې وو۔

لیکن د جمهورو علماؤ رایه دا ده چه د خوب په حالت کښ قرآن نۀ دې نازل شوې بلکه صرف وحي خفي (یعني احادیث) به نازلیدل، ددې وجه نه امام رافعيؒ وئیلي دي چه په دغه حدیث کښ د (اغفاءةً) لفظ راغلي دې او ددې نه خوب نۀ دې مراد بلکه هغه مخصوص حالت دې چه د وحي د نازلیدو په وخت به په رسول الله ﷺ باندې عارض کیدو۔

## د مکي سورتونو امتیازي خصوصیات

## او هغه ضوابط او علامات چه هغې سره مکي او مدني معلومیدې شي

مخکښ بیان شو چه د مکي او مدني سورتونو د پیژندلو دپاره قابل اعتماد ذریعه خو د صحابه کرام او تابعینو آثار او اقوال دي لیکن علماء کرامو ددې د معلومات دپاره څه خصوصیات او علامې بیان کړیدي چه په هغې سره هم مکي او مدني سورتونه په ښه انداز کښ پیژندلې شي۔

د مضامینو په لحاظ سره خصوصیات دا دي :

۱- په مکي سورتونو کښ غالباً اصولي او اعتقادي احکام وي مثلًا توحید، رسالت، آخرت او نور اعتقادي مسائل زیات ذکر کیږي اود ترغیب او ترهیب آیتونه (یعنی د دنیا ے رغبتي او د آخرت سره محبت پیدا کیدلو) آیتونه پکښ زیات بیانیږي۔

۲- دارنګه په مکي سورتونو کښ اکثر بنیادي اسلامي اخلاق او د اسلامي معاشرے بنیادي اصول لکه صبر، استقامت، عفو او طاعت، علم، محبت، رحمة، اخلاص، احترام د غیر، د مور او پلار سره نیکي، د ګاونډي اکرام، د زړونو او ژبے صفائي بنه ښکاره کول ذکر کیږي۔

۳- په مکي سورتونو کښ اکثر د توحید، رسالت او د آخرت د اثبات دپاره او د شرك د رد دپاره عقلي او نقلي دلائل او مثالونه ذکر کیږي، دے دپاره چه فکر صحیح شي او عقیده مضبوطه شي۔

٤- په مکي سورتونو کښ تذکیر بایام الله یعني د انبیاء او د رسولانو او د هغوی د قومونو ترمینځ جګړے او کشمکش تذکره زیاته کیږي۔ او پدے کښ لوئي عبرت او نصیحت پروت وي چه اُوګوره د الله تعالیٰ طریقه دا ده چه کافران او طغیان او سرکشۍ والا ئے هلاك کړیدي او د ایمان والو دپاره ئے بدله اخستے ده او هغوی ته ئے نجات ورکړیدے او همیشه به الله تعالیٰ همداسے کوي۔

٥- په مکي سورتونو کښ تذکیر بالآخرة یعني د جنت نعمتونه او د جهنم پریشانیانے نسبتاً تفصیلي بیان شوي وي دے دپاره چه د آخرت فکر په زړه او دماغو کښ کیني او د آخرت د برابرولو فکر او شوق پیدا شي۔

٦- په مکي سورتونو کښ په دلائلو بیانولو کښ تنویع (قسماقسم) ترتیب اختیار شویدے او مختلف طریقے استعمال شویدي، اولیات او مشاهدات اول بیان کړي بیا د هغے نه خبره د الله توحید اُلوهیت او ربوبیت او ایمان بالآخرة والبعث ته بوځي۔ بیا د هغے نه نقل شي د وحي منلو او د الله تعالیٰ هدایت او عقائد خپلولو ته۔

۷- په مکي سورتونو کښ د مکے والو سره په خطاب کښ ایجاز او اختصار کیږي، ددے وجه نه د مکي سورتونو آیتونه لنډ لنډ وي او سورتونه ئے هم واړه وي ځکه چه مکے والا ډ فصاحت او بلاغت والا وو، هغوی د کلام او د بیان ماهرین وو نو د هغوی سره ایجاز او کموالے مناسب دے۔

**د مدني سورتونو خصوصيات** دا دي :

۱- مدني سورتونو کښې معاشرتي، معاشي، عائلي او اجتماعي او سياسو شعبو په باره کښې د احکام او قوانينو تفصيلات بيان شويدي. لکه ددې په باره کښې سورة البقره او آل عمران او مائده او فتح اُوګوره.

۲- په مدني سورتونو کښې د جهاد او قتال في سبيل الله احکام او هغې ته د ترغيب متعلق آيتونه نازل شويدي.

۳- په مدني سورتونو کښې د بين الاقوامي امورو په باره کښې اصول او احکام بيان شويدي.

٤- په مدني سورتونو کښې اهل کتابو يعني يهود او نصاراؤ ته خصوصي دعوت ورکړې شويدې او د هغوي د اعتراضاتو جوابات ورکړې شويدي او د هغوي بد صفات او تحريفات ئې بيان کړيدي.

٥- په مدني سورتونو کښې د منافقانو صفات او د هغوي عادات او علامات ذکر شويدي. سوئ د سورة العنکبوت نه چه په هغې کښې اولنی (۱۱) آيتونه مکي دي او په هغې کښې صفات المنافقين ذکر شويدي. (زرقانیؒ)

٦- په مدني سورتونو کښې ترغيب وي د مسلمانانو اتفاق ته، د خلافت مسئلے وي لکه سورة البقرة اوآل عمران کښې به دا مسئلے راځي. د جماعت او خلافت جوړولو او د هغه متعلقات لکه احکام د تدبير المنزل، د طلاقو او نکاحونو، رضاعت، جهاد او قتال وغيره هغه ټول مسائل چه د تدبير المنزل يا سياست مدنيه سره تعلق لري دا په مدني سورتونو کښې بيانيږي. او دا دعوت ورکوي چه اے خلقو ! نفس پاك کړئ او اخلاق برابر کړئ.

۷- په مدني سورتونو کښې په سورتونو او آيتونو کښې تطويل او اطناب کړے شوے وي ځکه چه په مدينے والو کښې د مکے والو په نسبت د فصاحت او بيان دومره چرچه نۀ وه نو د هغوي سره تشريح او توضيح مناسبه ده.

**فروق اخرئ** : [ نور فرقونه ]

علامه زرکشیؒ، علامه سيوطیؒ، او علامه زرقانیؒ د مکي او سورتونو نور خصوصيات او ضوابط هم ذکر کړيدي چه د هغې په ذکر کولو کښې هم فائده شته هغه دا دي :

۱- هغه سورت چه په هغې کښې [ کَلَّا ] لفظ راغلے وي هغه به مکي سورت وي او دا لفظ په (۱۵) سورتونو کښې (۳۳) کرته راغلے دے او د قرآن د نصف اخير نه شروع شويدے. او

ټول مکی سورتونه دی. ددے حکمة دا بیان شویدے چه د مکے د قریشو په سردارانو کښې تکبر او جبر او ظلم د نورو نه زیات وو نو د هغوی د رټلو او زجر او توبیخ دپاره مکی سورتونو کښې د (کلا) لفظ راغلے دے چه دا د زجر دپاره راځی.

یو شاعر (درینیّ) وائی:

وَمَا نَزَلَتْ كَلَّا بِيَثْرِبَ فَاعْلَمَنْ      وَلَمْ تَأْتِ فِي الْقُرْآنِ فِيْ نِصْفِهِ الْاَعْلٰى

(او نۀ دے نازل شوے کلا لفظ په مدینه کښې، دا کلمه په قرآن کښې نۀ ده راغلے مگر په روستنۍ نیمائی حصه د قرآن کښې).

۲- هغه سورت چه په هغے کښې سجده د تلاوت راغلے وی هغه به مکی وی. لیکن دا ضابطه اکثریه ده، کلیه نۀ ده، ځکه چه په سورة الحج او الرعد کښې سجده د تلاوت راغلے ده لیکن دواړه مدنی سورتونه دی. رعد ته اگرکه بعضو علماؤ مکی وئیلے دے لیکن د جمهورو په نیز مدنی سورت دے.

۳- د کوم سورت په ابتداء کښې چه حروف مقطعات (حروف تهجی) راغلی وی هغه به مکی وی سوئ د بقره او آل عمران نه چه دا مدنی دی بالاجماع او په رعد کښې اختلاف دے.

٤- هر هغه سورت چه په مفصلاتو کښې شامل وی هغه به مکی وی لیکن دا هم قاعده کلیه نۀ ده، ځکه چه د راجح قول مطابق د مفصلاتو ابتداء د سورة ق نه کیږی او (ق) نه تر الناس پورے ټول (٦٥) سورتونه مفصلات دی چه پدے کښې (۵۰) مکی دی او (۱۵) مدنی دی.

۵- کوم سورت کښې چه (یا ایها الناس) سره خطاب شوے وی دا به مکی وی او که په یا ایها الذین آمنوا سره خطاب شوے وی نو دا به مدنی وی. لکه دا خبره سره د مالها او ما علیها نه مخکښې ذکر شوه. [مناهل العرفان، الاتقان، البرهان، علوم القرآن، الامام البقاعی ومنهاجه ص۷۹) لمحمود توفیق].

OOOOOOOOOOO

## انواع السور المکیة والمدنیة :

[ د مکی او مدنی سورتونو اقسام ]

۱- کله یو سورت ټول مکی وی لکه سورة المدثر وغیره.

۲- او کله ټول سورت مدنی وی لکه سورة آلعمران ټول مدنی دے.

۳- او کله سورة مکی وی سوئ د څه آیتونو نه چه هغه مدنی وی لکه سورة الاعراف مکی دے سوئ د آیت ﴿ وَاسْأَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ﴾ [الاعراف:۱٦۳].
دا قتادةؒ وئیلی دی او نورو علماؤ پکښې ددے آیت سره روستو نور آیتونه تر دے قول پورے﴿ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ﴾ [اعراف :۱۷۲] هم مدنی ګنړلی دی.

٤- څلورم قسم دا چه کله ټول سورت مدنی وی سوئ د څو آیتونو نه لکه سورة الحج مدنی دے سوئ د څلورو آیتونو نه چه هغه شروع کیږی ددے آیت نه
﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُولٍ وَلَا نَبِيٍّ إِلَّا إِذَا تَمَنَّى﴾ [الحج ۲] - تر (عَذَابَ يَوْمٍ عَقِيمٍ) [الحج ٥٥]- پورے.

**قاعده :** ورسره دا خبره هم یاده کړه چه سورت ته مکی یا مدنی وئیل په اعتبار د غالب سره دی یا په اعتبار د ابتداء سره دی څکه چه کله به د یو سورت ابتدائی آیتونه په مکه کښې نازل شو نو هغه به مکی لیکلے شو بیا به الله تعالیٰ په هغے کښې وخت په وخت زیادت کولو. نو ددے وجه نه د مکی او مدنی سورتونو په باره کښې ډیره مناسبه اصطلاح دا ده چه داسے اُووئیلے شی چه کله ابتدائی آیتونه د یو سورت د هجرت نه مخکښې نازل شی نو دا به مکی لیکلے شی او کله چه د یو سورت ابتداء د هجرت نه روستو وی نو هغه به مدنی لیکلے شی، بیا به ددے سورت نه استثناء ذکر کولے شی مثلاً داسے به وئیلے شی :

[سُورَةُ كَذَا مَكِّيَّةٌ إِلَّا آيَةَ كَذَا فَإِنَّهَا مَدَنِيَّةٌ].

(فلانے سورت مکے دے مګر فلانے آیت پکښې مدنی دے) یا داسے چه فلانے سورت مدنی دے مګر فلانے آیت یا آیتونه پکښې مکی دی. [راجع مناهل العرفان ۱/۱٤٦].

## ۲۵- الامر :

# معنی السورة لغةً واصطلاحا

## [ د سورة لغوی او اصطلاحی معنیٰ ]۔

د سورة په لغوي معنیٰ کښې دوه قوله دي :

۱- صاحب د تهذیب اللغة (ازهريّ) لیکي :

[اَلسُّوْرَةُ : اَلْمَنْزِلَةُ الرَّفِيْعَةُ] ۔

(یعنی سورة یو ے اُوچتے مرتبے او رفعت او فوقیت ته وئیلے شي) لکه نابغه ذبیاني متوفی (۱۸) قبل الهجرة وئیلي دي :

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَعْطَاكَ سُوْرَةً تَرٰی كَلَّ مَلْكٍ دُوْنَهَا يَتَذَبْذَبُ

(آیا ته نهٔ گورے چه الله تا ته داسے مرتبه درکړیده چه ته هر بادشاه د هغے نه لاندے سرگردان او پریشانه وینے)۔

او د قرآن سورة ته هم ځکه سورة وئیلے شي چه دا رفیع الشان او خیر والا وي۔

۲- دویم قول : د سورة ماده (س، ء، ر) ده او ددے معنیٰ ده : [اَلْقِطْعَةُ وَالْبَقِيَّةُ مِنَ الشَّيْءِ]۔

(یعنی ټکړه او پاتے شوے حصه)

ددے مادے په اعتبار سره په اصل کښې دا لفظ سُؤْرَةٌ وو۔ نو د همزے نه مخکښې ضمه ثقیله وه پدے وجه همزه په واو سره بدل شوه دے دپاره چه آسانی پیدا شي۔ نو سورة ترے جوړ شو۔ او عرب په کثرت استعمال کښې همزه حذف کوي۔ او سورة هم د قرآن کریم یوه حصه وي پدے وجه ورته سورة وئیلے شي۔

[تفسیر ابن جریر ۱/۴۷] الصحاح للجوهری ولسان العرب]۔

علامه ازهريّ په ابوعبیدةؒ باندے سخت رد نقل کړیدے چه هغه وئیلي دي چه سورة د سورة البناء نه اخستے شویدے یعنی هغه دیوال چه د آبادیٔ نه چاپیر وي نو دغه شان سورة هم د آیتونو نه تاؤ وي۔ وئیلے ئے دي چه دا خبره صحیح نهٔ ده ځکه که سورة د سورة البناء نه شي نو بیا به ددے جمع سُوَرٌ راتلے لکه ﴿فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ﴾ او حال دا چه د ټولو علماؤ په نیز ددے جمع سُوَر راغلے ده۔ معلومیږي چه دا د سورة البناء نه نهٔ دے اخستے

شوے۔[تهذيب اللغة ماده سار]۔

## د سورة اصطلاحی تعریف :

علامه سیوطیؒ د ابواسحاق جعبریؒ متوفی (۷۳۲ھ) نه داسے تعریف نقل کړیدے :
[حَدُّ السُّوْرَةِ : قُرْآنٌ يَشْتَمِلُ عَلى آيٍ ذِىْ فَاتِحَةٍ وَخَاتِمَةٍ وَاَقَلُّهَا ثَلاَثُ آيَاتٍ] [الاتقان] [البرهان]۔
(تعریف د سورة دا دے : د قرآن په آیتونو باندے مشتمل هغه حصه ده چه د هغے ابتداء او انتهاء معین وی او د هغے کم از کم درے آیتونه وی)۔
۲- [عِبَارَةٌ عَنْ آيَاتٍ مَسْرُوْدَةٍ لَهَا بَدْءٌ وَخَتْمٌ]
[الدر المصون، سورة النور]۔
(دا عبارت دے د هغه آیتونو نه چه چلولے شوی وی او د هغے ابتداء او انتهاء معلومه وی)۔
دا خبره چه درے آیتونه به وی د حدیث د عمر فاروقؓ نه معلومیږی چه ابوداؤد وغیره کښې راغلے دے۔ د زبیرؓ نه نقل دی : ((حارث بن خزیمه (چه په بعض روایتونو کښې ورته خزیمه یا ابوخزیمه) وئیلے شویدے) دوه آیتونه د آخر د سورة البرائة راوړل او دا ئے اُووئیل :
[اَشْهَدُ اَنِّىْ سَمِعْتُهُمَا مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ]۔
(زه گواهی کوم چه دا ما د رسول الله ﷺ نه اَوریدلی دی)۔
عمر فاروق اُوفرمایل : او زه هم گواهی کوم چه یقینا ما هم دا دواړه سورتونه د رسول الله ﷺ نه اَوریدلی دی، بیا ئے اُوفرمایل :
[لَوْكَانَتْ ثَلاَثَ آيَاتٍ لَجَعَلْتُهَا سُوْرَةً عَلى حِدَةٍ]
[طبری، ابن کثیر، التنویر واسناده مرسل]۔
(که دا درے آیتونه وے نو ما به یو سورت جوړ کړے وے)
دا حدیث پدے باندے دلالت کوی چه عمرؓ ته دا خبره معلومه ده چه د سورة کم مقدار درے آیتونه دی۔
**عدد السور :** علامه زرکشیؒ په البرهان (۱/ ۲۵۱) کښې لیکی:
[وَاعْلَمْ ! اَنَّ عَدَدَ سُوَرِ الْقُرْآنِ الْعَظِيْمِ بِاتِّفَاقِ اَهْلِ الْحَلِّ وَالْعَقْدِ مِائَةٌ وَاَرْبَعَ عَشْرَةَ سُوْرَةً كَمَا هِيَ فِي الْمُصْحَفِ الْعُثْمَانِيِّ اَوَّلُهَا الْفَاتِحَةُ وَآخِرُهَا النَّاسُ] [تاريخ القرآن ص۱۹۳]

(پوهه شه چه د امت مسلمه اهل حل وعقد پدے باندے اتفاق دے چه د قرآن عظیم د سورتونو تعداد (۱۱٤) دے لکه څنګه چه په مصحف عثماني کښ همدا تعداد محفوظ دے، چه پدے کښ اولنے سورة فاتحه ده او آخري سورة الناس دے) او چا چه (۱۱۳) شمارلی دی نو هغوی سورة الانفال او توبه دواړه یو سورت شمارلی دی لیکن صحیح دا ده چه دواړه بیل بیل سورتونه دی۔

پدے (۱۱٤) سورتونو کښ د ټولونه لوئی سورة البقره ده چه ددے آیتونه (۲۸٦) دی او د ټولو نه د حروف او کلماتو په لحاظ وړوکے سورة ((الکوثر)) دے چه درے آیتونه دی۔ او دا دلیل دے چه ترتیب د ټولو سورتونو توقیفی نهٔ دے۔ بلکه د بعضو توقیفی دے۔ لکه دا خبره په بل بحث کښ مخکښ بیان شویده۔

## اسماء السور:

### [د سورتونو نومونه]

هر سورت له چه کوم نوم ورکړے شویدے نو ددے یو تعلق او علاقه وی د مقصود د سورت سره او ددے نه موضوع د سورت معلومیږی پدے وجه بعض سورتونو کښ یوه جزئی واقعه راغلی وی د هغے په وجه ټول سورت مُسَمّی شوے وی حال دا چه د هغے نه علاوه ډیر واقعات پکښ راغلی وی او د هغے نوم نهٔ وی ورکړے شوے۔ لکه سورة یونس کښ د نوح، موسی علیهما السلام واقعات موجود دی لیکن دے ته صرف د یو آیت د وجه نه د سورة یونس نوم ورکړے شو۔ دغه شان سورة البقره وغیره واخله۔ دا دلیل دے چه دا نومونه توقیفی دی د نبی ﷺ د طرف نه یا د صحابه کرامو د طرف نه۔

لیکن راجح دا ده چه قرآن کریم چه سورتونو ته تقسیم شویدے نو دا توقیفی دے، دلیل پدے باندے ډیر احادیث دی چه په هغے کښ د سورتونو نومونه ذکر شویدی لکه صحیح مسلم کښ دی،

حذیفه ﷺ فرمائی :

[اِنَّ النَّبِیَّ ﷺ صَلّٰی بِالْبَقَرَةِ ثُمَّ بِالنِّسَاءِ ثُمَّ بِآلِ عِمْرَانَ فِیْ رَکْعَةٍ]۔

(نبی ﷺ په یو رکعت کښ سورة البقره بیا نساء بیا آل عمران اُولوستلو)۔

دغه شان نور نومونه هم راغلی دی۔ او ظاهر دا ده چه دا نومونه به ئے د رسول الله ﷺ

نـه اَوريدلي وى، يا دا چه صحابه کرامو به د سورتونو دپاره د هغې مناسب نومونه منتخب کړل او بيا به نبي کريم ﷺ هغه اَوريدل او په هغې به ئې رد نهٔ کولو نو دا دليل دے چه دے سورتونو ته دغه نومونه وئيل په سنت تقريري ثابت دی۔

دارنګـه د نبي ﷺ نه ددے په باره کښې څه منع نقل نهٔ وه بلکه غالباً د سورتونو نومونه په مرفوع رواياتو کښې ثابت دی۔

عـلامـه مـازريؒ پـه شرح د ((البرهان)) کښې د قاضي ابوبکر الباقلانيؒ نه نقل کړيدی چه هرکـله صحابه کرامو مصاحف اُوليکل نو د سورتونو نومونه ئې په جدا خط اُوليکل دے دپاره چـه د قـرآن کـريـم نه ئې جدا والے راشي او بسم الله ورسره په ابتداء د سورتونو کښې په هغه خط اُوليکله کوم باندے چه نور قرآن ليکلے شوے وو۔

او پـدے نـومونو مقررولو کښې فائده دا ده چه دے ته رجوع کول او ددے مذاکره کول آسان شي۔

۲- دارنګه يو سورت د بل نه جدا اُوپيژندلے شي۔

[التحرير والتنوير لابن عاشور [۸۹/۱]۔

## ۲۶- الامر : حکمة تسوير القرآن :

[ شپږويشتم بحث : د قرآن سورتونو ته تقسيمولو حکمت ]

قرآن کريم سورتونو ته ولے تقسيم شويدے ؟ ددے څه حکمت دے ؟۔

قـرآن کـريـم چه دے سورتونو ته تقسيم شويدے نو پدے کښې ډير فوائد او حکمتونه دی بعض دا دی :

۱- [اَلتَّيْسِيْرُ عَلَى النَّاسِ وَتَشْوِيْقُهُمْ إِلٰى مُدَارَسَةِ الْقُرْآنِ وَتَحَفُّظِهٖ]۔

(پدے کښې يو حکمة دا دے چه خلقو باندے آساني راشي او د خلقو ددے لوستلو او حفظ کـولـو سره شـوق پيـدا شـي ځـکه چه که قرآن يوه لړئ وے نو ددے حفظ کول به مشکل کيـدلے او پدے غټ درياب باندے به ورداخليدل ورته ګران ښکاره کيـدلے، او کله چه انسان د يـو سـورت نـه فـارغ شـي نـو يو قسم راحت ملاؤ شي او چه بل شروع کوی نو بيا ئے شوق پيدا شوے وی)۔

۲- [اَلدِّلَالَةُ عَلٰی مَوْضُوْعِ الْحَدِیْثِ وَمِحْوَرِ الْکَلَامِ]۔

(پدے کښې د هر سورت موضوع او د خبرے مقصد زر معلومیږی، او هر سورت د الله تعالیٰ یو خاص تقریر وی چه بندګانو ته ئے کوی) لکه سورة البقره، سورة یوسف، سورة النمل، او سورة الجن شو۔

۳- کله چه قاری یو سورت یا د کتاب یو باب پوره کړی بیا په بل کښې شروع اُوکړی نو پدے سره په هغه کښې نشاط او تازګی پیدا کیږی په یادولو د هغې باندے په خلاف ددے چه یو کتاب همیشه اُوګد شی۔ لکه یو مسافر چه کله یو میل یا یو فرسخ (درے میله) مزل اُوکړی۔ بیا دمه اُوکړی نو پدے سره نور مزل ته تازه شی، او ددے وجه نه قرآن کریم اجزاء (سیپارو) او اخماسو (پنځه حصو) ته تقسیم شویدے۔

٤- یو حافظ چه کله یو سورت حفظ کړی نو د هغه دا عقیده جوړه شی چه ما د الله تعالیٰ د کتاب نه یوه مستقله حصه حفظ کړه نو هغه سره ددے حفظ شده حصے تعظیم پیدا شی۔

لکه دے ته په حدیث د انسؓ کښې اشاره ده :

[کَانَ الرَّجُلُ اِذَا قَرَأَ الْبَقَرَةَ وَآلَ عِمْرَانَ جَدَّ فِیْنَا]۔

(کله چه به یو سړی په مونږ کښې سورة البقره او سورة آلعمران اُولوستلو نو هغه به په مونږ کښې مشر شو)۔

دا وجه ده چه په مانځه کښې قراءت په مکمل سورت سره بهتر دے۔

OOOOOOOOOOO

## ۲۷- الامر : اقسام السور :

[ اووه ويشتم بحث : په اعتبار د آيتونو سره د سورتونو اقسام]

يو حديث کښې د آيتونو د تعداد په اعتبار سره د (۱۱٤) سورتونو څلور (٤) اقسام ذکر شويدی :

[عَنْ وَاثِلَةِ بْنِ الْاَسْقَعِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ : اُعْطِيْتُ مَكَانَ التَّوْرَاةِ السَّبْعَ الطُّوَّلَ وَاُعْطِيْتُ مَكَانَ الزَّبُوْرِ الْمِئِيْنَ وَاُعْطِيْتُ مَكَانَ الْاِنْجِيْلِ الْمَثَانِيَ وَفُضِّلْتُ بِالْمُفَصَّلِ]

[مسند احمد ١٠٧/٤) والطيالسي في المسند (١٠١٢) والبيهقي في الشعب (٢٤١٥) واسناده حسن او صحيح)۔

(واثله بن اسقع ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دی : (( ما ته د تورات په ځائے اُووه اُوږده سورتونه راکړے شويدی، د زبور په ځائے مئين راکړے شويدی، د انجيل په ځائے مثاني راکړے شويدی او په مفصلاتو (يعني مختصر سورتونو) زه غوره کړے شوے يم (يعني دا ما له زياتي راکړے شويدی) ددے اقسامو تشريح دا ده :

۱ - **السبع الطوّل** : اُووه اُوږدو سورتونه البقره، آل عمران، النساء، المائده، الانعام، الاعراف او الانفال سره د براءت نه مراد دی۔ او د بعضو په نيز اُوم سورت يونس دے۔

۲ - **المئون** : ابن جرير الطبريؒ ليکلي دی چه د مئين نه مراد هغه سورتونه دی چه د هغے آيتونه د سلو نه څه کم يا زيات وی۔ دا د سورة يونس نه تر سورة الفاطر پورے (۲٦) سورتونه دی۔ چه پدے کښې د اکثرو آيتونه د سلو نه زيات يا څه کم دی او بعض سورتونه داسے هم دی چه د هغے آيتونه د سلو نه ډير زيات دی۔

۳ - المثاني : ابن جريرؒ د ابن عباسؓ قول نقل کړيدے چه د مثاني نه مراد هغه سورتونه دی چه د مئون نه بعد او د مفصلاتو نه مخکښې ذکر شويدی يعني د سورة فاطر نه واخله تر سورة ق پورے يعني (١٤) سورتونه دی۔ چه دے ته مثاني پدے وجه وئيلے شی چه پدے کښې الله تعالیٰ امثال، قصص او د عبرت او نصيحت خبرے بار بار ذکر کړيدی۔

٤ - المفصل : مفصل هغه سورتونه دی چه نسبتاً واړه سورتونه وی او د هغے ترمينځ فصل او جدائي زر زر راځي، دا د سورة ق نه تر الناس پورے تول (٦٥) سورتونه دی۔

**مفصل** سورتونه بیا په درے قسمه دی :

۱- طوال مفصل : (اوږده مفصل سورتونه) دا د «ق» نه «بروج» پورے (۳٦) سورتونه دی۔

۲- اَوساطِ مفصل : (درمیانه مفصل سورتونه) دا د «الطارق» نه تر «لم یکن» پورے ټول (۱۳) سورتونه دی۔

۳- قصار مفصل : (لنډی مفصل سورتونه) دا د «الزلزال» نه تر الناس پورے ټول (۱٦) سورتونه دی۔

OOOOOOOOOOO

## ۲۸- بحث : د آیت لغوی او اصطلاحی معنی :

آیة په اصل کښ اَوَیَة دے۔ جوهریؒ د سیبویهؒ نه نقل کړیدی چه د عین کلمے په ځائے واو دے [الصحاح للجوهری ولسان العرب]۔

لیکن بل طرف ته ابن منظورؒ د عبد الله بن بریؒ نه نقل کوی چه سیبویهؒ دا نهٔ دی وئیلی چه آیة کښ د عین کلمے په ځائے په اصل کښ واو دے لکه څنګه چه جوهریؒ وئیلی دی بلکه هغوی دا وئیلی دی چه د آیة اصل اَیْةٌ دے چه په اصل کښ اَیَیَةٌ دے په وزن د فَعَلَة چه پدے کښ یاء ساکنه په الف سره بدله شویده۔ او خلیل نحویؒ وئیلی دی چه ددے وزن فَعَلَة دے یعنی اَیَیَة دے او دا د اکثرو اهل لغتو قول دے۔ دواړه قولونه صحیح دی۔ (یعنی که اَوَیَة شی او که اَیَیَة شی څکه چه دا قاعده ده چه کله د واو او یاء نه مخکښ زبر راشی نو هغه په الف سره بدلیږی نو آیة ترے جوړ شو)۔

د آیة مشهوره معنیٰ : نښه، علامه او دلیل دے۔

زهیر بن ابی سلمی جاهلی شاعر وائی :

اَرَانِیْ اِذَا مَا شِئْتُ لَاقَیْتُ آیَةً تُذَکِّرُنِیْ بَعْضَ الَّذِیْ کُنْتُ نَاسِیا

(ما خپل ځان لیدلو چه کله زه غواړم نوډ داسے نښے سره ملاویږم چه هغه ما ته بعض هغه حوادث راتازه کوی چه هغه ما نه هیر شوی وو)۔

مطلب دا دے چه نوی مصیبتونه راته زاړه مصیبتونه رایادوی او تازه کوی۔ نو پدے شعر کښ د آیة معنی په علامے او نښے سره استعمال شویده۔

آیة کله په نورو معانیو هم قرآن کښ استعمال دے۔
۲- کله په معنیٰ د معجزے سره وی لکه﴿ سَلْ بَنِیْ إِسْرَائِیْلَ کَمْ آتَیْنَاهُمْ مِنْ آیَةٍ بَیِّنَةٍ﴾ البقره [۲۱۱]
(تپوس اُوکړه د بنی اسرائیلو نه چه څومره مونږ ورکړی وو دوی ته معجزے ښکاره)۔
۳- کله په معنیٰ د عبرت او نصیحت اخستو سره وی۔ لکه
﴿ إِنَّ فِیْ ذٰلِکَ لَآیَةً ﴾ [البقرة : ۲٤۸]
(یقیناً پدے کښ نصیحت دے)
٤- کله په معنیٰ د الامر العجیب سره وی یعنی عجیبه کارنامه او عجیبه څیز۔ لکه ﴿ وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْیَمَ وَأُمَّهُ آیَةً ﴾ [المؤمنون : ۵۰] (مونږ عیسی ابن مریم او د هغه مور (د خلقو دپاره) عجیبه کارنامه جوړه کړے وه)۔
۵- کله آیة په معنیٰ د جماعة سره راځی لکه [خَرَجَ الْقَوْمُ آیَتَهُمْ اَیْ بِجَمَاعَتِهِمْ] (خلق د خپلو ډلو سره اُووتل) یعنی د ځان نه روستو ئے هیڅوك پرے نخودل۔
٦- کله په معنیٰ د دلیل او برهان سره وی۔ لکه ﴿ وَمِنْ آیَاتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [الروم: ۲۳] (بعض د دلیلونو د قدرت او د توحید د الله تعالیٰ نه پیدائش د آسمانونو او د زمکو دے)

**د آیت تعریف :** [حَدُّ الآیَةِ : قُرآنٌ مُرَکَّبٌ مِنْ جُمَلٍ وَلَوْ تَقْدِیْرًا ذُوْ مَبْدَءٍ وَمَطْلَعٍ مُنْدَرَجٌ فِیْ سُوْرَةٍ] [البرهان فی علوم القرآن ۲٦٦/۱]
(د آیت تعریف دا دے چه دا د مختلفو جملو نه مرکب د قرآن هغه حصه ده چه ابتداء او اختتام لری اگرکه د هغے مرکب کیدل تقدیری وی یعنی د جملے یو جزء محذوف وی او هغه (حصه) په یو سورت کښ داخل وی)۔
علامه ابن عاشورؒ لیکی : [هِیَ مِقْدَارٌ مِنَ الْقُرْآنِ مُرَکَّبٌ وَلَوْ تَقْدِیْرًا اَوْ اِلْحَاقًا]
(آیت : د قرآن هغه اندازے او حصے ته وئیلے شی چه مرکب (یوځائے) شوی وی اگرکه دا یو ځائے کیدل ئے تقدیری وی یا الحاقی وی) یعنی یو جزء د جملے حذف وی لکه مدهامتان یو آیت دے دا په اصل کښ (هُمَا مُدْهَامَّتَانِ) دے۔ یا لکه ﴿ وَالْفَجْرِ﴾ دا په اصل کښ : [اُقْسِمُ بِالْفَجْرِ] دے۔ او د الحاق مثال هغه حروف مقطعات دی چه په ابتداء د سورتونو کښ راغلی وی چه دا په بعض سورتونو کښ مستقل آیت شمارلے شویدی اگرکه ندے

مستقل معنی نشته لیکن دیته الحاقاً آیة وئیلے شی۔ یعنی په حکم د آیت کښې دی۔
[التحریر والتنویر ۱/۷۳]
قرآن کریم اولنے هغه کتاب دے چه دهٔ د خپل حصو نه تعبیر په آیاتونو سره اُوکړو، مخکښې دا چا پدے معنیٰ کښې نهٔ پیژندلو۔

## طریق معرفة الآیة :

### [ د آیت د پیژندلو طریقه ]

د آیت د پیژندلو په باره کښې اختلاف دے چه دا په کومه طریقه پیژندلے شی ؟
**یو قول** دا دے چه د آیت پیژندل په عقل او قیاس سره نشی کیدے بلکه دا به د شارع نه اَوریدلے شی چه هغه کوم څیز ته آیت اُووائی نو هغه به آیت وی لکه علماء کرامو (المص) آیت ګرځولے دے او ددے نظیر (المر) ئے آیت نهٔ دے شمارلے، دغه شان (یس) ئے آیت ګنړلے دے او ددے نظیر (طس) ئے مکمل آیت نهٔ دے ګنړلے۔
دغه شان (حم عسق) ئے دوه آیتونه شمار کړیدی او (کهیعص) ئے یو آیت شمارلے دے۔
دلیل دا وائی چه په احادیثو کښې د بعض سورتونو د آیتونو تعداد ذکر دے لکه سورة الفاتحه ته السبع المثانی وئیلے شویدے یعنی دا اُووه آیتونه دی۔
[بخاری، ابوداود ونسائی]۔
دغه شان آیة الکرسی ته سیدة آی القرآن (د قرآن د آیتونو سردار) وئیلے شویدے۔
[ترمذی، حاکم]۔
او دغه شان حدیث کښې دی : دیرش آیتونو والا سورت یو سړی دپاره سفارش اُوکړو (یعنی سورة الملك) (ابوداود، ترمذی وغیره)
او ددے په شان دلائل دلالت کوی چه د آیتونو فواصل او د آیتونو سرونه د رسول الله ﷺ نه ثابت دی او هغوی نه صحابه کرامو زده کړیدی او بیا تابعینو او تبع تابعینو امت ته په تواتر سره پیش کړیدی۔ او کوم معمولی اختلاف چه په تعداد د آیتونو کښې راغلے دے نو د هغے وجه یا دا وه چه بعضو پکښې بسم الله آیت شمارلے دے او بعضو نهٔ دے شمارلے۔
دارنګه بعضو په یو ځائے وقف کړیدے، او بعضو په بل ځائے۔

ځینو د آیت فاصلې ته کتلې دي او ځینو د آیت معنیٰ ته کتلي دي او دغه څه نقصان ده اختلاف نهٔ دے۔
او علامه فیروز آبادي فرمائي: دا اختلاف د قراؤ لفظي دے او حقیقي اختلاف نهٔ دے۔ او داسې نهٔ ده چه بعضو پکښې د ځان نه آیتونه ورداخل کړیدي۔ ځکه چه په قرآن کریم کښې د ځان نه زیادت کول کفر او نفاق دے۔ [بصائر ذوی التمیز ۳۷۷/۱]۔
۲- **دویم قول** دا دے چه بعض آیتونه په سماع او توقیف سره معلوم دي او بعض په عقل او قیاس سره او هغه داسې چه په کوم ځائے کښې چه دا ثابته وي چه رسول الله ﷺ په هغې باندې وقف کړے وي همیشه دپاره نو هغه به جدا آیت شمارلې شي۔ او کوم ځائے چه ئې وصل کړے وي نو هغه به نخه وي چه آیت لا ختم شوے نهٔ دے۔ [مناهل العرفان ۲٤۰/۱ (ملخصاً) وشرح المخللاتی لناظمة الشاطبی د ابو عید رضوان بن محمد ص (٦)]۔
لیکن ددے خبرے جاري کول ډیر مشکل دي۔

## ۲۹- د آیتونو تعداد:

زمونږ او ستاسو په لاس کښې چه کوم قرآنونه موجود دي ددے ترتیب بعینهٖ د رسول الله ﷺ نه ثابت دے چه هغوي سورة الفاتحه اول کښې او الناس آخر کښې ګرځولے دے او عثمان بن عفان رضی الله عنه هغه په مصاحفو کښې لیکلے وو نو پدے باندې ایمان راوړل فرض او ضروري دي۔ لیکن د آیتونو تعداد متعین نهٔ دے او ددے تعداد معلومول څه ایماني فریضه هم نهٔ ده او د هغې متعین تعداد د رسول الله ﷺ نه ثابت هم نهٔ دے چه هغوي داسې وئیلي وي چه د قرآن آیتونه دومره دومره دي۔
دا وجه ده چه قاضي ابوبکر بن العربيؒ فرمایلي دي:
[وَتَعْدِيدُ الآيَاتِ مِنْ مُعْضَلَاتِ الْقُرْآنِ]۔
(د آیتونو شمارل د قرآن د مشکلاتو نه دي)۔
ددے وجه دا ده چه رسول الله ﷺ به د آیتونو په آخر باندې اُودریدو (وقف به ئې کولو) لیکن کله به د آیت په مینځ کښې هم ساه اخستلو دپاره اُودریدو او آوریدونکي به دا ګمان کولو چه پدے ځائے باندې آیت ختم شو۔ او په بعض اوقاتو کښې به د مفهوم او معنی په

مناسبت سره یو آیت د بل آیت سره یو ځائے کولو او آوریدونکی به دا خیال کولو چه دا دواړه به یو آیت وی۔

کله آیتونه واړه وی نو دوه درے به ئے ملاؤ کړل او لوستل به ئے او آوریدونکی ته به یو آیت ښکاره کیدو۔ دغه شان د بعض سورتونو په ابتداء کښې چه کوم حروف مقطعات راغلی دی نو د هغے نه بعض علماؤ بعض مستقل آیت شمارلی دی او بعض ئے مستقل آیت نهٔ دی شمارلی۔

نو ددے وجوهاتو په بناء د آیتونو شمار ابن عربیؒ د مشکلات القرآن نه گرځولے دے او ددے وجه نه د آیتونو په شمار کښې اختلاف هم د پخوانه راروان دے چه د هغے تفصیل داسے دے:

[قَالَ اَبُوْعَمْرٍو الدَّانِيُّ فِيْ كِتَابِ ((الْعَدَدِ)) : اَجْمَعُوْا عَلٰى اَنَّ عَدَدَ آيَاتِ الْقُرْآنِ يَبْلُغُ سِتَّةَ آلَافِ آيَةٍ، وَاخْتَلَفُوْا فِيْمَا زَادَ عَلٰى ذٰلِكَ، فَمِنْهُمْ مَنْ لَمْ يَزِدْ وَمِنْهُمْ مَنْ قَالَ : وَمِائَتَيْنِ وَاَرْبَعَ آيَاتٍ، وَقِيْلَ : وَاَرْبَعَ عَشْرَةَ، وَقِيْلَ وَتِسْعَ عَشْرَةَ، وَقِيْلَ : وَخَمْسًا وَعِشْرِيْنَ وَقِيْلَ : وَسِتًّا وَثَلَاثِيْنَ، وَقِيْلَ : وَسِتَّمِائَةٍ وَسِتَّةَ عَشَرَةَ) [مقدمة التحرير والتنوير (٧٦/١) لابن عاشور]۔

(ابوعمرو الدانی په کتاب العدد کښې وئیلی دی چه د علماؤ پدے اتفاق دے چه د قرآنی آیتونو شمار (٦٠٠٠) زره آیتونه دے خو ددے نه په زائد کښې اختلاف دے۔ بعضو پکښې زیادت نهٔ دے کړے او بعضو وئیلی دی چه (٦٢٠٤) آیتونه دی او بعض وائی (٦٢١٤) او بعض وائی (٦٢١٩) دی او بعض وائی (٦٢٢٥) او د بعضو په نیز (٦٢٣٦) دی او د بعضو قول دے چه (٦٦١٦) آیتونه دی۔

علامه ابن الجوزیؒ متوفی (٥٩٧ هـ) په خپل کتاب «فنون الافنان فی عیون علوم القرآن» کښې لیکی:

«حافظ ابو الحسن بن المناویؒ متوفی (٣٣٦ هـ) کښې فرمایلی دی چه د ابوبکر صدیق او د عثمان ذی النورین په خلافت کښې چه زید بن ثابت د قرآن کومه جمع او تالیف کړے وو نو د هغے مطابق د سورتونو تعداد (١١٤) وو لیکن د قرآن د آیتونو په شمار کښې د شمار کونکو دا اختلاف د وجه نه اختلاف واقع شویدے۔

د آیتونو شمار پنځه ښارونو ته منسوب دے۔ مکه، مدینه، کوفه، بصره او شام۔

١- عدد مکی: دا شمار مشهور تابعی مجاهد بن جبرؒ متوفی (١٠٣ هـ) او د هغه شاگر

دویم تابعی عبد الله بن کثیرؒ متوفی (۱۲۰ هـ) ته منسوب دے۔ چه دا دواړه د قراءت او د تفسیر په مکه کښې امامان وو۔

۲- عدد مدنی: دا شمار ابوجعفر یزید بن قعقاع متوفی (۱۲۷ هـ) او د هغه زوم شیبه بن نصاحؒ متوفی (۱۳۰) ته منسوب دے۔ دا دواړه د مدینے والو امامان وو۔

۳- عدد کوفی: دا د علی ؓ شاګرد ابوعبد الرحمن سلمیؒ متوفی (۷۰هـ) ته منسوب دے۔

٤- عدد بصری: دا شمار عاصم بن میمون جحدری متوفی (۱۲۸ هـ) ته منسوب دے دا د هغه (٦) تابعینو او د قرآن د حافظانو نه شمار وو کوم چه حجاج بن یوسف ثقفی د قرآن کریم د حروفو په شمارلو باندے مقرر کړی وو۔

د باقی نومونه دا دی: (۲) حسن بصریؒ متوفی (۱۱۰ هـ)۔

(۳) مالك بن دینارؒ متوفی (۱۳۰ هـ)۔

(٤) ابو العالیه ریاحیؒ متوفی (۹۰ هـ)

(٥) ابو محمد حِمّانی (دده نوم راشد یا راشد بن نجیح دے)۔

(٦) او نصر بن عاصم لیثیؒ متوفی (۱۰۰ هـ)

٥- عدد شامی: دا عبد الله بن عامر یحصبیؒ متوفی (۱۱۸ هـ) ته منسوب دے۔ چه دا د دمشق د قرآن مشهور مُعلم د جناب ابوالدرداء رضی الله عنه شاګرد وو۔

د قرآنی آیتونو د شمار کونکو پدے اجماع ده چه د آیتونو تعداد خو (٦۲۰۰) شپږ زره دوه سوه دے لیکن ددے نه په زیات کښې اختلاف دے چه د هغے تفصیل داسے دے:

۱- عبد الله بن مسعود او نافع (٦۲۱۷)

۲- عدد مدنی د شیبه په نیز (٦۲۱٤)

۳- عدد مدنی د ابوجعفر یزید بن قعقاع په نیز (٦۲۱۰)

٤- عدد مکی (٦۲۲۰)

٥- عدد کوفی (٦۲۳٦)

دا عدد د قراء سبعه د یو قاری حمزه زیات متوفی (۱٥٦ هـ) نه هم نقل دے۔ امام قرطبیؒ لیکلی دی چه دا عدد امام کسائیؒ د علی بن ابی طالب ؓ نه هم نقل کړیدے او د ټولو نه زیات مشهور همدا عدد کوفی دے۔

[راجع الاتقان وتفسیر القرطبی وعلوم القرآن للشیخ گوهر رحمان]۔

## ۳۰- بحث : کلمات القرآن :

د قرآن کریم د کلماتو په شمار کښې هم اختلاف دے لیکن د ابن مسعود ﷺ په نیز د قرآن کریم د کلماتو تعداد (۷۷۹۳٤) اُووه اَویا زره نهه سوه څلور دیرش دے۔
(۲) روایت : په روایت د عطاء بن یسار کښې (۷۷٤۳۹) اُوه اویا زره څلور سوه نهه دیرش کلمات د قرآن دی۔ او دا روایت د اهل مدینه دے۔ پدے روایت کښې فیروز آبادی (۷۷٤۳۷) ذکر کړیدی کما فی بصائر ذوی التمییز)۔
(۳) روایت : او ابو ربیعةؒ چه د اهل مکے نه کوم روایت نقل کړیدے نو په هغے کښې د قرآن کلمات (۷۷٤٦۰) اُووه اویا زره څلور سره شپیته دی۔
(٤) او په روایت د یحی بن الحارث کښې (۷۹۰۱۰) (نهه اویا زره لس کلمات دی۔
(۵) او د ابو عدیؒ په روایت کښې (۷۹۰۳۹) (نهه اویا زره نهه دیرش کلمات دی۔
ددے اختلاف سبب دا دے چه بعض قراؤ «الانهار، الارض، الآخرة او الابرار» په شان کلمات دوه کلمے ګنړلی دی لکه دا مذهب د کوفینو دے چه هغوی الف لام جدا کلمه شماری۔ او بصرین ئے یوه کلمه شماری۔
[شرح المخللاتی لرضوان بن محمد، علی الشاطبیة) نقلاً من کتاب العدد لابی القاسم عمر بن محمد بن عبد الکافی) وبصائر ذوی التمییز]

## ۳۱- بحث : عدد حروف القرآن :

[ قرآن کښې څومره حروف دی ؟ ]

حجاج بن یوسف ثقفی چه کومه کمیټی د آیتونو د حروفو د تعداد معلومولو دپاره مقرر کړے وه نو هغوی په (٤) میاشتو کښې د حروفو د تعداد معلومول مکمل کړل نو د هغے مطابق د قرآن حروف ټول (۳٤۰۷٤۰) درے لاکه څلویښت زره اُووه سوه څلویښت) حساب شو۔ [قرطبی ٦٥/۱]

او فیروز آبادی په بصائر ذوی التمییز کښې وئیلی دی چه عدد الحروف (۳۲۳۰۷۱) درے لاکهه درویشت زره یو اویا حروف دی۔ هغه د صاحب الایضاح نه نقل کوی او هغه

خپل سند محمد بن ایوب ته رسوی فرمائی :

[اَنَـا مُـحَـمَّـدُ بْـنُ اَيُّـوْبَ قَـالَ : حَسِبُوْا حُرُوْفَ الْقُرْآنِ وَفِيْهِمْ حُمَيْدُ بْنُ قَيْسٍ فَعَرَضُوْهُ عَلٰى مُجَاهِدٍ وَسَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ فَلَمْ يُخَطِّئُوْهُمْ فَبَلَغَ مَا عَدُّوْهُ ثَلَاثَمِائَةِ اَلْفِ حَرْفٍ وَّثَلَاثَةً وَعِشْرِيْنَ اَلْفَ حَرْفٍ وَّاَحَدٍ وَّسَبْعِيْنَ حَرْفاً] [بصائر ذوی التمييز فی لطائف الكتاب العزيز ۱/۳۷۹]

(علماؤ د قرآن حروف حساب كړل او په هغوی كښې حميد بن قيس هم وو نو دوی دا حساب په مجاهدؒ او سعيد بن جبيرؒ باندے پيش كړو نو هغوی دوی ته د خطائی نسبت اُونكړو او هغه عدد (۳۲۳۰۷۱) ته اُورسيدو)۔

## ۳۲- بحث : نقطے او حركات د قرآن :

په قديم عربو كښې په حروفو باندے نقطے او حركات لګولو رواج نۀ وو او لوستونكو به حروف بغير د نقطو او حركاتو نه لوستلو كښې څه مشكلات نۀ محسوس كول، ددے وجه نه د عثمان رضی الله عنه ليكلی مصاحفو كښې نقطے او حركات نۀ وو ليكن روستو زمانه كښې چه كله فتوحات اُوشو، او اسلام د عجمو علاقو ته هم اُورسيدو او عامه دنيا په اسلام كښې داخله شوه نو په حروفو باندے د حركات او نقطو لګولو ضرورت راپيښ شو، دے دپاره چه خلق په آسانئ سره تلاوت اُوكړے شی او د غلطئ نه بچ كړے شی۔

تاريخ القرآن الكريم كښې علامه محمد طاهر الكردی ليكی :

((د اعراب (زور، زير، پيښ) لګولو سبب او باعث دا بيانوی چه زياد بن سميه د بصرے والی وو، دۀ چه كله د عربو په قراءت او لوستلو كښې خطائی اُوليدله نو د ابوالاسود دئلی نه ئے دا مطالبه اُوكړه چه يوه طريقه وضع كړی، دے دپاره چه د خلقو ژبے د قراءت په وخت كښې د خطائی نه بچ شی نو ابوالاسود ددۀ خبرے ته هيڅ توجه ورنكړه نو زياد داسے حيله او چل جوړ كړو چه د خپلو تابعدارو نه يو شخص ته ئے اُووئيل چه ته د ابوالاسود په لاره كښې كينه او د قرآن نه څه اُولوله او قصداً پكښې خطائی اُوكړه نو هغه دا كار اُوكړو او دا آيت ئے اُولوستلو : ﴿ اِنَّ اللّٰهَ بَرِيْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَرَسُوْلِهٖ ﴾ ـ د رسوله په لام باندے ئے كسره (زير) اُووئيلو۔ (چه پدے سره معنی خطاء شوه يعنی : الله تعالىٰ د مشركانو نه بيزاره دے او د رسول نه هم (والعياذ بالله)۔

نو کله چه ابوالاسود دا واوریدل نو دا خبره ئې ډیره لویه اُوګڼړله او دا ئې اُوفرمایل چه د الله تعالیٰ مخ ډیر عزت مند دے ددے نه چه د خپل رسول نه بیزاری اُوکړي۔ نو دے سمدستی زیاد خواته ورغلو او دا ئې ورته اُووئیل چه تا ما نه کومه مطالبه کړے وه زه د هغے قبلولو ته تیاریم۔زما خیال دا دے چه زه په قرآن باندے اعراب اُوکړم۔ خو زما دپاره کاتب اُوګوره نو هغه ورله دیرش کاتبان راوستل نو دهٔ په کښې یو منتخب کړو۔

او هغه ته ئې اُووئیل چه قلم او رنګ راواخله چه د نور قرآن د سیاهی نه بدل وی۔ او ما ته ګوره کله چه زه په یو حرف باندے شونډه کولاوه کړم نو بره یوه نقطه (یعنی یوه کرخه) اُوکړه۔ او کله چه زه د یو حرف په لوستلو شونډے ماتے کړم نو لاندے کرخه اُوکړه او کله چه زه شونډے یو ځائے کړم نو د حرف مخامخ یوه نقطه واچوه که څه غُنه ددے حرکاتو سره راغله نو بیا دوه نقطے (یعنی دوه زورونه یا زیرونه یا پیښونه) واچوه نو پدے طریقه هغه به په آرام آرام لوستل کول او کاتب به زور زیر پیښ لګولو۔ کله چه کاتب به یوه صفحه پوره کړه نو ابوالاسود به د هغے نظر ثانی اُوکړو۔

او دا کار ئې همیشه اُوکړو تردے چه ټول قرآن ئې په اعراب سره مکمل کړو او سکون ئې بغیر د نخے نه پریخودو نو بیا خلقو د هغه نه دا طریقه واخسته او دے زبر، زیر پیش ته به ئې شکل ورکولو۔

بیا خلقو قسماقسم طریقو سره د دغه نخو شکلونه جوړ کړل چا په مربع (څلور قنجه) شکل، چا په ګول (غونډ) شکل۔

بیا ئې وخت په وخت نورے نورے نخے زیاتولے تردے چه مونږ ته په هغه صورتونو کښې راورسیدو کوم چه مونږ نن صبا استعمالوو

## دویم روایت :

د نقطو (ټکو) او زور، زیر، پیښ لګولو سبب دا وو چه د مصحف عثمان د لیکلو د دور نه خلقو به قرآن کریم بغیر د ټکو نه لوستلو او پدے حالت باندے تر (٤۳) کالو پورے خلق روان وو۔

بیا په عراق کښې به خلقو ته په لوستلو کښې خطایانے زیاتے راپیښیدلے نو حجاج بن یوسف الثقفی متوفی (۹۵ھ) د علاقے ګورنر د عبد الملك بن مروان په خلافت کښې (چه دا د ٦۵ نه تر ۸٦ ھ پورے وو) دے خبرے ډیر اُویرولو او د دوی د اصلاح سوچ ورسره پیدا شو نو هغه خپلو کاتبانو ته دا حکم صادر کړو چه په متشابه حروفو باندے داسے څه

نخے اُولکوی چه په هغے سره خلق د خطائی نه بچ شی۔ نو دوی نصر بن عاصم لیثی متوفی (۸۹ هـ) او یحیی بن یعمر العدوانی متوفی (۱۲۹ هـ) (چه دواړه د ابوالاسود شاګردان وو) او په یو روایت کښې ورسره حسن بصری متوفی (۱۱۰ هـ) هم ذکر دے کما فی فضائل القرآن لابن کثیر)

پدے کار باندے مقرر کړل نو هغوی د نقطو او حرکاتو لګولو دا خدمت سرته اُورسولو۔ او متشابه حروف ئے د یو بل نه جدا جدا کړل لکه مثلًا په ذال ئے ټکے اُوکړو چه فرق ئے د دال نه راشی په زاء ئے ټکے اُوکړو چه فرق ئے د راء نه راشی او په شین ئے درے ټکی اُوکړل چه فرق ئے د سین نه راشی۔ او دغه شان نور واخله۔

[تاریخ القرآن للکردی ص (۱۸۱)۔

ابن عطیه غرناطی اندلسی رحمه الله متوفی (۵۴۱ هـ) او نورو علماؤ پدے کښې درے اقوال ذکر کړیدی :

۱- یو دا چه دا د عبد الملك بن مروان په حکم سره حجاج بن یوسف حسن بصری او یحیی بن یعمر پدے کار لګولی وو۔

۲- دویم روایت ابوبکر زبیدی اشبیلی متوفی (۳۷۹ هـ)

په طبقات النحویین کښې د مبرد نحوی نه نقل کړیدی چه په مصحف باندے نقطے او اعراب ابوالاسود الدئلی متوفی (۶۹ هـ) لګولی وو۔

۳- دریم روایت ابوعثمان جاحظ متوفی (۲۵۵ هـ) په کتاب الامصار کښې نقل کړیدی چه په مصحف باندے د ټولو نه رومبے حرکات او نقطے نصر بن عاصم لیثی متوفی (۸۹ هـ) اچولی وو۔ او پدے وجه سره هغه ته به نصر الحروف وئیلے شو۔ یعنی د حروفو مدد او خدمت کونکے۔

[المحرر الوجیز لابن عطیة) (۵۴/۱) الجامع لاحکام القرآن للقرطبی (۴۵/۱) البرهان فی علوم القرآن (۲۵۰/۱) الاتقان فی علوم القرآن للسیوطی (۴۵۴/۲) فضائل القرآن لابن کثیر [۸۳/۱]۔

ابوالاسود دُؤلی تابعیؒ د علی رضی الله عنه سره په جنګ صفین کښې شریك وو۔ دا اولنے هغه شخص دے چه د علم نحو قواعد ئے وضع کړی وو۔ نصر بن عاصم لیثی او یحیی بن یعمر دواړه د هغه شاګردان وو نو کیدے شی چه نقطے او حرکاتو ایخودلو اول ابتداء ابوالاسود دُؤلی کړی وی او بیا د هغے تکمیل شاګردانو کړے وی۔ چونکه پدے کار کښې ټولو حصه اخستے وه پدے وجه په کتابونو کښې په مختلف روایتونو کښې ددے ټولو

نو مونه راغلی دی۔ رحم الله الجمیع وایانا معهم۔
[المحکم فی نقط المصاحف لابی عمرو عثمان بن سعید الدانی ص (٦) طبع دار الفکر دمشق)۔
علامه سیوطیؒ او ابوعمرو الدانیؒ فرمائی: چه په مصحف باندے همزه او مد او شد، روم او اشمام مشهور نحوی عالم خلیل بن احمد الفراهیدی متوفی (۱۷۵ ھ) لګولی وو۔
[المحکم فی نقط المصاحف) (الاتقان)۔

## ۳۳- بحث: حکم النقط والشکل

### [ ددے نقطو حکم ]

امام نوویؒ په خپل کتاب «التبیان فی آداب حملة القرآن» کښ لیکلی دی: [نَقْطُ الْمُصْحَفِ مُسْتَحَبٌّ لِأَنَّهُ صِيَانَةٌ لَهُ مِنَ اللَّحْنِ وَالتَّحْرِيْفِ] (التبیان ص (۱۵۰) والاتقان)۔
(په مصحف باندے نقطے او حرکات لګول مستحب دی ځکه چه دا د غلط تلفظ او لفظی تحریف نه د حفاظت یوه ذریعه ده)
او پدے سره په قرآن کریم کښ تحسین او ښائست پیدا کیږی۔
ابتداء زمانه کښ به علماؤ د قرآن نقطے او حرکات بد ګنړل۔ دے دپاره چه قرآن کریم د مصحف د رسم الخط مطابق محفوظ پاتے شی او پدے کښ څه تغییر رانشی۔
لکه عبد الله بن مسعود ؓ به فرمائیل: [جَرِّدُوا الْقُرْآنَ وَلَا تُخْلِطُوْهُ بِشَيْءٍ] (اتقان) (ابن ابی شیبه ۱۰/۵۵۰] وعبد الرزاق]۔
(قرآن د زیاتی څیزونو نه خالی کړئ او د بل څیز سره ئے مه یو ځائے کوئ)۔
دارنګه ابن سیرین رحمه الله نه نقل دی چه [أَنَّهُ كَرِهَ النُّقَطَ وَالْفَوَاتِحَ وَالْخَوَاتِمَ]۔ چه هغه به نقطے او ابتدائی او اختتامی لیکل بد ګنړل) دغه شان د ابراهیم نخعیؒ نه هم نقل دی۔
لیکن روستو زمانه کښ دے ته حاجت راغلو، دے دپاره چه قرآن کریم کښ څوك خطائی اُونکړی۔

## ۳۴- بحث: اجزاء یا سیپارے:

د قرآن تقسیم اصل کښ د سورتونو په اعتبار سره دے کوم چه د رسول الله ﷺ نه ثابت دے۔

دویم تقسیم سره قرآن په څلورو حصو تقسیم دے (السبع الطول، المئون، المثاني، المفصل) دا هم په مرفوع حدیث سره ثابت دی۔

او دریم تقسیم دا وو چه صحابه کرامؓ به په اُووه ورځو کښې د قرآن ختمولو دپاره قرآن اُوه حصو ته تقسیم کړے وو چه هغې ته احزاب سبعه یا منازل سبعه وئیلے کیږی۔ چه د هغې نه یو یو منزل روزانه اُولوستے شی نو په اُوه ورځو کښې به قرآن ختم شی۔.

او هرچه د قرآن دیرش سیپارو ته تقسیمول دی نو دا په روستو دور کښې د ماشومانو د تعلیم او زده کړے دپاره کړے شویدی، پدے تقسیم کښې د معانی او مضامینو لحاظ نۀ دے ساتلے شوے بلکه صرف دیرش سیپارے جوړے شویدی۔ دا وجه ده بعض سیپارے په نیمائی خبره باندے ختمے شوی وی لیکن د تعلیم او تلاوت دپاره دا تقسیم ممنوع هم نۀ دے۔ اګرکه په قرآن کریم کښې تلاوت کول او د هغې نه تعلیم کول بهتر عمل دے۔

علامه زرکشیؒ لیکی :

[وَاَمَّا التَّحْزِيْبُ وَالتَّجْزِئَةُ فَقَدِ اشْتَهَرَتِ الْاَجْزَاءُ مِنْ ثَلَاثِيْنَ كَمَا فِي الرَّبْعَاتِ بِالْمَدَارِسِ ] [البرهان للزركشي ۱/ ۲۵۰) مناهل العرفان للزرقاني [۱/ ۲۸۷]۔

(د قرآن دیرش (۳۰) سیپارو ته تقسیمول د پخوانه همداسے راروان دی او د مدرسو په قرآنی نسخو کښې دا مروج دے)

یعنی دا تقسیم د صحابه کرامو د زمانے نۀ روستو د تعلیم د آسانئ دپاره کړے شویدے۔

## ۳۵- **بحث** : رموز واوقاف :

پدے طریقه روستو زمانه کښې رموز او اشارات وضع شو او په قرآنی جملو باندے د لیکلو رواج عام شو چه هغه ددے نخے وی چه په کوم ځائے باندے وقف کول لازم دی او کوم ځائے منع دی، او کوم ځائے بهتر دی او کوم ځائے جائز دی او بهتر نۀ دی۔ دے رموزاو اشاراتو ته اوقاف (وقفونه) وئیلے شی۔

علامه ابن الجزریؒ لیکلی دی چه ددے رموزو نه اکثر شیخ ابوعبد الله محمد بن طیفور سجاوندی مقرر کړیدی۔

[النشر في القراءات العشر اقسام الوقوف ص [۱/ ۲۶۳]۔

او مصحف عثمانی ددے نه خالی وو۔خو مقصد ددے رموزو او اوقافو په وضع کولو

کښې دا وو چه که یو غیر عربی انسان هم چه کله تلاوت کوی نو اګرکه په معنیٰ ئې نهٔ پو هیږی خو چه په صحیح مقام وقف اُوکړی او په غلط ځائے د ساه د ختمولو په وجه په معنیٰ کښې تبدیلی رانشی۔

## ۳۶- بحث : رکوعات :

په قرآن کریم کښې د سیپارو په شان رکوع ګانے هم روستو زمانه کښې وضع کړے شویدی۔

د رکوع مقصد دا وی چه دومره آیتونه متعین شی چه هغه په یو رکعت کښې لوستلے شی او ددے وجه نه ورته رکوع هم وئیلے شی چه په مانځه کښې دے ځائے ته اُورسی نو مونځ کښې پدے سره رکوع ته تلے شی۔ د رکوعاتو په تقسیم کښې اکثر د معنی او مفهوم لحاظ شویدے یعنی چه یو مضمون ختم شی او خبره پوره شی نو هلته په حاشیه باندے د رکوع یا (ع) نخه لیکلے شی۔

## ۳۷- بحث تحزیب القرآن :

[ قرآن کریم کښې حزبونه او منازل ]

صحابه کرامو د سهولت دپاره د قرآن کریم حصے، احزاب او منازل مقرر کړے وو او مقرر حزب یا منزل به ئې روزانه تلاوت کولو۔ نو صحابه کرامؓ په عمومی طور سره قرآن کریم اُووه حصو باندے تقسیم کړے وو، دے دپاره چه په اُووه ورځو کښې د هغے ختم اُوشی۔ ځکه قرآن په یو میاشت کښې ختمول افضل دی۔

او په (۱۵) ورځو کښې ختمول ډیر افضل دی او په هره هفته کښې ختمول د هغینه هم ډیر افضل دی او د درے ورځو پورے د ختمولو اجازت ورکړے شویدے لیکن افضل نهٔ دی۔
او د درے ورځو نه په کم کښې قرآن ختمولو باره کښې وعید راغلے دے چه په قرآن هغه څوك نهٔ پو هیږی چه د درے ورځو نه ئې په کم کښې لولی۔
[لَمْ يَفْقَهُ بِالْقُرْآنِ مَنْ قَرَأَهُ فِيْ اَقَلَّ مِنْ ثَلَاثٍ] [ابو داود بسند صحیح]۔
او صحابه کرامؓ به غالباً په اُووه ورځو کښې قرآن ختمولونو پدے وجه ئې اُووه منازل (منزلونه) یا احزاب (حزبونه) مقرر کړی وو۔

د اَوس بن اوس ثقفی ﷺ نه روایت دے :

[فَسَأَلْنَا اَصْحَابَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ كَيْفَ تُحَزِّبُوْنَ الْقُرْآنَ ؟ قَالُوْا : ثَلَاثٌ وَخَمْسٌ وَسَبْعٌ وَتِسْعٌ وَاِحْدٰى عَشْرَةَ وَثَلَاثَ عَشْرَةَ وَحِزْبُ الْمُفَصَّلِ وَحْدَهٗ ] [ابوداود كتاب الصلاة باب تحزيب القرآن]۔

(مونږ د صحابه کرامو نه تپوس اُوکړو چه تاسو به قرآن په څو حصو (منزلونو) تقسيمولو ؟ نو هغوی اُووئيل : چه درے سورتونه، پنځه سورتونه، اُووه سورتونه، نهه سورتونه، يولس سورتونه، ديارلس سورتونه او مفصل سورتونه يواځے يوه حصه)۔

چه ددے احزاب او منازلو تفصيل داسے دے :

۱- البقره تر النساء پورے (۳) سورتونه او د فاتحے سره څلور سورتونه۔

۲- المائده نه تر التوبه پورے (۵) سورتونه۔

۳- يونس نه تر النحل پورے (۷) سورتونه۔

٤- بنی اسرائيل نه تر الفرقان پورے (۹) سورتونه۔

٥- الشعراء نه تر يس پورے (۱۱) سورتونه۔

٦- الصافات نه تر الحجرات پورے (۱۳) سورتونه۔

۷- او د ق نه تر الناس پورے (٦٥) سورتونه۔

د جمهورو علماؤ د قول مطابق مکی سورتونه (۸٦) دی او مدنی سورتونه (۲۸) دی۔ ټول (۱۱٤) سورتونه دی۔

ددے مجموعه (فَمِیْ بِشَوْقٍ) يا (شَوْقِیْ بِفَمٍ) ده۔

## ۳۸- السور المكية والمدنية :

## او ترتيب نزولی او ترتيب تلاوت۔

قرآن کريم چونکه د الله تعالیٰ د طرف نه بندګانو ته يو دعوت دے او د هغوی د ژوند تربيت دے پدے وجه الله تعالیٰ د بندګانو د حالاتو د تقاضو مطابق پدے خپل کتاب کښې بندګانو ته تقريرونه او خطبے کړيدی، د بندګانو به چه کومے خبرے او کومے مسئلے او عقيدے ته ضرورت وو نو د هغے مطابق به ئے آيتونه نازلول ليکن کله چه د دعوت دا مراحل مکمل شو او په جزيرة العرب کښې اسلام خور شو او خلق په اسلام کښې ډله ډله

داخل شول او د مدد آوازونه د هر طرف نه خواره شو او په سورة النصر سره د قرآن نزول هم مکمل شو نو دعوت پوره شو او د قرآن د نزول د تکمیل نه روستو قرآن د نزولی ترتیب مطابق مرتب کولو څه مناسبت پاتے نشو او په مختلفو موضوعاتو باندے په مختلفو اوقاتو او حالاتو کښ ورکړے شوے خطبے صرف د زمانے په ترتیب سره مرتب کولو څه زیاته فائده هم نۀ ښکاره کیده پدے وجه قرآن کریم په ترتیب نزولی سره مرتب نکړے شو بلکه یو بل ترتیب سره مرتب کړے شو چه هغه پخپله د نبی ﷺ د هدایت او راهنمائی مطابق مرتب کړے شویدے، لکه د روایتونو نه معلومیږی چه کله به یو سورت نازلیدو نو رسول الله ﷺ به د وحی کاتبان راطلب کړل او هغوی ته به ئے اُوفرمایل چه دا سورت د فلانی سورت نه بعد او د فلانی سورت نه مخکښ اُولیکئ۔

دغه شان چه کله به څه آیتونه نازلیدل نو لیکونکو ته به ئے حکم کولو چه دا د فلانی سورت په فلانی ځائے کښ اُولیکئ، پدے وجه چه په کومه ورځ د قرآن نزول مکمل شو نو د قرآن د تلاوت ترتیب هم مکمل شو۔

او د همدے ترتیب نبوی مطابق مصحف عثمانی تیار شوے وو کوم چه نن صبا د مسلمانانو په لاسونو کښ موجود دے۔

او د نزولی ترتیب په اعتبار سره قرآن کریم مرتب کول مقصود نۀ وو پدے وجه د ترتیب نزولی محفوظ کولو اهتمام نۀ رسول الله ﷺ کړے وو او نۀ صحابه کرامو او د قرآن حفاظو ددے ترتیب د یادولو التزام کړے وو، او نۀ څه ضروری وو۔

دا وجه ده چه ترتیب نزولی د رسول الله ﷺ نه په صحیح سند والا حدیث سره هم ثابت نۀ دے او په طریقه د توارث د امت هم مونږ ته نۀ دے رارسیدلے او دغه ترتیب معلومول شرعاً لازم هم نۀ دی۔ پدے باره کښ درے قسمه روایات موجود دی۔ چه هغه ټول د کلام نه خالی نۀ دی :

۱- روایت د عطاء الخراسانی عن ابن عباس دے۔ چه دا علامه ابن الضریس په فضائل القرآن کښ نقل کړیدے او علامه سیوطیؒ په الاتقان کښ راوړیدے : او هغه روایت داسے دے :

[قَالَ ابْنُ الضُّرَيْسِ فِي فَضَائِلِ الْقُرْآنِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِي جَعْفَرِ الرَّازِيُّ قَالَ اَنْبَاَنَا عَمْرُو بْنُ هَارُوْنَ قَالَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عَطَاءِ الْخُرَاسَانِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: اِذَا نَزَلَتْ فَاتِحَةُ سُوْرَةٍ بِمَكَّةَ

كُتِبَتْ بِمَكَّةَ ثُمَّ يَزِيْدُ اللّٰهُ فِيْهَا مَا شَاءَ وَكَانَ اَوَّلَ مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْآنِ اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ]۔

(ابن ضُریس په فضائل القرآن کښې وئیلی دی چه مونږ ته محمد بن عبد الله بن ابی جعفر رازی حدیث بیان کړے وو، هغه وائی چه مونږ ته عمرو بن هارون خبر راکړے وو، هغه وائی چه مونږ ته عثمان بن عطاء د خپل پلار (عطاء خراسانی) نه حدیث بیان کړے وو او هغه روایت کوی د ابن عباسؓ نه چه کله به د یو سورت ابتدائی آیتونه په مکه کښې نازل شول نو هغه به مکی سورت گڼړلے کیدو او ددے نه بعد به الله تعالیٰ چه څه غوختل نو په هغے کښې به ئې زیادت کولو۔ نو د قرآن د سورتونو نه اول اقرأ باسم ربك نازل شوے وو۔ باقی ترتیب داسے دے :

نمبر شماره په اعتبار د نزول د مکی سورتونو او د سورة نوم

۱- العلق۔ ۲- نون والقلم۔
۳- المزمل۔ ٤- المدثر۔
۵- اللهب۔ ٦- التکویر۔
۷- الاعلی۔ ۸- اللیل۔
۹- الفجر۔ ۱۰- الضحی۔
۱۱- الانشراح۔ ۱۲- العصر۔
۱۳- العادیات۔ ۱٤- الکوثر۔
۱۵- التکاثر۔ ۱٦- الماعون۔
۱۷- الکافرون۔ ۱۸- الفیل۔
۱۹- الفلق۔ ۲۰- الناس۔
۲۱- الاخلاص۔ ۲۲- النجم۔
۲۳- عبس۔ ۲٤- القدر۔
۲۵- الشمس۔ ۲٦- البروج۔
۲۷- التین۔ ۲۸- القریش۔
۲۹- القارعه۔ ۳۰- القیمة۔
۳۱- الهمزه۔ ۳۲- المرسلات۔
۳۳- ق۔ ۳٤- البلد۔

٣٥- الطارق۔ ٣٦- القمر۔
٣٧- ص۔ ٣٨- الاعراف۔
٣٩- الجن۔ ٤٠- يس۔
٤١- الفرقان۔ ٤٢- الفاطر۔
٤٣- مريم۔ ٤٤- طه۔
٤٥- الواقعه۔ ٤٦- الشعراء۔
٤٧- النمل۔ ٤٨- القصص۔
٤٩- بنى اسرائيل۔ ٥٠- يونس۔
٥١- هود۔ ٥٢- يوسف۔
٥٣- الحجر۔ ٥٤- الانعام۔
٥٥- الصافات۔ ٥٦- لقمان۔
٥٧- السباء۔ ٥٨- الزمر۔
٥٩- حم مؤمن۔ ٦٠- حم السجده۔
٦١- حم الشورىٰ۔ ٦٢- حم الزخرف۔
٦٣- حم الدخان۔ ٦٤- حم الجاثيه۔
٦٥- حم الاحقاف۔ ٦٦- الذاريات۔
٦٧- الغاشيه۔ ٦٨- الكهف۔
٦٩- النحل۔ ٧٠- النوح۔
٧١- ابراهيم۔ ٧٢- الانبياء۔
٧٣- المؤمنون۔ ٧٤- الم السجده۔
٧٥- الطور۔ ٧٦- الملك۔
٧٧- الحاقه۔ ٧٨- المعارج۔
٧٩- النبأ۔ ٨٠- النازعات۔
٨١- الانفطار۔ ٨٢- الانشقاق۔
٨٣- الروم۔ ٨٤- العنكبوت۔
٨٥- المطففين۔

مدنى سورتونه دا دى :

| | |
|---|---|
| ٨٦- البقره۔ | ٨٧- الانفال۔ |
| ٨٨-آل عمران۔ | ٨٩- الاحزاب۔ |
| ٩٠- الممتحنه۔ | ٩١- النساء۔ |
| ٩٢- الزلزال۔ | ٩٣- الحديد۔ |
| ٩٤- محمد۔ | ٩٥- الرعد۔ |
| ٩٦- الرحمن۔ | ٩٧- الدهر۔ |
| ٩٨- الطلاق۔ | ٩٩- البينه۔ |
| ١٠٠- الحشر۔ | ١٠١- النصر۔ |
| ١٠٢- النور۔ | ١٠٣- الحج۔ |
| ١٠٤- المنافقون۔ | ١٠٥- المجادله۔ |
| ١٠٦- الحجرات۔ | ١٠٧- التحريم۔ |
| ١٠٨- الجمعه۔ | ١٠٩- التغابن۔ |
| ١١٠- الصف۔ | ١١١- الفتح۔ |
| ١١٢- المائده۔ | ١٣- التوبه۔ |

پدے روایت کښ صریحی غلطی خو یوه دا ده چه سورة النصر په ترتیب نزولی کښ (١١٤) سورت دے او دے کښ (١٠١) یوسل یو شمار شو۔ صحیح ترتیب دا دے چه د الحشر نه روستو سورة النور نازل شوید ے۔

او النصر د سورة التوبه نه روستو نازل شوید ے۔

دویمه خطائی دا ده چه پدے کښ سورة نون د علق نه بعد دویم نمبر اُوشمارل شو، حال دا چه مخکښ ابحاثو نه معلومه شویده چه د بخاری په روایت کښ راغلی دی چه د سورة علق نه بعد وحی منقطع شوه او دوباره چه وحی شروع شوه نو بیا ابتدائی آیتونه (٥) د سورة المدثر نازل شول، لهذا د العلق نه بعد سورة المدثر نازل دے۔ نۀ سورة نون۔

دریمه خطائی دا ده چه پدے روایت کښ سورة الفاتحه نۀ ده ذکر شوے حال دا چه د دلائلو نه ثابته ده چه دا مکی سورت دے او د مکی دور په اوائلو کښ نازل شوید ے۔ دا درے واضحے غلطیانے دی او ممکن ده چه دا د کوم راوی نه د ترتیب نزولی د لیکلو په وجه سهواً واقع شوی وی۔

هم ددے روایت مطابق علامه مجد الدین الفیروز آبادیؒ متوفی (٨١٧هـ) په ((بصائر

ذوی التمییز فی لطائف الکتاب العزیز» کښې د ماوردیؒ او نیشاپوریؒ په حواله سره ترتیب نـزولـي نقل کړيدے او په هغے کښې سورة المائده د سورة التوبه نه روستو ذکر شويده غالباً چه دا به د کاتب غلطي وي۔

پـه دغه روايت د ابن ضريس کښې۔ ۱ – د عطاء الخراساني د ابن عباسؓ سره ملاقات نۀ دے شوے۔ لهذا دا روايت يـو مـنـقـطـع دے۔ ۲ – عـمـرو بن هارون تـه يحيى بن معين كذاب (دروغـجـن) وئيلے دے، ابـوزرعـه رازي، نسائي او دارقطني ورته متروك وئيلے دے۔ او امام احمدؒ وئيلي دي چه ما اګرکه ددۀ ډير حديثونه ليکلي دي ليکن عبد الرحمن بن مهديؒ په دۀ باندے جرح کړيده۔

[تهذيب الكمال ١٤/١٦٢-١٦٧]۔

اګرکـه د تـرمـذي او ابـن مـاجـه په راويانو کښې شامل دے او بخاري ورته مقارب الحديث وئيلے دے۔

۳ – دريـم پـدے کـښې عثمان بن عطاء الخراساني ضعيف راوي دے۔ چه دا په (۵۱ يا ۵۵) کـښې وفـات دے اصـل کـښې دا د بلخ اُوسيدونکے وو ليکن بيا ئے په بيت المقدس کښې قيام کـړے وو۔ نـو کله ورته مقدسي هم وئيلے شي۔ دۀ ته يحيى بن معين، امام بخاري، نسائي، ابـن خـزيـمه، ابو حاتم الرازي او دارقطني ضعيف وئيلے دے۔ [تهـذيـب الکمال و تقريب لابن حجر] ۔ نـو دا روايت مـنـقـطـع او ضـعيف الاسـنـاد دے لهـذا ددے روايت په بنياد باندے به مذکوره ترتيب نزولي ته قطعي او يقيني نشي وئيلے۔

پـدے باره کـښې بيهـقـي پـه دلائـل الـنبـوة کښې د حسـن بـصريؒ او عکرمةؒ نه هم روايت راوړيدے ليکن هغه مقطوع روايت دے چه د هيڅ صحابي نوم ئے پکښې نۀ دے اخستے۔

بله دا چه دغه روايت د ابن الضريس د روايت نه په اُوه فرقونو سره جدا هم دے۔ چه تقديم تـاخيـر پـکښې ډيـر زيات شـويـدے لهـذا دا تول ظني الثبوت روايت دے چه ددے نه صرف ترتيب نزولي ظني طريقے سره معلوميږي۔ والله اعلم۔

[راجع للتفصيل : الاتقان (۲۹/۱)، والبرهان وعلوم القرآن (۱۹۳/۱) للشيخ گوهر رحمان]۔

OOOOOOOOOOO

## ۳۹- بحث : معرفة الوحي :

[ د وحي تعارف او پيژندنه ]

دا هم یوه ضروري خبره ده چه مونږ اُوپيژنو چه وحي څه شے دے؟ او ددے څه حقيقت دے ؟ او ددے څه اقسام او څه کيفيات دي ؟- نو وايو چه :

الله تعالىٰ انسانانو ته د دنيا د څيزونو او د هغے د استعمال طريقے او بيا په هغے کښ د الله تعالىٰ د رضا لټولو دپاره درے څيزونه ورکړيدي چه دا درے واړه د علم ذريعے او آلے دي :

۱- يو ته حواس خمسه وئيلے شي لکه سترگے، غوږونه، خُله، پوزه او لاسونه او خپے دي (يعنى ټول بدن)-

۲- دويم عقل- ۳- او دريم وحي ده- نو ډير څيزونه او ډيرے خبرے انسانانو ته د خپلو حواسو په ذريعه معلوميږي او ډيرے خبرے د عقل په ذريعه-

او کومو خبروته چه دا دواړه ذريعے نشي رسيدلے نو هغه د وحي په ذريعه معلومولے شي- او دے درے واړو کښ داسے ترتيب دے چه بعض څيزونه صرف په عقل سره نشي معلوميدلے مثلًا ديوال تور والے سپينوالے صرف د سترگو په ليدلو سره معلوميدے شي، که څوك سترگے پټے کړي او صرف د عقل په ذريعه دا معلومول غواړي نودا هيڅرے نشي کيدے-

دغه شان بعض کارونه په عقل سره معلوميږي چه د هغے په معلومات کښ حواس کار نهٔ ورکوي لکه په يو ديوال يا کتاب ليدلو سره حواس دا فيصله نشي کولے چه دا چا جوړ کړيدے بلکه دا د عقل په سوچ سره معلوميږي چه ددے دپاره يو جوړونکے شته-

نو اوله مرتبه د حواسو ده بيا د عقل ده- او کله چه دا دواړه کار پريدي نو بيا د وحي ذريعه شروع شي- لکه مثلًا دا خبره معلومول چه په څيزونو کښ به د الله تعالىٰ رضا څنگه راځي او دا به د الله تعالىٰ د مرضئ مطابق څنگه استعمالولے شي- دا صرف په وحي سره معلوميږي لهذا وحي ډيره لويه مرتبه لري او د انسان دپاره د وحي انتهائي ضرورت دے- ځکه چه د انسان دپاره د هدايت موندل او د الله تعالىٰ د رضا حاصلول بغير د وحي نه ممکن نهٔ دي او د وحي ضرورت هر مؤمن او عقل والا پيژني ځکه چه الله تعالىٰ دا کائنات پيدا کړل بيا ئے پکښ دا انسان پيدا کړو او دا انسان ددے دنيا د څيزونو نه فائدے اخلي نو د

الله تعالیٰ د حکمت تقاضا دا ده چه الله تعالیٰ به دا انسان په دنیا کښې په تیَرو کښې نهٔ پریدی بلکه دهٔ ته به ضرور خپل مقصد ښکاره کوی چه اے انسانه ! ته دے دنیا ته د یو مقصد دپاره راغلے یئے، ستا په سر باندے به ضرور څه فرائض او ذمه واریانے وی نو هغه به ته پوره کوے بیا به خپل مقصد ته رسیږے چه هغه د الله تعالیٰ رضا او ددے په نتیجه کښې جنت او همیشه نعمتونه حاصلول دی۔ او دغه فرائض او ذمه واریانے د وحی او رسالت په نوم یادیږی لهذا ثابته شوه چه وحی یو عقلی ضرورت هم دے لکه څنگه چه دینی ضرورت دے۔ او ددے نه انکار کول د الله تعالیٰ د کامل ترین حکمة نه انکار دے۔

## الوحی لغة واصطلاحاً۔

### [د وحی لغوی او اصطلاحی معنی]

قرآن کریم او احادیث د رسول الله ﷺ وحی ده پدے وجه د وحی حقیقت او معنے لغوی او شرعی پیژندل ډیر مهم دی او د قرآنی او حدیثی علومونه یو علم دے۔

حافظ ابن حجرؒ وغیره علماء لیکی : [اَلْوَحْيُ لغةً : اَلْإِعْلَامُ فِيْ خَفَاءٍ]۔ (وحی په لغت د عربو کښې په پټه سره خبر ورکولو ته وئیلے شی) یعنی پټے طریقے سره یوه خبره خودل او چاته ئے خبر ورکول۔ ددے اسمی معنی ده : (هغه خبره چه په پټه سره خودلے شوی او معلومه کړے شوی وی)۔

وحی پدے معنیٰ سره د ښے خبرے خبر ورکولو ته هم وئیلے شی او بدے خبرے خبر ورکولو ته هم وحی وئیلے شی۔ او پدے عامه معنیٰ سره د وحی اطلاق په اشاره، کتابت، پیغام، الهام او خفی کلام باندے هم کیږی ځکه چه دا ټول څیزونه په خفیه طور سره رسیږی او په پټه سره پدے باندے علم راځی۔

لکه دا خبره علامه جوهری په صحاح کښې او علامه ابن منظور افریقی په لسان العرب کښې لیکلی ده :

[اَلْوَحْيُ : اَلْإِشَارَةُ وَالْكِتَابَةُ وَالرِّسَالَةُ وَالْإِلْهَامُ وَالْكَلَامُ الْخَفِيُّ وَكُلُّ مَا اَلْقَيْتَهٗ اِلٰى غَيْرِكَ ] [لسان العرب ماده وحی ۳۷۹/۱۵]۔

(د وحی معنیٰ ده اشاره کول/ خط لیکل، پیغام لیږل، په زړه کښې یوه خبره گوزارل۔ پټه خبره کول۔ او هر هغه خبره چه بل چا ته گوزار کړے شوی وی)۔

وحي په معنیٰ د کتابت (لیکلو) سره ددے مثال ابن دریدؔ دا راوړیدے : [یُقَالُ وَحٰی عَلَی الْحَجَرِ] [جمهرة اللغة ١/١٧١]۔

(وئیلے شي : وَحٰی علی الحجر یعني هغه په کاڼړی باندے خط اُولیکلو)۔

٣- وحي کلمه په معنیٰ د عجلت او سرعت (جلتئ) سره هم راځي۔ لکه ابن دریدؔ، جوهريؔ او افریقيؔ لیکلي دي : [اَلْوَحٰی اَلْوَحٰی یعنی اَلْبَدَارَ الْبَدَارَ وَالْوَحِيُّ عَلٰی فَعِیْلٍ السَّرِیْعُ یُقَالُ مَوْتٌ وَحِيٌّ]۔

(د الوحیٰ الوحیٰ معنی ده جلتي کوه جلتي کوه، وَحِي په وزن د فعیل په معنی د سریع یعنی تیزیٔ سره راتلونکے شے لکه د موت وَحِي معنی ده۔ تیزیٔ سره راتلونکے مرگ) ددے معنو نه معلومه شوه چه د وحي په معنی لغوی کښې درے څیزونه موجود دي :

١- اعلام۔ ٢- خفاء۔ ٣- سرعت۔

یعنی په تیزیٔ سره په خفیه او پټه سره خبره رَسَول برابره ده که د لاس یا د سترگو په اشارے سره وي یا په خط او پیغام لیږلو یا د پټے خبرے کولو په ذریعه سره وي یا په زړه کښې د ارتولو په ذریعه سره وي۔ د همدے مادے نه باب افعال هم اَوْحٰی یُوْحِيْ اِیْحَاءً راځي۔ او د ایحاء معنیٰ همدغه د وحي معنیٰ ده۔ او دا هم په قرآن کریم او لغت عربي کښې په شپږو معنو کښې استعمالیږي :

١- **الهام فطری :** ددے نه مراد دا دے چه په فطری او پیدائشي طور سره د یو کار صلاحیت او قابلیت د چا په طبیعت کښې کیخودل۔ لکه د شهدو مچیٔ ته د شهدو جوړولو طریقه خودل د هغے په فطرت او طبیعت او خلقت کښې کیخودل شویدي۔ لکه آیت کښې دي :

﴿ وَاَوْحٰی رَبُّكَ اِلَی النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِيْ مِنَ الْجِبَالِ بُیُوْتًا﴾ [النحل : ٦٨]۔

(او ستا رب الهام کړیدے د شهدو مچیٔ ته چه په غرونو کښې ځانله کوټه جوړه کړه) نو دلته د وحي نه مراد دا دے چه الله تعالیٰ د شهدو مچیٔ کښې دا صلاحیت ایخودے دے چه ځانله چلك جوړ کړي۔

٢- **حکم تکویني:** ددے نه مراد دا دے چه الله تعالیٰ یو څیز ته هغه حکم اُوکړي چه د هغے نه بغاوت او سر اړولو طاقت هغه ته حاصل نهٔ وي یعنی مثلاً د کن فیکون حکم۔ آیت کښې دي :

﴿ یَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ اَخْبَارَهَا بِاَنَّ رَبَّكَ اَوْحٰی لَهَا﴾ [الزلزال ٤،٥] ۔دلته وحي په معنیٰ د حکم سره

ده۔

**۳- الهام رحماني** : يعني د چا په زړه کښې د يو نيك كار باعث پيدا كړے شي او بغير د څه محنت او كوشش نه د هغه په زړه کښې نيكه خبره يا يو كار واچولے شي۔ لكه ﴿ وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى الْحَوَارِيّٖنَ اَنْ آمِنُوْا بِيْ وَبِرَسُوْلِيْ﴾ [المائده : ۱۱۱]۔ (او كله چه ما الهام اُوكړو حوارينو ته چه په ما او زما په رسولانو ايمان راوړئ)

مفسرين ددے معنىٰ كوى : (واذ قَذَفْتُ فِيْ قُلُوْبِهِمْ)۔ (يعني زړه کښې مے ورله واچوله)۔

﴿ وَاَوْحَيْنَا اِلَى اُمِّ مُوْسٰى اَنْ اَرْضِعِيْهِ﴾ [القصص ۷]۔

ددے نه معلومه شوه چه په زړه کښې كوم خيال واچولے شي كه دا د قرآن او سنت موافق وى نو ديته الهام رحماني وائي او په هغے باندے عمل كول داسے وى لكه په قرآن او سنت باندے عمل كول ليكن كه هغه خيال د قرآن او سنت خلاف وى نو هغے ته الهام شيطاني يا الهام نفساني وائي چه په هغے به عمل كول گناه وى۔ برابره ده كه دا الهام د عام انسان وى او كه د يو لوئى ولى الله وى څكه چه د شريعت مخالفت دليل دے چه دا شيطاني وسوسه ده۔

**٤- وحي الى الملائكه** : هغه براهِ راست حكم او پيغام چه الله تعالىٰ ئے ملائكو ته كوى۔ لكه ﴿ اِذْ يُوْحِيْ رَبُّكَ اِلَى الْمَلٰٓئِكَةِ اَنِّيْ مَعَكُمْ﴾ [الانفال : ۱۲] (كله چه وحى اُوكړه رب ستا ملائكو ته چه زه تاسو سره يم)۔

**۵- اشاره** : يعني اشارے سره يوه خبره خودل برابره ده كه د لاس اشاره وى او كه د سترگے او كه د سر وى۔ لكه : ﴿ فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰى اِلَيْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا﴾ [مريم : ۱۱]۔

(پس زكريا عليه السلام په خپل قوم راووتو د عبادت خانے نه او هغوى ته ئے اشاره اُوكړه چه پاكى بيانوئ د الله تعالىٰ صبا او بيگاه)۔

امام راغبؒ په مفردات ص (٤۹٦- كتاب الواو) كښې ليكى : دلته د وحى اشاره په لاس يا په سترگه يا په ليكلو سره درے واړه مراد كيدے شي۔

**٦- الهام شيطاني** : يعني وسوسه۔ ددے نه مراد هغه وسوسے او غلط خيالات دى چه شيطانان ئے د خلقو په زړونو كښې اچوى برابره ده كه انسى شيطانان وى او كه جنى وى لكه :﴿ وَاِنَّ الشَّيٰطِيْنَ لَيُوْحُوْنَ اِلٰٓى اَوْلِيٰٓـئِهِمْ لِيُجَادِلُوْكُمْ وَاِنْ اَطَعْتُمُوْهُمْ اِنَّكُمْ لَمُشْرِكُوْنَ ﴾ [الانعام : ۱۲۱]۔ (او يقيناً شيطانان خپلو دوستانو ته وسوسے اچوى دے دپاره چه تاسو سره جگړے

اُوکړه او که تاسو د دوی تابعداری اُوکړه نو یقیناً تاسو به مشرکان شئ)۔

## د وحی شرعی معنیٰ:

[هُوَ تَـكْلِيمُ اللّٰهِ سُبْحَانَهٗ وَاحِدًا مِنْ عِبَادِهٖ بِطَرِيْقَةٍ مِنْ طُرُقِ الْوَحْيِ] [لمحات فی علوم القرآن للدکتور محمد بن لطفی الصباغ ص (٤)]۔

(وحی : د الله تعالیٰ خبرے دی د یو تن د بندګانو سره په یوه طریقه د طریقو د وحی نه) چه هغه روستو راځی۔

حافظ ابن حجر العسقلانی رحمه الله فرمائی : [اَلْوَحْيُ شَرْعاً : اِعْلَامُ الشَّرْعِ وَقَدْ يُطْلَقُ الْوَحْيُ وَيُرَادُ بِهٖ اسْمُ الْمَفْعُوْلِ مِنْهُ اَيِ الْمُوْحٰى وَهُوَ كَلَامُ اللّٰهِ الْمُنَزَّلُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ] [فتح الباری باب بدء الوحی]۔

(وحی : په شریعت کښې د شرعی احکامو خبر ورکولو ته وئیلے شی لیکن ددے استعمال د اسم مفعول په معنیٰ کښې هم کیږی یعنی د الله تعالیٰ هغه کلام چه په نبی ﷺ باندے نازل شوے وی)۔

**علامه زرقانیؒ** فرمائی : [اَلْوَحْيُ فِيْ لِسَانِ الشَّرْعِ:اَنْ يُعلِمَ اللّٰهُ تَعَالٰى مَنِ اصْطَفَاهُ مِنْ عِبَادِهٖ كُلَّ مَا اَرَادَ اطِّلَاعَهٗ عَلَيْهِ مِنْ اَلْوَانِ الْهِدَايَةِ وَالْعِلْمِ، وَلٰكِنْ بِطَرِيْقَةٍ سِرِّيَّةٍ خَفِيَّةٍ، غَيْرِ مُعْتَادَةٍ لِلْبَشَرِ] [مناهل العرفان ٥١/١]۔

(وحی په شریعت کښې : دا ده چه الله تعالیٰ په بندګانو کښې غوره بنده ته د هغه خبرو خبردارے ورکړی د کوم اراده چه الله تعالیٰ کړیده چه هغه اقسام د هدایت او علم دی لیکن دا خبردارے ورکول به په خفیه او پټه طریقه سره وی چه د عامو انسانو د خبر ورکولو عادتی طریقے خلاف به وی)۔ چه د هغے دپاره خاص طریقے دی۔

0000000000

## ٤٠- بحث : د وحی د نزول کیفیات :

د وحی لغوی او شرعی معنیٰ ذکر کولو نه بعد دا خبره یادول ږکار دی چه رسول الله ﷺ باندے وحی په کوم کیفیت او طریقه نازله شویده ؟، دا یو واضحه حقیقت دے چه اصل کیفیت د وحی هغه څوك پیژندلے او محسوس کولے شی چه په چا باندے وحی نازله شوی وی او هغه صرف انبیاء علیهم السلام دی، عام بندګان صرف د هغے لفظی معلومات کولے شی۔

پدے بناء باندے قرآن کریم کښې هم د وحی بعض طریقے صراحةً ذکر شویدی او بعض ضمناً او اشارةً معلومیږی۔

لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا اَوْ مِنْ وَّرَاءِ حِجَابٍ اَوْ يُرْسِلَ رَسُوْلًا فَيُوْحِيَ بِاِذْنِهٖ مَا يَشَاءُ اِنَّهٗ عَلِيٌّ حَكِيْمٌ ﴾ [الشوریٰ : ٥١]۔

(هیڅ یو انسان له دا نشی کیدے چه الله تعالیٰ د هغه سره خبرے اُوکړی مګر د وحی په طوریا د پردے نه اخوا یا څوك پیغام رسان اُولیږی او هغه وحی اُوکړی د الله تعالیٰ په حکم سره څه چه الله غواړی یقیناً الله تعالیٰ اُوچت، حکمتونو والا دے)

د قرآن کریم ددے آیت نه د وحی اجمالی غټ اقسام معلوم شو چه د هغے بیان داسے دے :

**١ - الهام ربانی او القاء فی القلب** : یعنی الله تعالیٰ کله د یو نبی په زړه کښې الهام او القاء کوی برابره ده که د بیداریٔ په حالت کښې وی یا د خوب په حالت کښې وی۔ پدے صورت کښې به نهٔ ملائکو خبرے کولے او نهٔ به آواز آوریدلے شو بلکه په زړه کښې به یوه خبره اچولے شوه او نبی ﷺ به هغه په خپلو الفاظو سره صحابه کرامو ته فرمائیله او وحی خفی یعنی وحی غیر متلو اکثر په همدے طریقه باندے راغلے ده۔

**٢- دویم قسم : من وراء حجاب :**

یعنی نبی ﷺ به خبره آوریدله، آواز به راتلو لیکن خبرے کونکے به نهٔ ښکاره کیدو لکه څنګه چه موسیٰ ﷺ په کوه طور باندے د الله تعالیٰ کلام اوریدلے وو لیکن الله تعالیٰ ئے نهٔ وو لیدلے۔ یا لکه محمد رسول الله ﷺ د معراج په شپه د الله تعالیٰ کلام آوریدلے وو لیکن د جمهور صحابه کرامو په نیز الله تعالیٰ ئے په سترګو نهٔ وو لیدلے۔ دا هم د وحی غیر متلو قسم دے۔

**۳- دریم قسم : ارسال الملائکة :**

یعنی کله الله تعالیٰ د پیغام راوړونکی ملائك په ذریعه وحی اُوکړی۔ پدے صورت کښې به ئے ملائك هم لیدلو او د هغه آواز به ئے هم آوریدلو۔ اکثر اوقاتو کښې به ملائك په انسانی شکل کښې راتلو لیکن رسول الله ﷺ دوه ځله جبریل علیه السلام په خپل اصلی شکل کښې هم لیدلے وو۔ او ټول قرآن کریم ددے دریم قسم په طریقه نازل شویدے۔ لکه الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ ﴾۔ (دا قرآن پاك روح (جبریل) راوړیدے)۔

## د وحی د نزول تفصیلی کیفیات :

د مخکنی آیت د بنیادی اقسامو د وحی تفصیل علماء کرامو په خپلو مختلفو عباراتو سره کړیدے، پدے مقام کښې د حافظ ابن قیمؒ د کتاب زاد المعاد نه هغه تفصیلی کیفیات نقل کولے شی۔ هغه فرمائی :

[وكَمَّلَ اللّٰهُ لَهُ مِنْ مَرَاتِبِ الْوَحْيِ مَرَاتِبَ عَدِيْدَةً اَحَدُهَا الرُّؤْيَا الصَّادِقَةُ وَكَانَتْ مَبْدَأَ وَحْيِهٖ وَكَانَ لَايَرٰى رُؤْيَا اِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ۔ اَلثَّانِيَةُ : مَا كَانَ يُلْقِيْهِ الْمَلَكُ فِيْ رَوْعِهٖ وَقَلْبِهٖ مِنْ غَيْرِ اَنْ يَرَاهُ كَمَا قَالَ النَّبِيُّ ﷺ : اِنَّ رُوْحَ الْقُدُسِ نَفَثَ فِيْ رَوْعِيْ اَنَّهٗ لَنْ تَمُوْتَ نَفْسٌ حَتّٰى تَسْتَكْمِلَ رِزْقَهَا فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَجْمِلُوْا فِي الطَّلَبِ وَلَا يَحْمِلَنَّكُمْ اسْتِبْطَاءُ الرِّزْقِ عَلٰى اَنْ تَطْلُبُوْهُ بِمَعْصِيَةِ اللّٰهِ فَاِنَّ مَا عِنْدَ اللّٰهِ لَايُنَالُ اِلَّا بِطَاعَتِهٖ۔ اَلثَّالِثَةُ : اَنَّهٗ كَانَ يَتَمَثَّلُ لَهُ الْمَلَكُ رَجُلًا فَيُخَاطِبُهٗ حَتّٰى يَعِيَ عَنْهُ مَا يَقُوْلُ لَهٗ وَفِيْ هٰذِهِ الْمَرْتَبَةِ كَانَ يَرَاهُ الصَّحَابَةُ اَحْيَانًا۔ اَلرَّابِعَةُ : اَنَّهٗ كَانَ يَأْتِيْهِ فِيْ مِثْلِ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ وَكَانَ اَشَدَّهٗ عَلَيْهِ۔ اَلْخَامِسَةُ : اَنَّهٗ يَرَى الْمَلَكَ فِيْ صُوْرَتِهِ الَّتِيْ خُلِقَ عَلَيْهَا فَيُوْحِيْ اِلَيْهِ مَا شَاءَ اللّٰهُ اَنْ يُوْحِيَهٗ وَهٰذَا وَاقِعٌ لَهٗ مَرَّتَيْنِ كَمَا ذَكَرَ اللّٰهُ فِيْ سُوْرَةِ النَّجْمِ۔ اَلسَّادِسَةُ : مَا اَوْحَاهُ اللّٰهُ وَهُوَ فَوْقَ السَّمٰوٰتِ لَيْلَةَ الْمِعْرَاجِ مِنْ فَرْضِ الصَّلٰوةِ وَغَيْرِهَا۔ اَلسَّابِعَةُ : كَلَامُ اللّٰهِ لَهٗ بِلَا وَاسِطَةِ مَلَكٍ كَمَا كَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسَى بْنَ عِمْرَانَ وَهٰذِهِ الْمَرْتَبَةُ ثَابِتَةٌ لِمُوْسٰى قَطْعًا بِنَصِّ الْقُرْاٰنِ وَثُبُوْتُهَا لِنَبِيِّنَا ﷺ هُوَ فِيْ حَدِيْثِ الْاِسْرَاءِ وَقَدْ زَادَ بَعْضُهُمْ مَرْتَبَةً ثَامِنَةً وَهِيَ تَكْلِيْمُ اللّٰهِ لَهٗ كِفَاحًا مِنْ غَيْرِ حِجَابٍ وَهٰذَا عَلٰى مَذْهَبِ مَنْ يَقُوْلُ اِنَّهٗ رَاٰى رَبَّهٗ تَعَالٰى وَهِيَ مَسْئَلَةُ خِلَافٍ بَيْنَ السَّلَفِ وَالْخَلَفِ وَاِنْ كَانَ جُمْهُوْرُ الصَّحَابَةِ بَلْ كُلُّهُمْ مَعَ عَائِشَةَ كَمَا حَكَاهُ

عُثْمَانُ الدَّارِمِیُّ اِجْمَاعًا لِلصَّحَابَةِ].

[زاد المعاد فی هدی خیر العباد ۷۸/۱) طبع بیروت].

(الله تعالیٰ د محمد ﷺ دپاره د وحی د مراتبو (کیفیاتو) نه ډیر مراتب پوره کړیدی :

**۱- اوله مرتبه او کیفیت : الرؤیا الصادقة** : (رشتینی خوبونه لیدل) چه ددې نه د وحی ابتداء شوې وه. رسول الله ﷺ چه به کوم خوب لیدلو نو هغه به د صبا د رڼا په شان مخې ته راتلو.

**۲- دویمه مرتبه : نفث الملک فی قلب الرسول** : دویم مرتبه دا وه چه ملائك به د رسول الله ﷺ په زړه کښې یوه خبره اچوله لیکن رسول الله ﷺ به هغه نهٔ لیدلو، لکه نبی ﷺ فرمائیلی دی : چه بې شکه جبریل زما په زړه کښې دا خبره واچوله چه « هیڅ یو شخص به تر هغه وخت پورې مړ نشی ترڅو چه خپل رزق پوره نکړی، پس تاسو د الله تعالیٰ نه یره اُوکړئ او په حلاله ذریعه سره رزق تلاش کړئ، د رزق تاخیر دې تاسو پدې باندې آماده نکړی چه تاسو د الله تعالیٰ د نافرمانئ په ذریعه رزق طلب کړئ ځکه چه څه چه د الله تعالیٰ سره دی هغه د الله تعالیٰ په اطاعت سره ملاویدې شی». (دا حدیث مسند بزار کښې د حذیفه بن یمان نه نقل شویدې. د شواهدو د وجه نه صحیح دې لکه هغه شواهد ابن ماجه، امام حاکم، ابونعیم الاصفهانی په حلیة الاولیاء (۳/ ۱۵٦) کښې راوړیدی او دې حدیث ته عرفان توفیق په صحیح کنوز السنة النبویة ۱/ ۳۳) رقم الحدیث (۲۷) کښې صحیح وئیلې دې. [وصححه الالبانی فی سنن ابن ماجه وصحیح الترغیب].

**۳- مرتبه او کیفیت : ان یتمثل الملک** : (چه ملائك انسانی شکل اختیار کړی او راشی د رسول الله ﷺ سره خبرې اترې اُوکړی تردې چه رسول الله ﷺ ئې بنه یاد کړی. پدې صورت کښې به په بعض اوقاتو کښې جبریل لره صحابه کرامو هم لیدلو. لکه په حدیث د جبریل کښې راغلی دی.

**٤- مرتبه : الوحی مثل صلصلة الجرس :**

د ټلیږ د آواز په شان به ئې آواز آوریدلو او پدې طریقه وحی به په رسول الله ﷺ باندې ډیره سخته وه.

**۵- مرتبه : الوحی فی صورة الملک الاصلیة** : (یعنی کله به رسول الله ﷺ ملائك په خپل اصلی شکل کښې لیدلو. او پدې حالت کښې به ملائك هغه وحی رَسوله کومه

چه به الله تعالیٰ غوختله. او دا د رسول الله ﷺ دپاره دوه کرته واقع شویده لکه په سورة النجم کښې ذکر دی.

٦- **مرتبه : الوحی لیلة المعراج** : (شپږمه مرتبه د وحی هغه ده چه کومه د معراج په شپه کښې شوې وه د مانځه د فرضیت وغیره په باره کښې، کله چه رسول الله ﷺ آسمانونو ته ختلې وو.

۷- **مرتبه : کلام الله بلا واسطة ملک** : (اُوومه مرتبه دا ده چه د ملائك د واسطې نه بغیر الله تعالیٰ د خپل نبی سره خبرې اترې اُوکړی لکه څنګه ئې چه موسی ؑ سره په کوه طور کښې کړې وې. دا مرتبه خو موسی ؑ دپاره د قرآن په قطعی نص سره ثابته ده او زمونږ نبی ﷺ دپاره په حدیث د اسراء کښې ثابته ده.

بعض علماؤ اتمه مرتبه هم ذکر کړیده او هغه دا چه الله تعالیٰ بغیر د پردې نه مخامخ د رسول الله ﷺ سره خبرې اُوکړی. دا مرتبه د هغه علماؤ په مسلك بناء ده چه دا وائی چه رسول الله ﷺ د معراج په شپه الله تعالیٰ بذات خود لیدلے دے لیکن دا د سلفو او خَلَفو ترمینځ یوه اختلافی مسئله ده اګرکه جمهور صحابه کرام بلکه ټول صحابه کرام د عائشې رضی الله عنها د رائې سره متفق دی. (چه په سترګو ئې نهٔ دے لیدلے) لکه عثمان بن سعید دارمیؒ رحمه الله پدې باندې د صحابه کرامو اجماع نقل کړیده) آه.

بعض علماؤ وئیلی دی چه د ابن قیم رحمه الله اُوه قسمونو د وحی کښې شپږم او اُووم قسم ترمینځ په ظاهره کښې څه فرق نهٔ ښکاره کیږی لیکن کیدے شی چه د ابن قیمؒ د تحقیق مطابق د معراج په شپه دوه قسمه وحی شوی وی یو القاء فی القلب بلا واسطة ملك. او بغیر د کلام د آوریدلو نه. یعنی داسې ممکن ده چه الله تعالیٰ د معراج په شپه د ملائك د واسطې نه بغیر ورته په زړه کښې خبره اچولی وی. او دویم قسم دا چه کلام ئې آوریدلے وی بغیر د واسطې د ملائك نه.

او د ابن قیمؒ دا تفصیلی اقسام ذکر کول د دغه مخکنی آیت تفصیل دے څکه چه اول، دویم، څلورم او شپږم نمبر ذکر شوی صورتونه د قرآن د درې صورتونو نه د اول قسم یعنی اِلَّا وَحۡیًا په عموم کښې داخل دی. دریم او پنځم نمبر ذکر شوی صورتونه په دریم قسم یعنی (اَوۡ یُرۡسِلَ رَسُوۡلًا) کښې داخل دی او اُووم صورت په دویم قسم یعنی (من وراء حجاب) کښې داخل دے.

د رشتینی خوبونو سلسله په غار حراء کښې د وحی د نازلیدو نه شپږ میاشتې مخکښې د

ربيع الاول پـه ميـاشت كـښې شروع شوې وه او د وحي ابتداء د همدې رؤيائې صادقـه (رشتينـي خوبونو) نه شوې وه لكه د صحيح بخاري د باب الوحي د دريم حديث د عائشې نه ثابته ده:

[اَوَّلُ مَابُدِءَ بِهٖ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ مِنَ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ فِى النَّوْمِ]۔

(د وحي د اقسامو نـه اول قسم چه پـه هغې سره په رسول الله ﷺ باندې د وحي ابتداء شوې وه هغـه نيك او رشتينـي خـوبـونـه وو چه رسول الله ﷺ به د خوب په حالت كښې ليدل)۔

حـافـظ ابـن حـجرؒ ددې وجـه - چـه د خوب نه ابتداء ولې اُوشوه ؟ دا بيانوي : [وَبُدِءَ بِذٰلِكَ لِيَكُوْنَ تَمْهِيْدًا وَتَوْطِئَةً لِلْيَقْظَةِ ثُمَّ مَهَّدَ لَهٗ فِى الْيَقْظَةِ اَيْضًا رُؤْيَةُ الضَّوْءِ وَسَمَاعُ الصَّوْتِ وَسَلَامُ الْحَجَرِ]

[فتح البارى باب بدء الوحى ١/٢٥]۔

(نيك اُو رشتينـي خوبونونه د وحي ابتداء پدې وجه اُوشوه چه دا د بيدارئ په حالت كښې د وحي تمهيد او تيارى ثابته شي)

يعني رسول الله ﷺ د وحي بوج پورته كولو ته تيار كړې شي او د هغې سره اموخته كړې شي) ددې نـه روستـو دا تمهيد (يعني د وحي د برداشت تيارى) د بيدارئ په حالت كښې هم شـروع شـوه چـه رڼړا به ئې ليدله او آوازونه به ئې آوريدل او د كاڼړو سلام اچول په نبي ﷺ باندې)۔

**فائده** : د وحيَ پـه صـورتونو كښې په څلورم صورت كښې د صلصلة الجرس ذكر راغلو يعـنـي د تلئ د آواز په شان به راتله نو آيا پدې صورت كښې به ملائك هم راتلوخو ليدلې كيدو به نهٔ او كه نهٔ ملائك به ورسره موجود نهٔ وو ؟ نو د بدء الوحي په باب كښې خو ورسره د مـلائك ذكر نـهٔ دې مـوجود ليكن د كتاب بدء الخلق باب ذكر الملائكه كښې راغلى دى چه :[يَاْتِيْ الْمَلَكُ اَحْيَانًا فِيْ مِثْلِ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ] ۔ (كـلـه بـه ملائك د تلئ د آواز په شكل كـښې راتـلـو) د تلئ د آواز سره تشبيه صرف په تسلسل او تيزئ كښې ده يعنى ترڅو چه به وحي ختـمـه شـوې نـهٔ وه نـو آواز بـه مسلسل او په تيزئ او شدت سره آوريدلې كيدو، په مينځ كښې به وقفه نهٔ وه، او پدې آواز سره به د رسول الله ﷺ په زړه د الله تعالىٰ كلام ثبت شو تـردې چـه كله به آواز بند شو نوڅه چه به وئيلې شوى وو هغه به تول په تولـه د رسول الله ﷺ په زړه كښې محفوظ شو۔

او ددې صـورت پـه نبي ﷺ بـانـدې د سخت كيدو وجه حافظ ابن حجرؒ داسې بيان كړېده

چه (د تـلـئ د آواز پـه شـان راتلونکې خبره فهمول د هغه خبرې د فهمولو نه زياته مشکل وي کوم چه د يو شخص سره د خبرو اترو په معروفه طريقه سره وي۔
ددې وجـه دا ده چه عادتاً د خبرې کونکي او آوريدونکي ترمينځ مناسبت ضروري وي۔ او دا مناسبت دلته خو يا داسې کيدې شي چه په مخاطب باندې روحانيت غالبه شي او هغه د لـوازمـو د بشـريـت نـه څـه حـد پورې مجرد شي او د متکلم يعنې د ملائك په صفت سره متـصف شي او دا اولـنـئ طريقه ده چه سخته ده يعنې صلصلة الجرس۔ او يا پدې طريقه کيدې شي چه متکلم د مخاطب په صفت سره متصف شي چه بشريت دې نو دا دويمه نـوعـه ده يـعـنـې (تـمـثـل مـلك) چه ملائك په انساني شکل شي۔ او ظاهره ده چه اولنۍ صورت کښې فهم د دويم صورت په مقابله کښې زيات مشکل دې»۔
پاتې شوه دا خبره چه دا آواز د ملائك وو او که د وحې آواز وو؟ نو پدې کښې دواړه احتماله شته، د حافظ ابن حجرؒ او بعض نورو سلفو او خلفو رجحان دا دې چه دا د وحې آواز وو ليکن راجح دا ده چـه دا مـجـمـل پريخودې شي ځکه بندګان ددې په حقيقت باندې نهٔ دي پو هه او لـکـه څـنـګه چه د سلفو مذهب په باب د صفاتو او اسماؤ د الله تعالىٰ کښې دا دې چه هغه به ګـمَـا يَـلِـيْـقُ بِشَانِهٖ منلې شي يعنې لکه څنګه چه د الله تعالىٰ د شان مناسب وي چه د هغې په حـقـيـقـت بـانـدې بـنـدګـانـو تـه علم نهٔ دې ورکړې شوې نو دغه شان د وحې په باب کښې هم بندګانو ته دا علم نشته چه دا آواز د ملائك دې او که د وحې دې ځکه په احاديثو کښې دواړو ته نسبت شويدې۔
لـکـه بعض رواياتو کښې داسې الفاظ دي: [اَحْيَانًا يَأْتِيْنِیْ فِیْ مِثْلِ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ] ۔ نو پدې کـښې ضـمـيـر راجع دې وحې ته يعنې دا وحې په شان د آواز د تلئ وه لکه دا قول حافظ ابن حجرؒ راجح کړيدې۔ ليکن بل طرفته د بخارى په کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة کښې داسې الفاظ هم وارد دي: [يَأْتِی الْمَلَكُ اَحْيَاناً فِیْ مِثْلِ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ]۔ (ملائك د تلئ د آواز پـه شان راځي) لهذا معلومه شوه چه ددې حقيقت مونږ بندګانو ته نهٔ دې معلوم۔ چه دا د مـلائك آواز دې او کـه د وحې خـو ظـاهـر دا مـعـلـوميږي چه دا د هغه وحې آواز دې چه ملائك ئې راوړي نو پدې وجه ملائك ته هم نسبت شويدې۔ والله اعلم۔
بيا د مـلائك د راتـلـو ډيـر صـورتـونـه دي (۱) کـلـه بـه رسول الله ﷺ ته هغه په حقيقي مَلَکِي صورت کښې ښکاره کيدو۔
(۲) – او کـلـه بـه د انسـان په شکل کښې راتلو چه حاضرينو به ليدلو او د هغه خبرو ته به

ئے غوږ کیخودو۔

(۳) - او کله به په رسول الله ﷺ باندے پټ راتلو چه په سترگو به نشو لیدلے کیدے لیکن په رسول الله ﷺ باندے به تغیر او تاثیر ښکاره کیدلو نو په ویښه به ئے داسے خړارے شروع کړلو لکه څنگه ئے چه اُوده انسان کوی او داسے به غائب شو گویا کښې په هغه باندے بے هوشی او غشیه طاری وه او حال دا چه په واقع کښې به هیڅ بے هوشی نۀ وه بلکه د ملائك په ملاقات کښې به روحانی طریقے سره مستغرق شو او د بشری عادی حالت نه به اُووتلو نو پدے سره به د رسول الله ﷺ په جسم مبارك باندے اثر اُوشو نو هغه به خړارے شروع کړو یا به پرے داسے ثقل او بوج راغلو چه په سخته یخه ورځ کښې به هم د هغه د تندی نه خولے روانے شوے۔

(٤) - او کله به حاضرینو د رسول الله ﷺ مخے ته یو داسے آواز آوریدو گویا کښې د مچو بنگارے دے لیکن حاضرین به د هغه په کلام نۀ پوهیدل چه څه وائی او رسول الله ﷺ به هغه آوریدو او د کومے خبرے وحی چه به ورته اُوشوه نو هغه به ئے یاده کړه او یقینی طور سره هغه ته دا معلومه وه چه دا د الله تعالیٰ د طرف نه وحی ده او پدے کښې هیڅ شك او شبهه نۀ وه او کله چه به د هغه نه وحی اُودریده نو کومه وحی چه به ورته شوے وه هغه به ئے په ذهن کښې حاضره وه او د هغه په حافظه کښې به داسے لیکلے شوے وه گویا کښې د هغه په زړه کښې په قلم سره لیکلے شویده۔

(٥) - او کله به تهلیئ د آواز په شکل وه چه په اول الوهلة کښې به د هغے معلومات نۀ کیدو ـ [مناهل العرفان ۱/ ٥۲]۔

oooooooooo

## ٤١- وحی او جدید علمی تحقیق :

وحی د الله تعالیٰ او د هغه د رسول ترمینځ یوه پټه رابطه وی چه د هغے اصل حقیقت او کیفیت صرف نبی پیژندے شی چه هغه ته د معلوماتو او پیغاماتو رارسیدلو یوه خاص او پټه ذریعه وی، چه دا رابطه د انسان په مصنوعی روابطو باندے نشی قیاس کیدے۔ لیکن بیا هم که ماده پرست، دهریه او عقل پرست خلق ددے نه انکار کوی نو عقل ته د

نزدے کولو دپاره شیخ محمد عبد العظیم زرقانیؒ په کتاب مناهل العرفان فی علوم القرآن کښې د وحی یو مثال راوړیدے چه د هغے خلاصه دا ده :

[اَلتَّنوِيُمُ الصِّنَاعِيُّ اَوِ التَّنوِيُمُ المِغنَاطِيسِيُّ وَهُوَ مِنَ المُقَرَّرَاتِ العِلْمِيَّةِ الثَّابِتَةِ كَشَفَهُ الدُّكتُورُ مِسْمَر الاَلْمَانِيُّ فِي القَرْنِ الثَّامِنِ عَشَرَ وَجَاهَدَ هُوَ وَاَتبَاعُهُ مَدىٰ قَرْنٍ كَامِلٍ فِي اِثْبَاتِهِ وَحَمْلِ العُلَمَاءِ عَلَى الاِعتِرَافِ بِهٖ وَقَدْ نَجَحُوا فِي ذٰلِكَ فَاعتَرَفَ العُلَمَاءُ بِهٖ عِلْمِيًّا بَعْدَ اَنِ اختَبَرُوا بِهِ الآلَافَ المُؤَلَّفَةَ مِنَ الخَلْقِ] [مناهل ]۔

(په مصنوعی طور سره په چا باندے خوب راوستل یا تنویم مقناطیسی هغه عمل دے چه یو مسلمه علمی حقیقت جوړ شویدے چه ددے انکشاف د المانیه یو ډاکټر مِسمر (ولادت ۱۷۳۳ وفات ۱۸۱۵) د اتلسمے صدی عیسوی کښې کړے وو۔

ده او دده تابعدارو پوره یو صدیٔ پورے ددے حقیقت ثابتولو او سائنسدانانو لره ددے په اعتراف باندے آماده کولو دپاره خپل کوششونه جاری کړل تردے چه دا په خپلو کوششونو کښې کامیاب شو او سائنسدانانو په زرګونو خلقو باندے ددے د تجربه کولونه بعد په علمی طور باندے ددے قائل شو)۔

ډاکټر مسمر د مصنوعی او مقناطیسی علمِ تنویم بانی یادیږی او مسمریزم علم دهٔ ته منسوب دے۔

مسمریزم علم اګرکه ددے په حقیقت باندے مونږ نهٔ پوهیږو لیکن اجمالی حقیقت او قدر مشترك دا دے چه دا د تسخیر یو داسے عمل دے چه د هغے په ذریعه یو انسان نورو انسانانو لره مسخر کولے شی او خپل خیالات او افکار د هغه په زړه او دماغو کښې اچولی شی۔ زرقانیؒ ددے عمل د سترګو لیدلو یوه واقعه ذکر کړیده فرمائی :

((دا تجربه جمعیت شبان المسلمین د زیر اهتمام په یو مجلس کښې اُوکړے شوه (په سنه ۱۳۵۱ هـ) چه په هغے کښې د تعلیم یافته خلقو یو غټ تعداد موجود وو، درمیانه درجے استعداد والا یو ځوان راوستے شو۔ د تنویم مقناطیسی یو ماهر استاذ د هغه ځوان په سترګو کښې سترګے ورکړے او زور نظرئے ورته اُوکړو او خپل خاص عمل ئے شروع کړو نو لږ وخت لا تیر شوے نهٔ وو چه هغه ځوان د اوده شخص په شان خنراړے شروع کړو د هغه رنګ بدل شو او جسم ئے بے حس اُوده شو تردے چه زمونږ نه دوه درے کسانو ډیر کرته د هغه په بدن کښې ستنه خخه کړه لیکن هغه هیڅ حرکت اُونکړو او زمونږ یقین

راغلـو چه دا په مصنوعي خوب سره اُوده شویدے۔ پدے حالت کښې استاذ په هغه باندے تسلط حاصل کړو او د هغه نه ئے تپوس اُوکړو چه ستا نوم څه دے ؟ هغه خپل اصلي نوم اُوخودلو، استاذ اُووئیل : نۀ ستا نوم دا نۀ دے بلکه دا دے او یو بل نوم ئے ورته اُوخودلو۔

ددے نـه بـعد دا نوے نوم ئے د هغه په ذهن کښې اچولو او خپل زوړ نوم ئے د هغه د ذهن نه ورانولو تردے چه هغه ځوان د هغه خبره اُومنله۔ ددے نه بعد استاذ هم او مونږ هم چه کله هغـه ځـوان پـه زوړ نوم سره رابللو نو هغه به هیڅ جواب نۀ ورکولو او چه کله به مو نوی نـوم سره رابللو نو هغه به جواب ورکړو۔ ددے نه بعد استاذ هغه ته اُووئیل چه دا نوے نوم بـه یاد لـری او د بیـداریـدو نه تر نیمے گینټے پورے به دا نوم یاد وی او بیا استاذ هغه رابـیدار کـړو لیکن کله چه مونږ هغه په خپل زوړ نوم سره یاد کړو نو هیڅ جواب ئے ورنکړو او کله چه به مو نوے نوم ورته یاد کړو نو جواب به ئے ورکړو، کله چه مقرره نیمه گینټه تیره شوه نو بیا هغه ځوان خپل مخکنی اصلي حالت ته راغلو او خپل اصلي نوم ورته رایاد شو۔ دا تجربه چه کله مونږ په خپلو سترگو سره اُولیدله او په غوږونو سره مو واوریدله نو د وحی حقیقت زما عقل ته نور هم نزدے شو))۔

د مـلائک پـه ذریعه د وحی نازلیدل په اصل کښې د ملائک او د رسول ترمینځ په یو اتصال او ربط باندے بناء وی چه په هغے کښې ملائک د رسول په زړه او دماغو باندے اثر غورزوی او رسـول د هغـه نـه اثر قبلوی او دا په دواړو کښې د تاثیر او تأثر د یو حاص استعداد په وجه سره ظاهریږی۔ پـه مـلائک کـښې د القاء او تاثیر قوت وی، ځکه چه هغه خالص روحانی مـخلوق دے او رسول کښې د پیغام حاصلولو قابلیت وی ځکه چه د هغه روحانیت صفا او پـاکیـزه وی۔ نـو کله چه د ملائک په رسول باندے تسلط راشی او د هغه سره ئے تعلق قائم شـی نـو رسول د خپل معتاد (نارمل) حالت نه اُوځی، په هغه باندے د بدل حالت آثار ظاهر شی، نو هغه د ملائک نه د وحی په حاصلولو او زده کولو کښې پوره طریقے سره مستغرق او متوجه شی او څه چه هغه د ملائک نه اخستی وی نو هغه د هغه په زړه باندے نقش او طبع شی تردے چه کله هغه خپل اصلي حالت ته راواپس شی نو څه چه هغه زده کړی وی نو هغه د خپل زړه په صفحه باندے لیکلے شوی اُومومی۔

نـو آیـا تـه دا گـمـان کـوے چه مخلوق دا طاقت لری چه هغه د بل مخلوق په نفس کښې د تـنـویـم مـقـنـاطیـسـی عـمـل په ذریعه اثر اچولے شی لیکن د قوتونو او صلاحیتونو خالق (نعـوذ بـالله) بـه دا طـاقـت او قـدرت نۀ لری چه هغه به د خپلو بندگانو نه د یو بنده په زړه

کښې د وحی په ذریعه یو پیغام واچوی او هغه متأثر کړی۔ هرګز داسې نۀ ده بلکه الله تعالیٰ چه څه اُوغواړی کولے شی۔

[مناهل العرفان: ۱/۵۵] ۔

(۲) - دارنګه بل دلیل د وحی دپاره دا هم دے چه جدید علومو په ذریعه څو مره عجائب مخلوقات پیدا شو چه هغه مونږ وینو او فائده ترے اخلو لکه ټیلفون، موبائل، میکروفون، ریډیو، ټی وی۔ وغیره ذرائع چه دا آوازونه کوی یو انسان پدے کښې آوازونه بند کړی وی او بیا چه کله غواړی د هغے نه آواز راویاسی سره ددے نه چه دا جامد جاهل څیزونه دی او مختلف قسمه رنګونه، آوازونه خبرے بلکه قرآن او احادیث په کښې اچولے شوی وی او ته ترے فائده اخلے نو هرکله چه انسان داسے تاثیر کولے شی (چه دا هم په حقیقت کښې د الله تعالیٰ تاثیر دے) نو د خالق کائنات په حق کښې دا خبره خو ډیره ډیره معمولی ده !!۔او دا خبره د ډیر وضاحت د وجه نه بیان ته محتاجه نۀ ده۔

لهذا کوم خلق چه د وحی نه انکار کوی لکه مشرکان او ماده پرست دهریه نو د هغے وجه دا نۀ ده چه ګنے وحی په یو بنده باندے راتلل عقلًا محال او بعید دی بلکه ددے وجه او سبب صرف او صرف د خپلو مشرانو او آباء او اجدادو روند تقلید وو، بل هیڅ دلیل ورسره نۀ وو چه هغه پیش کړی چه په بنده وحی په دے دلیل سره نشی راتلے، ځکه چه مشرکینو به د ستورو، د ارواحو، د جناتو او ملائکو عبادتونه کول نو دا ورته د عقل نه بعیده او لرے خبره نۀ ښکاره کیده خو په یو انسان باندے وحی راتلل ورته د عقل نه لرے خبره ښکاره کیده او تعجب به ئے کولو چه په بنده باندے څنګه وحی راشی۔ حال دا چه د وحی په ضروری کیدو باندے خپله انسانی عقل ګواهی ورکوی۔

څوك چه الله تعالیٰ حاکم او مقتدر اعلیٰ منی او الله تعالیٰ په هر شی باندے قادر ګنړی نو هغه به هیڅ کله د وحی د راتلو نه انکار او تعجب اُونکړی، بلکه عجیبه خبره خو دا ده چه عام انسانان دا منی چه کائنات الله تعالیٰ د نشت نه شته کړیدی او دیته ئے عجیب وجود ورکړیدے او دا د الله تعالیٰ د قدرت کارنامه ګنړی لیکن د پیغام رسولو یوه خفیه نظام قائمول ناممکن او بعید ګنړی، ددے نه اخوا به بل کوم جهالت او بے عقلی وی چه الله تعالیٰ خالق، مالك، حاکم او قدیر او علیم منی لیکن د وحی د رالیږلو او د احکامات او هدایاتو د رسولو خفیه نظام ناممکن او بعید ګنړی او د هغے نه انکار کوی او حال دا چه هغه عقل ته قریب هم دی۔ خو ددے اصل سبب تقلید الآباء دے او پدے سره بغیر د سوچ او

فکر نه د واقعي څیز نه انکار کول دي۔

## ٤٢- البحث : قصص الانبیاء او قصص القرآن ۔

### [د انبیاؤ قصې او قرآني قصې]

قِصَص په کسره د قاف سره جمع د قِصَّةٌ ده۔

او قصه : [اَلْخَبَرُ عَنْ حَادِثَةٍ غَائِبَةٍ عَنِ الْمُخْبِرِ بِهَا] هغه خبر ته وئیلې شي چه واقع شي په داسې زمانه کښې چه د خبر ورکونکي نه غائب وي)

نو په قرآن کښې هغه قصې نشته کومې چه په زمانه د نزول د قرآن کښې راپیښې شویدي لکه د مسلمانانو حالات د دشمنانو سره۔

په قرآن کریم کښې د قصې او د تیر شوي امتونو واقعات بیانولو مقصد صرف دا نهٔ دې چه د قصې نه صرف عبرت او نصیحت واخستې شي او نهٔ دا مقصد دې چه قصه کښې د کومو خلقو تذکره شویده د هغې تعظیم یا تقبیح اُوکړې شي بلکه دا د کوتاه خلقو کار دې۔ بلکه د قصو غرض ډیر اُوچت وي، په قصو کښې د امت دپاره ډیر عبرتونه او فوائد پراته وي۔ دا وجه ده چه قرآن کریم کښې په هر مقام کښې د قصې اشرف او اُوچت ځایونه راخستې شوي وي او هسې د تفکه او مزې اخستو دپاره پوره قصه نهٔ ذکر کوي، بلکه هر مقام کښې د هغې مناسب ځایونه راخلي او پرله پسې پوره قصه غالباً نهٔ ذکر کوي بلکه مقصود په هغې کښې ذکر او موعظه وي د دین والو دپاره، او ددې وجه نه قرآن کریم د قصو په نقل کولو کښې ډیر ایجاز کړې وي او مقصدي مواضع پکښې ذکر کوي، نو کله ناکله مقصد او نتیجه د قصې په ابتداء کښې ذکر کړي او بیا روستو معمولي شان مناسب تفصیل اُوکړي۔ ځکه د قرآن لکه څنګه چه په قصو کښې مقصد تذکیر او وعظ او نصیحت وي نو دغه شان مقصد په کښې تربیت د امت مسلمه وي او بیان د احکامو د دین وي لکه چه روستو راځي۔

په قرآن کریم کښې الله تعالیٰ حکایات او قصې د پخوانو امتونو ذکر کړیدي پدې کښې بې شماره فائدې دي چه د هغې پوره علم الله تعالیٰ ته دې مګر بعض فوائد چه علماؤ ذکر کړیدي هغه داسې دي :

۱- امام ابو العباس احمد بن زروقؒ په قواعد التصوف کښې لیکلي دي (چه علامه

قاسمی ترے په مقدمه د تفسیر کښې نقل کړیدی چه ) : [اَلتَّاثِیْرُ بِالْاِخْبَارِ عَنِ الْوَقَائِعِ اَتَمُّ لِسَمَاعِهَا مِنَ التَّاثِیْرِ بِغَیْرِهَا فَمِنْ ثَمَّ قِیْلَ : اَلْحِکَایَاتُ جُنْدٌ مِنْ جُنُوْدِ اللّٰهِ یُثَبِّتُ اللّٰهُ بِهَا قُلُوْبَ الْعَارِفِیْنَ]۔ (د تیر شوو واقعو بیان ته خلق ډیر متوجه کیږی نو ددے وجه نه ددے تاثیر د نورو څیزونو په نسبت زیات وی دا وجه ده چه وئیلے شویدی چه قصے د الله تعالیٰ د لښکرو نه یو لښکر دے چه پدے سره الله تعالیٰ د عارفینو خلقو زړونه مضبوطوی)۔

او ددے شاهد په قرآن کریم کښې ذکر دے : ﴿ وَكُلًّا نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنْبَاءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ﴾ [هود : ۱۲۰]۔

(مونږ تاته دا ټول خبرونه د رسولانو بیانوو چه په دے سره ستا زړه مضبوطوو) نو یو مقصد په قصه کښې د داعی زړه مضبوطول وی چه پدے قصه کښې کومو انبیاؤ او د هغه تابعدارو صبر کړے وو او د قوم مخالفتونه ئے برداشت کړی وو نو ته هم دغه شان صبر اُوکړه)

او په قصه کښې تاثیر پدے وجه زیات وی چه قصه بالفعل واقع شوی وی او د هغے آثار ښکاره وی په نسبت د لفظی کلام۔

شاه ولی الله الدهلویؒ په اصول التفسیر کښې لیکلی دی : چه مفسر ته کله د قصو آیاتونه مخے ته راځی نو د هغه آیتونو فهم نۀ حاصلیږی بغیر د قصے پیژندلو نه۔ انتهیٰ ۔

لهذا د قصے پیژندل ډیر ضروری دی بیا دغه قصه اجمالی طریقے سره قرآن کریم ذکر کړی وی او ددے تفصیل کله په احادیثو کښې ذکر وی، رسول الله ﷺ د هغے تفصیل کړے وی او د هغے ضمنی او تکمیلی حصه ئے ذکر کړی وی، لکه دا هم مفسرینو د هر آیت او واقعے سره ذکر کړیدی او په متصل سندونو سره ئے نقل کړیدی۔ او کله د بنی اسرائیلو نه نقل وی، او دا په تفاسیر کښې ډیر زیات دی چه ددے تفصیل په بحث د اسرائیلیاتو کښې ذکر دے۔

## ۲- دویمه فائده :

په قرآن کریم کښې د قصو ذکر کیدلو بله فائده دا ده چه د اهل کتابو په هغه زمانه کښې آخری علم دا وو چه د انبیاؤ اخبارات او د هغوی قصے او واقعات ئے پیژندل۔ او د هغوی قریب امتونو واقعات ورته معلوم وو، نو قرآن کریم هم دغه قصے ذکر کړے چه دا صرف د اهل کتابو علماؤ راسخین فی العلم پیژندلے نو پدے کښې اهل کتابو ته عظیمه تحدی او

لوئی چیلنج دے او هغوی عاجز کول دی چه هسے نه د مسلمانانو په خلاف حجت او دلیل
اُونه نیسی چه مونږ سره علم موجود دے او تاسو سره نشته نو الله تعالیٰ دے نبی ﷺ او
مسلمانانوته د هغے نه یوه عظیمه حصه ورکړه۔ الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ تِلْكَ مِنْ اَنْبَاءِ الْغَيْبِ
نُوحِيهَا اِلَيْكَ مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَا اَنْتَ وَلَا قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هٰذَا﴾ (هود : ٤٩) ۔ (دا د غیبو خبرونه دی،
مونږ ئے تا ته وحی کوو، ته او ستا قوم ددے نه مخکښ پدے باندے نۀ پو هیدل)۔
نو ددے وجه نه د مسلمانانونه د اُمیت صفت په نظر د یهودیانو کښ زائل شو۔

## ۳- دریمه فائده : مَعْرِفَةُ تَارِيخِ سَلَفِ الْاُمَّةِ فِى التَّشْرِيعِ :

د شریعت د آدابونه دا خبره ده چه د خپلو مشرانو انبیاؤ تاریخ اُوپیژندلے شی چه هغوی
ته څنګه شریعت ورکړے شوے وو او هغوی او د هغوی قومونه څنګه په شریعت مکلف
شوی وو۔ او پدے سره اهمیت د شریعت او د تشریع اسلامی واضح کول مقصود وی۔ لکه
الله تعالیٰ فرمائی :
﴿ وَكَاَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ﴾ (آل عمران : ١٤٦)۔
(ډیر پیغمبران داسے وو چه د هغوی په ملګرتیا کښ الله والا خلقو قتال کولو) نو پدے
سره مونږ ته دا فائده حاصلیږی چه الله تعالیٰ به مونږ ته هم فتوحات راکوی کله چه مونږ
کښ الله پرستی او اخلاص پیدا شی۔ او ددے غرض دپاره الله تعالیٰ په قصه کښ د قصے
والو د ایمانی حالت ته تعرض کوی چه دوی په ایمان کښ څومره مضبوط وو او څومره
ضعیف وو۔
او د هغوی نومونه او نسبونه او د هغوی ښارونه او کلی نۀ بیانوی ځکه چه په هغے کښ
فائده نۀ وی ځکه عبرت اخستل د هغوی د ایمان یا بے ایمانئ نه کیږی۔
لکه اُوګوره قصے د اصحاب الکهف ته : ﴿ اَمْ حَسِبْتَ اَنَّ اَصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ كَانُوا مِنْ
آيَاتِنَا عَجَبًا ﴾ تر ﴿ نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَاَهُمْ بِالْحَقِّ اِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى﴾ ۔ نو دلته
ئے دا ذکر نکړل چه دا د کوم قوم خلق وو او په کومه زمانه کښ تیر شوی وو۔
دغه شان پدے قول د الله تعالیٰ کښ : ﴿ فَابْعَثُوا اَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ هٰذِهٖ اِلَى الْمَدِينَةِ﴾ ۔ دلته ئے دا
ذکر نۀ کړه چه دا کوم ښار وو ځکه د عبرت ځائے دا وو چه دوی الله تعالیٰ راپاڅول او ښار ته
ئے استاذے اُورسیدو۔ ددے دپاره چه روستو آیت پرے تفریع شی چه :
﴿ وَكَذٰلِكَ اَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوا اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ﴾ [الکهف : ٢١]۔

یعنی خلق مے پرے راخبر کړل چه هغوی ته معلومه شی چه د الله تعالیٰ وعده حقه ده) دغه شان به انسانان د قبرونو نه راپورته کولے شی۔ [التفسیر والمفسرون ۹/٤] والتنویر [۶۵/۱]۔

٤- **فائده** : فَائِدَةُ التَّارِيْخِ مِنْ مَعْرِفَةِ تَرَتُّبِ الْمُسَبَّبَاتِ عَلٰى اَسْبَابِهَا فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ وَالتَّعْمِيْرِ وَالتَّخْرِيْبِ لِتَقْتَدِيَ الْاُمَّةُ وَتَحْذَرَ] :

(په قصه کښې بله فائده دا ده چه انسان ته تاریخ معلوم شی چه تول کارونه د خیر او شر او د آبادی او تخریب په خپلو اسبابو باندے مرتب کیږی، که چا د خیر اسباب اختیار کړل نو د خیر فیصلے به کیږی او که چا د تخریب او شر او فساد اسباب اختیار کړل (شرك ئے اُوکړو، د انبیاؤ مخالفتونه ئے شروع کړل) نو هغه باندے به د شر فیصلے وی نو پدے کښې به امت د خیر اقتداء کوی او د شر نه به ځان بچ ساتی۔ لکه الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ فَتِلْكَ بُيُوْتُهُمْ خَاوِيَةً بِمَا ظَلَمُوْا﴾ [النمل :۵۲]۔

۵- **فائده** : په قصے ذکر کولو کښې مشرکانو ته وعظ او نصیحت دے چه اُوګورئ کومو امتونو چه د رسولانو مخالفت کړیدے او د خپل رب د اوامرو نه ئے سرکشی کړیده نو هغوی باندے څومره ناشنا عذابونه او آفتونه راغلی دی نو پدے سره به مشرکان د خپلو سرکشیانو نه منع شی او د خپلو امثالو او مشرانو نه به نصیحت واخلی او الله تعالیٰ ځنګه زمکه خپلو اولیاؤ او نیك بندګانو ته په میراث کښې ورکړه۔

الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ﴾ [الاعراف:۱۷۶]۔

(دے خلقو ته بیان کړه (دغه واقعات) دے دپاره چه فکر اُوکړی)۔

او ارشاد دے : ﴿ لَقَدْ كَانَ فِيْ قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ﴾ [یوسف :۱۱۱]۔ (یقیناً ددے قومونو په قصو کښې نصیحت دے د صفا عقلونو والو دپاره) او ارشاد دے : ﴿ وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُوْرِ مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ اَنَّ الْاَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُوْنَ ﴾ [الانبیاء : ۱۰۵]۔

(او یقیناً مونږ په زبور کښې لیکلی وو چه زما نیکانو خلقو ته زمکه په میراث کښې پاتے کیږی) ۔ [التنویر لابن عاشور]

۶- **فائده** : [اِيْضَاحُ اُسَسِ الدَّعْوَةِ اِلَى اللّٰهِ، وَبَيَانُ اُصُوْلِ الشَّرَائِعِ الَّتِيْ يُبْعَثُ بِهَا كُلُّ نَبِيٍّ۔ ﴿ وَمَا

اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِیْ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنَا فَاعْبُدُوْنِ ﴾ [الانبياء : ٢٥] ۔

(کله په قصه کښې دا فائده وی چه د دعوت الی الله د بنیاد وضاحت اُوکړی او هر نبی چه په کومه خبره رالیږلے شوے وی د هغه د شرائعو او احکامو اصول بیان کړی لکه الله تعالیٰ فرمائی: « او ما نهٔ دے رالیږلے مخکښې ستا نه هیڅ رسول مګر مونږ به ورته دا وحی کوله چه نشته سوی زما نه حقدار او لائق د بندګئ نو بس (خالص) زما عبادت اُوکړئ»۔

۷- [تَصْدِيْقُ الْاَنْبِيَاءِ السَّابِقِيْنَ وَاِحْيَاءُ ذِكْرَاهُمْ وَتَخْلِيْدُ آثَارِهِمْ] ۔

په قصو کښې د پخوانو انبیاؤ تصدیق وی او د هغوی د نصیحتونو تازه کول او د هغوی آثار همیشه کول وی)

چه بندګانو له پکار دی چه د انبیاؤ نصیحتونه قبول کړی او د هغے اتباع شروع کړی۔

۸- [اِظْهَارُ صِدْقِ مُحَمَّدٍ ﷺ فِیْ دَعْوَتِهٖ بِمَا اَخْبَرَ بِهٖ عَنْ اَحْوَالِ الْمَاضِيِيْنَ عَبْرَ الْقُرُوْنِ وَالْاَجْيَالِ]۔

(د محمد ﷺ په دعوت کښې د رشتین والی اظهار وی چه دهٔ کوم خبر د پخوانو خلقو د حالاتو نه ورکړیدے نو دا پکښې رشتینی دے۔ او هغه زمانه کښې حاضر نهٔ وو او رشتینی خبر ورکوی۔ نو دا یو قسم معجزه هم ده)۔

۹- [تَعْوِيْدُ الْمُسْلِمِيْنَ عَلٰى مَعْرِفَةِ سَعَةِ الْعَالَمِ وَعِظْمَةِ الْاُمَمِ وَالْاِعْتِرَافِ لَهَا بِمَزَايَاهَا حَتّٰى تُدْفَعَ عَنْهُمْ وَصْمَةُ الْغُرُوْرِ الخ] ۔

(د مسلمانانو دا تربیت کول چه د عالَم فراخی او د امتونو غټ والے اُوپیژنی او د هغوی په صفاتو او کمالاتو باندے اقرار اُوکړی او ددے په نتیجه کښې د هغوی غرور ختم شی۔

لکه الله تعالیٰ امت مسلمه ته د قوم عاد په خبره نصیحت کړیدے : ﴿ وَقَالُوْا مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ﴾ ۔ (عادیانو اُووئیل : زمونږ نه سخت قوت والا څوك کیدے شی؟) نو پدے کښې دا نصیحت دے چه عادیان د روستنو قومونو نه ډیر قوی بدن والا وو او بیا هم د هود ﷺ د مخالفت په وجه هلاك شو۔

۱۰- [اِنْشَاءُ هِمَّةِ السَّعْیِ فِی الْمُسْلِمِيْنَ اِلٰى سِيَادَةِ الْعَالَمِ]۔

بل مقصد دا هم وی چه په مسلمانانو کښې دا همت پیدا کړی چه کوشش اُوکړی او ددے عالَم سرداری او مشری ورته ملاؤ شی لکه څنګه چه د دوی نه مخکښې پخوانو خلقو ددے عالَم سرداری کړے وه، دے دپاره چه د هغه ضعیف حالت او ګمنامئ نه اُوځی کوم باندے

چه عرب وو څکه چه د عربو همت دا وو چه هغوی دا عزت ګنړلو او پدے راضی وو چه یو بـل بـانـدے حـمـلے اُوکـړی نو سردار به په هغوی کښې هغه څوك وو چه د اُوښانو یو کندك حاصـل کـړی او د عامو خلقو آرزو دا وه چه ګډے بزے حاصلے کړی او همتونه ئے د مشرئ نـه قـاصر او کوتاه وو تردے چه حالت ئے دا شو چه خپل عزت ئے ورك ګړو او د نورو ملکونو والا په استعمار کښې راغلل لکه روم او فارس نو تول عراق، او تول یمن او د بحرین علاقے د فـارس والـو مـاتـحـت وو او د هـغـوی د مشرئ لانـدے راغلل او شام او قریبی علاقے د روم د سیادت تـابـع شو او حجاز پاتے وو لیکن هغوی هم عزت پدے کښې ګنړلو چه د عجمو او د روم بادشاهانو ته سفرونه اُوکړی او د هغوی سره تجارتونه اُوکړی۔

۱۱ – [بَیَانُ عَدْلِهِ تَعَالٰی بِعُقُوْبَةِ الْمُكَذِّبِیْنَ]۔

(پـه قـصه کښې د الله تعالیٰ عدل بیانول مقصود وی چه الله تعالیٰ کله مکذبینو ته عذاب ورکـوی نـو پـه هـغـوی بـانـدے هیڅکله ظلم نهٔ کوی بلکه دا ئے سراسر عدل دے۔ لکه الله تعالیٰ د مکذبینو متعلق فرمائی :

﴿ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلٰكِنْ ظَلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ فَمَا اَغْنَتْ عَنْهُمْ اٰلِهَتُهُمُ الَّتِیْ یَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ شَیْءٍ لَّمَّا جَاءَ اَمْرُ رَبِّكَ ﴾ [هود : ۱۰۱]۔

(او ما ظـلـم نـهٔ وو کړے په دوی باندے لیکن دوی د خپلو ځانونو سره ظلم کړے وو نو دفع نکړو د دوی نـه مـعبودانو د دوی کوم چه دوی رابلل سوئ د الله تعالیٰ نه هیڅ عذاب کله چه راغلو حکم د رب ستا)۔

۱۲ – [بَیَانُ فَضْلِهِ تَعَالٰی بِمَثُوْبَةِ الْمُؤْمِنِیْنَ لِقَوْلِهِ تَعَالٰی ﴿ اِلَّا اٰلَ لُوْطٍ نَجَّیْنَاهُمْ بِسَحَرٍ، نِعْمَةً مِنْ عِنْدِنَا كَذٰلِكَ نَجْزِیْ مَنْ شَكَرَ﴾۔

(پـه قـصـه کـښې په مؤمنانو باندے د الله تعالیٰ احسان او فضل بیانول مقصود وی لکه الله تـعـالیٰ فرمائی : مګر د لوط ﷺ تـابـعـدار مـا بـچ کـړل په سحر کښې دا نعمت وو زمونږ د طرف نه، دغه شان بدله ورکوو مونږ هغه چا ته چه شکر کوی)۔

۱۳ – [تَسْلِیَةُ النَّبِیِّ ﷺ عَمَّا اَصَابَهٗ مِنَ الْمُكَذِّبِیْنَ لَهٗ لِقَوْلِهِ تَعَالٰی:﴿ وَاِنْ یُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَیِّنَاتِ وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتَابِ الْمُنِیْرِ، ثُمَّ اَخَذْتُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا فَكَیْفَ كَانَ نَكِیْرِ﴾ (فاطر)۔

(نبی ﷺ تـه تسلی ورکول مقصد وی چـه تا تـه د تکذیب کونکو د طرف نـه کوم تکلیفونه رسیږی پدے باندے صبر کوه ځکه ستا نه مخکښ رسولانو واضح معجزات او کتابونه راوړی وو او خلقو ئے تکذیب کړے وو او هغوی صبر کړے وو).

۱٤ - [تَرْغِيبُ الْمُؤْمِنِينَ فِي الْإِيمَانِ بِالثَّبَاتِ عَلَيْهِ وَالْإِزْدِيَادِ مِنْهُ إِذْ عَلِمُوا نَجَاةَ الْمُؤْمِنِينَ السَّابِقِينَ وَانْتِصَارَ مَنْ أُمِرُوا بِالْجِهَادِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿ فَاسْتَجَبْنَا لَهُ وَنَجَّيْنَاهُ مِنَ الْغَمِّ وَكَذَٰلِكَ نُنْجِي الْمُؤْمِنِينَ ﴾ [انبياء :۸۸ ].

(مؤمنانو تـه ترغیب ورکول مقصود وی چه په ایمان باندے مضبوط شئ او خپل ایمانونو کښ زیادت پیدا کړئ ځکه چه مؤمنانو ته معلومه ده چه پخوانو کښ بچ کیدونکی صرف ایمان والا وو او چا چه مجاهده کړیده نو د هغوی بدله الله تعالیٰ اخستے ده).

۱۵ - [تَحْذِيرُ الْكَافِرِينَ مِنَ الْإِسْتِمْرَارِ فِي كُفْرِهِمْ].

(کافرانو ته دا یره ورکول مقصود وی چه په کفر باندے همیشه پاتے نشی ورنه د پخوانو په شان به هلاك شی.

لکه الله تعالیٰ فرمائی: ﴿ أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ، دَمَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلِلْكَافِرِينَ أَمْثَالُهَا ﴾.

(آیا دوی نهٔ گرځی په زمکه کښ چه اُوگوری څنګه شو انجام د مخکنو، الله تعالیٰ په هغوی باندے هلاکت راوستو او د (ټولو) کافرانو دپاره ددے په شان انجام دے).

۱٦ - [إِثْبَاتُ رِسَالَةِ النَّبِيِّ ﷺ فَإِنَّ أَخْبَارَ الْأُمَمِ السَّابِقَةِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ].

(په واقعه کښ مقصد د نبی ﷺ د رسالت اثبات وی ځکه چه د مخکنو امتونو اخبارو باندے صرف الله تعالیٰ عالم دے او هغه خپل نبی ته د هغے خبر ورکړیدے لکه چه فرمائی

﴿ تِلْكَ مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَا أَنْتَ وَلَا قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هَٰذَا ﴾ او فرمائی: ﴿ وَالَّذِينَ مِنْ بَعْدِهِمْ لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللَّهُ ﴾ [ابراهیم].

OOOOOOOOOOO

# حكمة تكرار القصص

## [ د قصو د مكرر ذكر كولو حكمة ]

په قرآن كريم كښې ډير داسې قِصَص شته چه هغه بار بار مكرر ذكر شويدي، يوه واقعه وي خو مكرر ذكر شي او بعض قصې داسې دي چه صرف يو كرت ذكر شوي وي لكه قصه د لقمان حكيم او اصحاب الكهف او بعض د مصلحت او حاجت د وجه نه مكرر ذكر كيږي ليكن دا تكرار هم په يوه طريقه او يو شان الفاظو سره نهٔ وي بلكه ضرور فرق وي په سياق يا په الفاظو كښې يا په اُوږدوالي او لنډ والي او نرم والي او سخت والي كښې او په بعض ځايونو كښې يو جانب او په بل ځائې بل جانب د قصې ذكر كيږي. د دواړو قالب او اسلوب جدا جدا وي او ديته تكرار نشي وئيلې مگر د نفس قصې تكرار وي او انسان د هغې په وجه تنگيږي هم نهٔ، نو بيا پدې تكراركښې ډير حكمتونه دي چه بعض د هغينه دا دي :

١ – [ بَيَانُ بَلَاغَةِ الْقُرْآنِ فِيْ اَعْلٰى مَرَاتِبِهَا ].

(قصه ځكه مكرر كولې شي چه پدې كښې مقصد دا واضحه كول وي چه د قرآن كريم بلاغت په اعلىٰ مراتبو كښې دې ځكه چه دا هم د بلاغت يو قسم دې چه د يو مقصد نه په مختلفو طريقو سره تعبير اُوكړې شي).

٢ – [اَلْاِهْتِمَامُ بِشَانِ الْقِصَّةِ لِتَمْكِيْنِ عِبَرِهَا فِى النَّفُسِ].

(قصه ځكه دوباره ذكر كولې شي چه مقصد په كښې اهتمام د شان د قصې وي، دې دپاره چه د هغې عبرت په نفس كښې ځائې اُونيسى). ځكه تكرار د تاكيد او اهتمام دپاره كيدې شي. لكهٔ قصه د موسى د فرعون سره ځكه چه پدې كښې دا عبرت پروت دې چه د حق او باطل به ضرور مقابله او كشمكش روان وي.

٣ – [اِخْتِلَافُ الْغَايَةِ الَّتِىْ تُسَاقُ مِنْ اَجْلِهَا الْقِصَّةُ].

(د حالاتو د تقاضا مطابق يوې قصې نه مختلف مقاصد اخستلې شي، په يو مقام كښې يو مقصد دپاره بيانولې شي او په بل مقام كښې د بل مقصد دپاره).

٤ – [ ظُهُوْرُ صِدْقِ الْقُرْآنِ وَاَنَّهٗ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ حَيْثُ تَأْتِىْ هٰذِهِ الْقِصَصُ مُتَنَوِّعَةً بِدُوْنِ تَنَاقُضٍ ].

(پدې سره د قرآن كريم صدق او رشتين والې ښكاره كيږي چه دا د الله تعالىٰ د طرفنه

راغلي دي ځکه چه دا قصي په کښې په مختلفو رنګونو کښې راغلي دي او هيڅ تناقض پکښې نشته)۔

۵- [مُرَاعَاةُ الزَّمَنِ وَحَالِ الْمُخَاطِبِيْنَ بِهَا]۔

(د هرې زمانې او وخت لحاظ پکښې شوې وي او حالت د مخاطبينو ته کتل شوي وي، ددې وجه نه په مکي سورتونو کښې په قصه کښې شدت او سختي وي او ايجاز زيات وي او په مدني سورتونو کښې نرمي وي)۔

[القصص فی القرآن ص (رسالة الشيخ اسلام محمود دربالة]۔

**فائده :** قرآني قصي په درې قسمه دي :

(۱) قصص الانبياء : د انبياؤ قصي او د هغوي په لاس باندې ښکاره شوي معجزات او معاندينو د هغوي سره څه کړي وو او د هغوي د دعوت مراحل او عاقبت د مؤمنانو او مکذبينو انجام لکه قصه د نوح، ابراهيم، موسى، هارون، عيسى، او محمد ﷺ وغيره انبياء عليهم السلام۔

(۲) دويم : هغه قصي دي چه د تير شوي حادثاتو سره تعلق لري يا د هغه اشخاصو سره چه د هغوي تفصيل نۀ وي بيان شوې۔لکه قصه د هغه خلقو چه د مرګ د يرې نه د کورونو نه وتلي وو او دوي زرګونه وو۔ او قصه د طالوت او جالوت، د آدم ؑ د ځامنو واقعه، اصحاب الکهف، ذی القرنين، قارون، اصحاب السبت، مريم، اصحاب الاخدود او اصحاب الفيل او د دوي په شان نور خلق۔

(۳) دريم قسم هغه قصي دي چه د هغه حادثاتو سره تعلق لري چه په زمانه د رسول الله ﷺ کښې راغلي دي لکه غزوه د بدر او احد په آل عمران او غزوه د حنين او تبوك په سورة التوبه کښې او غزوه د احزاب په سورة الاحزاب کښې او هجرت او اسراء وغيره واقعات شو۔

OOOOOOOOOOO

## ٤٢- البحث : الاستشهاد بالاسرائیلیات

[ اسرائیلی روایاتو باندے دلیل نیول او هغه په تائید کښې ذکر کول څنګه دی ؟ ]

اسرائیلیات د هغه روایتونو نوم دے چه د اهل کتابو (یعنی یهود او نصاراؤ) نه نقل شوی وی په تفسیر د یو آیت کښې۔

په پخوانو تفسیرونو کښې د اسرائیلیاتو ذکر ډیر راغلے دے او د صحابه کرامو نه هم بعض روایات اسرائیلیه نقل شویدی نو ددے اصل حقیقت څه دے ؟۔

حقیقت دا دے چه کله وحی نازلیدله نو په دغه دور کښې د عربو سره په ګاونډ کښې یهودیان اُوسیدل او په هغوی کښې بعض کسانو اسلام راوړے وو لکه کعب الاحبارؒ، وهب بن منبهؒ او عبد الله بن سلامؓ وغیره نو کله چه به په قرآن کریم کښې یوه قصه راغله او د هغے بعض اجزاء نۀ وو ذکر شوی نو بعض مسلمانانو به د دغه اهل کتابو نه د دغه قصے تپوس کولو نو هغوی به ورته د قصے تفصیلات بیانول کوم چه به ئے د تورات یا انجیل نه زده کړی وو۔ اګرکه صحابه کرامؓ د یهود او نصاراؤ نه د هر څه په باره کښې تپوس نۀ کولو بلکه په بعض اوقاتو کښې به ئے د یوے خبرے تپوس اُوکړو۔ او هغه خبره او قصه به د عقیدے او د احکامو متعلق نۀ وه، او که د عقیدے او د احکامو متعلق تپوس به ئے کولو نو هغه به هم صرف پدے غرض چه د قرآن کریم تصدیق ئے زیات شی او ددے حقانیت ورته ښه معلوم شی۔ او دوی به په دے باندے نۀ تصدیق کولو او نۀ تکذیب۔ لکه ډوی ته دا سبق د رسول الله ﷺ نه پاتے شوے وو چه

[لَا تُصَدِّقُوْا اَهْلَ الْكِتَابِ وَلَا تُكَذِّبُوْهُمْ وَقُوْلُوْا آمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْنَا]۔

(د اهل کتابو مه تصدیق کوئ او مۀ ئے تکذیب کوئ بلکه دا اقرار کوئ چه مونږ په الله تعالیٰ او خپل کتاب ایمان راوړیدے)۔

دغه شان کوم اهل کتابو چه ایمان راوړے وو نو هغوی ته د تورات او انجیل نه واقعات او قصے یادے وے نو کله چه به قرآن کریم کښې یوه قصه راغله نو دوی به ورسره په بعض مقاماتو کښې د تورات یا انجیل نه څه اجزاء ملګری کړل۔ نو هغه پدے طریقه بیا امت کښې خواره شول۔

دغـه شان عبـد الله بـن عمرو بن العاص رضی الله عنهما په غزوه د یرموك کښې کتابونه د اهـل کتـابـو مـوندلی وو چه په دوه اُوښانو باندے باروو۔ نو هغه به ددے نه په بعض اوقاتو کښې خبرے بیـانـولے او پدے باره کښې ورته د رسول الله ﷺ حدیث مبارك یاد وو او هغه په بخاری کښې هم دده په روایت نقل دے چه :

[حَدِّثُوا عَنْ بَنِیْ اِسْرَائِیْلَ وَلَا حَرَجَ]۔

(د بنی اسرائیلو خبرے بیانوئ او پدے کښې هیڅ گناه نشته)۔

بیا روستـو تـابعیـنـو کـښې دغـه روایـات او خبـرے د بنی اسرائیلو مشهورے شوے او بیا روستـو کـومـو عـلـماؤ چـه په تفسیر کښې لیکل اُوکړل نو چا ډیر او چا کم اسرائیلیات په خپلـو تفاسیرو کښې ذکر کړل چه ددے سره ډیر موضوعات او منکرت روایات ملگری شو چه اکثرو مفسرینو د هغے د صحت او ضعف هیڅ لحاظ او تمییز نهٔ دے ساتلے نو په امت کـښې ددے نـه ډیر فسـاد خورشواو د قرآن کریم اصل روح په ځائے پاتے شو۔ او خلقو د قصو تـفـصیـلاتـو تـه تـوجـه ورکړه نو گویا کښې دا یو تسلط شو د یهودیت او نصرانیة په روح د قـرآن بـانـدے ددے وجه نه د اسرائیلیاتو حکم پیژندل او د هغے صحت او ضعف معلومول ضروری دی۔

لهـذا مـحـقـقیـنـو مفسرینو لکه (حافظ ابن تیمیهؒ، حافظ ابن قیمؒ، حافظ عماد الدین ابن کثیرؒ وغیره ؒ) د اسرائیلیاتو اقسام ذکر کړیدی چه کوم مقبول دی او کوم مردود دی ؟ ۔

## اقسام الاسرائیلیات :

۱ – اول قسـم هغه اسرائیلی روایات دی چه په قرآن کریم او سنت کښې د هغے تصدیق موجود وی لـکـه د فرعون غرقیدل او د موسی علیه السلام کـوه طـور ته تلل او دغسے نورے خبرے د احکامو متعلق واخله۔

نـو ددے حـکـم دا دے چـه ددے بیـانـول بالکل جائز دی او دا په اصل کښې په قرآن یا سنت سره ثابت دی۔

۲ – دویـم هـغـه روایـات دی چـه د هـغے دروغژن والے د قرآن کریم او د سنت په نورو دلائلو سره ثـابـت دے لـکـه پـه اسـرائیلی روایاتو کښې داسے خبرے ذکر شویدی چه په هغے کښې د انبیـاء عـلیهـم السلام بے ادبی وی او د اسلام صریح خلاف وی لکه مثلًا سلیمان علیه السلام ته دا نسبت کـول چـه هـغـه پـه آخری عـمـر کـښې (العیاذ بالله) مرتد شوے وو۔ دا د قرآنی آیت

خلاف ده ﴿ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ وَلَكِنَّ الشَّيَاطِيْنَ كَفَرُوْا﴾ دغه شان لوط عليه السلام ته د شرابو څکلو نسبتونه او بيا د خپلو لونړو سره د زنانو کولو نسبت. يا داود عليه السلام ته غلط نسبتونه کول چه هغه پردئ ښځه ځان له حاصلولو دپاره هغه شخص جهاد ته ليږل او د هغه په پردئ ښځه باندې عاشق کيدل. دغه شان ډير روايات دی چه په تفسير کښې به ځائے په ځائے د خپلو آيتونو په تشريح کښې راځی.

دارنګه د عقائدو مسئلے يا د احکامو متعلق مسائل شو.

ددې حکم دا دے چه ددې به تصديق نه نشی کيدے بلکه ترديد به کيدے شی. او دې له اعتبار ورکول به د قرآن کريم خلاف وی او يهوديت او نصرانيت ته به ميلان وی او دا به نشی روايت کولے او نۀ به خپلو کتابونو کښې ذکر کولے شی مګر د رد کولو سره.

٤- دريم هغه روايات دی چه په قرآن او سنت کښې نۀ د هغې تصديق موجود وی او نۀ تکذيب. يعنی نۀ ئے تائيد کړے وی او نۀ ئے ترديد کړے وی نو د داسے رواياتو په باره کښې د نبی ﷺ تعليم دا دے چه نۀ به ددې تصديق کولے شی او نۀ به ئے تکذيب کولے شی او ددې بيانول به جائز وی او ددې مثال لکه د اصحاب الکهف نومونه او د هغوی د سپی رنګ او د هغه مارغانو نومونه چه الله تعالیٰ ابراهيم عليه السلام ته راژوندی کړی وو، يا د هغه غوا تعيين کومه چه بنی اسرائيلو ذبح کړے وه يا د هغه ونے قِسم معين کول کوم نه چه موسیٰ عليه السلام سره خبرے شوے وے.

يا د موسیٰ عليه السلام امسا د کومے ونے لرګے وو. نو ددې په ذکر کولو کښې هيڅ دينی او دنياوی فائده هم نشته.

دغه شان په قرآنی قصو کښې بعض اضافات يا بعض د غيبو خبرونه وغيره شو نو ددې قصو بيانول جائز دی. او دا په اجازه د رسول الله ﷺ کښې داخل دی : چه : [حَدِّثُوا عَنْ بَنِیْ إِسْرَائِيْلَ وَلَا حَرَجَ ]. (تاسو د بنی اسرائيلو خبرے بيانولے شئ او هيڅ ګناه پکښې نشته) او ددې وجه نه صحابه کرامو به بعض واقعات د بنی اسرائيلو بيانول لکه چه مخکښې تير شو.

پدې کښې تفصيل دا دے چه کله داسے قسم روايات د صحابه کرامو نه نقل شی په صحيح سند سره او هغه پرې جزم او يقين کړے وی نو دا به د اول قسم په شان حسابيږی چه مقبول به وی او ترديد به ئے نشی کولے ځکه چه دا خبره د عقل خلاف ده چه يو صحابی د اهل کتابونو نه خبره واخلی پس د هغې نه چه هغه ته د رسول الله ﷺ دا ارشاد معلوم وی چه د اهل کتابو

تصدیق مه کوئ۔

او که هغه پرې یقین نهٔ وو کړې نو بیا هم زړه د هغې قبلولو ته میلان کوی ځکه چه پدې کښې دا احتمال شته چه صحابی به دا یا د رسول الله ﷺ نه اوریدلې وی یا به ئې د بل چا نه آوریدلې وی چه هغه به د رسول الله ﷺ نه آوریدلې وی او دا احتمال ډیر قوی دې ددې نه چه صحابی دا د اهل کتابونه آوریدلې وی، ځکه چه دا خبره ثابته ده چه د صحابه کرامو د اهل کتابو نه اخستل د خبرو ډیر کم دی په نسبت د تابعینو وغیرو۔

البته که د تابعینو نه دا قسم روایات راشي نو بیا به په هغې کښې توقف کولې شي نهٔ به ئې تصدیق کولې شي او نهٔ به ئې تکذیب۔ ځکه پدې کښې قوی احتمال دې چه دا به ئې د اهل کتابونه اخستي وي۔ ځکه چه تابعینو وغیره ؤ د اهل کتابو نه ډیر اخستل کړیدی۔ نو د رسول الله ﷺ نه د آوریدلو احتمال بعید دې۔ البته که د تابعی په روایت باندې د امت عامو مفسرینو اتفاق کړې وی نو دا بعیده ده چه دا ئې د اهل کتابونه آوریدلې وی۔ نو نفس ددې قبلولو او اخستو ته ډیر سکون حاصلوی۔ والله اعلم۔

[التفسیر والمفسرون ١٤/٤] للدكتور محمد حسین الذهبی]۔

او دغه شان ددې بیانول به هم جائز وی د مخکنی اجازت د رسول الله ﷺ په وجه۔

علامه قاسمیؒ فرمائی : همدا سبب دې چه قدیم علماؤ په خپلو کتابونو کښې د اهل کتابو نه ډیر روایات نقل کړیدی ځکه چه هغوی به د دغه روایاتو په راویان باندې ښه گمان لرلو چه دوی به ضرور صحیح روایات بیانوی یا د دغه حدیث د اجازت په وجه چه تاسو د بنی اسرائیلو نه حدیثونه بیانولې شئ او هیڅ گناه پکښې نشته، نو پدې بناء باندې هغوی ته دا مطلقاً رخصت ښکاره شو چه دا قسم هر څنگه روایات اگرکه ضعیف النقل وی نقل کول ئې جائز دی ځکه چه مقصود پدې کښې دا دې چه د هغه واقعاتو نه عبرت واخستې شی کوم چه په پخوانو باندې الله تعالیٰ راوستی وو دې دپاره چه د اطاعت والو په لاره روان شی نو کامیاب به شی او مدح به ئې اُوشی او د عصیان او نافرمانئ والو د لارې نه بچ شی چه هسې نه د هغوی په شان هلاکت او عذاب پرې رانشی۔ دا د هغوی منظور النظر وو۔ رضی الله عنهم۔

بیا فرمائی : [وَالْقَصْدُ اَنَّ الصَّالِحِیْنَ کَانُوْا یَتَقَبَّلُوْنَ الرِّوَایَاتِ عَلٰی عِلَّاتِهَا لِلْمُلَاحَظَةِ الْمَارَّةِ لِصَفَاءِ سَرِیْرَتِهِمْ فَلَایَنْبَغِیْ اِلَّا تَفْنِیْدُ الْمَوْضُوْعِ مِنْهَا، لَا الْحَطُّ مِنْ مَقَامِهِمْ وَقَرْضُ اَعْرَاضِهِمْ کَیْفَ وَقَدْ تَلَقّٰی

الصَّحَابَةُ وَمَنْ بَعْدَهُمُ الْإِسْرَائِيلِيَاتِ وَحَكَوْهَا بَلْ بَعْضُهُمُ اقْتَنٰى أَسْفَارَهَا وَأَدْمَنَ مُطَالَعَتَهَا لِمَا اسْتَبَانَ لَهٗ مِنَ الْبَشَائِرِ النَّبَوِيَّةِ وَتَحَقُّقِ تَحْرِيْفِهِمْ]۔

(مقصد دا دے چه نیکانو خلقو به اسرائیلی روایات سره د ضعف او علت نه قبلول ځکه چه د هغوی باطن صفاء وو او نبی ﷺ د هغے اجازت هم ورکړے وو۔ نو ددے وجه نه دا مناسب نۀ ده چه د اسرائیلی روایاتو په نقل کولو سره د قدیم علماؤ بے عزتی اُوکړے شی او د هغوی مرتبه خکته کړے شی بلکه پدے روایاتو کښې چه کوم موضوع (منکرت) وی نو د هغے تردید پکار دے۔ مطلقاً تردید هم صحیح نۀ دے ځکه چه صحابه کرامو او د هغوی نه روستو علماؤ اسرائیلیات اخستی او نقل کړیدی بلکه بعض کسانو به د اهل کتابو کتابونه ځان سره ساتلی وو او همیشه به ئے د هغے مطالعه کوله پدے سره به هغه ته د نبی ﷺ بشارات او د دغه کتابونو تحریف واضحه کیدو۔ بیا ئے د عبد الله بن عمرو بن العاص قصه ذکر کړیده۔ [تفسیر القاسمی: ۳۵/۱]۔

دا وجه ده چه سلفو علماؤ به تورات او انجیل او زبور او د هغے شروحات مطالعه کول، په هغے کښې چه کوم د حکمت خبره ده هغه بیانول هم جائز دی۔ او د هغے نه عبرت اخستل هم جائز دی۔

او په هغے کښې چه د نبی ﷺ په باره کښې کوم بشارات او زیری دی او د قرآن او ددے امت متعلق خبرے دی پدے سره د یو مؤمن په ایمان کښې نوره ترقی راځی او خپل دینِ اسلام ورته حق او بے شکه ښکاره کیږی۔

دغه شان د اهل کتابو د تحریفاتو تردید هله کیدے شی چه د هغوی کتابونه اُوکتلے شی، او دا اهل کتابو ته د دعوت یوه ښه ذریعه ده چه د هغوی د کتابونونه د هغوی تحریفات او تناقضات بیان کړے شی او د اسلام حقانیت او اشارات ورته اُوخودلے شی نو په خپله توره به اُووهلے شی۔

البته تورات او انجیل او د اهل کتابو کتابونه به په نیت د تلاوت نشی لوستلے چه د هغے په الفاظو او تلاوت کښې اجر اُوګنړی ځکه چه هغه اُوس منسوخ شویدی او دغه شان تحریفونه او تبدیلیانے پکښې شویدی۔

او کومو علماؤ (د شوافعوؒ) نه چه دا منع کړیده چه د کتابونو د تورات او انجیل نه فائده اخستل جائز نۀ دی ځکه چه هغوی په خپلو کتابونو کښې تغییر او تبدیل کړیدے۔

نو ددے جواب دا دے چه د کوم مقام تبدیل او تغییر معلوم وی، نو د هغے نه به فائده نۀ اخلی۔ البته که د تردید دپاره ترے فائده اخلی نو هیڅ پرواه نشته۔ لیکن په هغے کښې خو ډیر داسې مقامات به وی چه هغه به د تحریف او تبدیل نه بچ وی ځکه چه دا ضروری نۀ ده چه اهل کتابو په هر آیت کښې تبدیلی کړی وی۔

حافظ ابن حجرؒ په آخر د فتح الباری (۱۳/۵۲۶) کښې فرمائیلی دی چه راجح پدے مسئله کښې دا ده چه د چا قدم په علوم شرعیه ؤ کښې مضبوط او راسخ وی او ایمان ئے مضبوط وی نو د هغه دپاره ددے کتابونو مطالعه کول جائز دی خاصکر کله چه ضرورت ورته راپیښ شی په رد کولو کښې په مخالفینو باندے او پدے باندے دلیل دا دے چه قدیماً او حدیثاً امامانو د دین د تورات او انجیل نه نقل کړیدے او په یهودو باندے ئے الزام کړیدے چه ستاسو په کتاب کښې د محمد ﷺ تصدیق موجود دے۔ نو که د دوی په نیز ددے مطالعه جائز نۀ وے نو دوی به دا کار نۀ کولے۔ او که د چا قدم او ایمان راسخ نۀ وی نو هغه دپاره کتل جائز نۀ دی، هسے نه چه پدے سره گمراه شی۔ انتهیٰ۔

پاتے شوه دا خبره چه په حدیث کښې دی چه عمر فاروق د رسول الله ﷺ په مخکښې د تورات څه صفحات لوستل شروع کړل نو د رسول الله ﷺ مخ مبارك (د غصے نه) متغیر کیدو۔

ابوبکر صدیق ؓ پوهه شو نو عمرؓ ته ئے اُوفرمایل: آیا ته د رسول الله ﷺ مخ ته نۀ گورے؟ نو عمرؓ اُوفرمایل:

[اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ غَضَبِ اللّٰهِ وَغَضَبِ رَسُوْلِهٖ رَضِيْنَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِالْاِسْلَامِ دِيْنًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا]۔

(پناه غواړم د الله پورے د الله تعالیٰ د غضب او د هغه د رسول د غضب نه، مونږ د الله تعالیٰ په ربوبیت او د اسلام په دین جوړیدو او د محمد ﷺ په نبوت باندے راضی یو)۔

بیا رسول الله ﷺ اُوفرمایل: [وَالَّذِیْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَوْ بَدَا لَكُمْ مُوْسٰى فَاتَّبَعْتُمُوْهُ وَتَرَكْتُمُوْنِیْ لَضَلَلْتُمْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيْلِ وَلَوْ كَانَ حَيًّا وَاَدْرَكَ نُبُوَّتِیْ لَاتَّبَعَنِیْ] [رواه الدارمی باسناد حسن]۔

(قسم په هغه ذات چه نفس د محمد ﷺ د هغه په لاس کښې دے که تاسو ته موسیٰ راښکاره شی او تاسو د هغه تابعداری شروع کړئ او ما پریدئ نو خامخا به تاسو د نیغے لارے نه گمراه شئ او که موسیٰ علیه السلام ژوندے وے او زما نبوت ئے موندلے وے نو خامخا به ئے

زما تابعداري کولے) (حسنه الالباني في المشكاة)۔
نو دے حدیث نه ظاهره کښې دا معلومیږی چه نبی ﷺ د تورات د نسخې په تلاوت سره غصه شویدے نو دا دلیل دے چه تورات وغیره مطالعه کول او لوستل جائز نهٔ دی ؟۔
لیکن ددے نه **جواب** دا دے چه ددے حدیث او د مخکنی حدیث د اجازت هیڅ تعارض نشته : دا منع د هغه وخت پورے خاص وه، ددے دپاره چه سنت تقریری جوړ نشی، بیا به خلقو قرآن او حدیث پریښے وے اود یهود اونصاراؤ قیصو پسے به روان شوی وے، شیطان داکار کوی چه بے مقصده خبرو کښې انسان ډیر مصروف کوی لکه منطق او فلسفه کښې طالبان ډیر وخت تیروی، او په حدیثو باندے ورمنډه کړی هسے پرے تیر قدرے شی۔
دغه شان په علم کښې یو څو کاله تیر کړی او بیا په انګریزی او یو فن زده کولو کښې ډیر عمر تیروی۔ نوځکه نبی ﷺ منع اُوکړه چه سنت تقریری جوړ نشی۔
۲- **جواب** : نبی اکرم ﷺ روسته اجازت ورکړیدے په دے قول خپل سره چه [حَدِّثُوْا عَنْ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ وَلَاحَرَجَ] خو پدے شرط چه زمونږ دین سره موافق وی۔
۳- **جواب** : یوه مطالعه ده او یو دکتاب لوستل دی په نیت د عبادت، اول روا، دویم ناروا ده۔ او دلیل پدے باندے دا قول د الله تعالیٰ دے : ﴿ قُلْ فَأْتُوْا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوْهَا اِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ ﴾ (تورات راوړئ، وے لولئ که رشتینے یئ)۔
دارنګه حدیث کښې دی چه په یهودو کښې کومے زنانه زنا کړے وه، نودوئ د فیصلے دپاره رسول الله ﷺ ته راغلل، نبی ﷺ پرے د رجم حکم اُوکړو، نو یهودیان ددے نه منکر شو او وے وئیل چه په تورات کښې رجم نشته، نو نبی اکرم ﷺ ورته اُوفرمائیل چه تورات راوړئ، تورات ئے چه راوړو او یو یهودی (عبد الله بن صوریا) لوستل شروع کړل نو آیت درجم باندے ئے لاس کیښودو، هغه پټ کړو، مخکښې روستو ئے لوستلو، نو عبد الله بن سلامؓ ورته اوفرمایل : [اِرْفَعْ يَدَكَ] لاس اُوچت کړه، هغه چه لاس اُوچت کړو [فَاِذَا آيَةُ الرَّجْمِ تَلُوْحُ] نو آیت د رجم په کښې راښکاره شو۔ نو دے حدیث کښې هم دا ذکر شو چه تورات راوړے شویدے او د نبی اکرم ﷺ په وړاندے لوستلے شویدے۔لهذا مطالعه کول ئے جائز شو۔
ددے وجه نه امام شافعیؒ په کتاب الام په باب د ترجمه د کتب الاعاجم کښې وئیلی دی :
[وَمَا وُجِدَ مِنْ كُتُبِهِمْ فَهُوَ مَغْنَمٌ كُلُّهُ، وَيَنْبَغِيْ لِلْاِمَامِ اَنْ يَّدْعُوَ مَنْ يُّتَرْجِمُهُ، فَاِنْ كَانَ عِلْمًا مِنْ طِبٍّ اَوْ غَيْرِهٖ لَامَكْرُوْهَ فِيْهِ، بَاعَهُ كَمَا يَبِيْعُ مَا سِوَاهُ مِنَ الْمَغَانِمِ وَاِنْ كَانَ كِتَابَ شِرْكٍ شَقُّوا الْكِتَابَ فَانْتَفَعُوْا

بِأَوْعِيَتِهٖ وَأَدَاتِهٖ فَبَاعَهَا وَلَا وَجْهَ لِتَحْرِيْقِهَا وَلَا دَفْنِهٖ قَبْلَ اَنْ يُّعْلَمَ مَا هُوَ انتهىٰ]۔

(او کوم کتابونه د اهل کتابو چه موجود شي نو دا تول غنیمت دے، او بادشاه له پکار دي چه ددے ترجمه کونکے راطلب کړي که پدے کښې علم طب وغیره وي نو پدے کښې هیڅ کراهت نشته، ددے خرڅول د نورو غنیمتونو په شان جائز دي او که د شرك کتاب وي نو کتاب به أوشو کوي، او د هغے د سامان نه به فائده واخلی خرڅ به ئے کړي، لیکن ددے د سیزلو هیڅ وجه نشته او د معلومات نه مخکښې ددے خخول هم نۀ دي پکار)۔

صالح بن عبد العزیز آل الشیخ رحمه الله فرمائي : د اسرائیلي روایاتو دغه درے اقسام د شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله نه ذکر کړیدي لیکن یو څلورم قسم هم موجود دے :

(٤) او هغه دا چه : هغه اسرائیلي روایات چه زمونږ په شریعت کښې خو د هغے تصدیق نۀ وي راغلے لیکن عقلونه ئے مستحیل او ناممکن گڼړي یعني داسے روایات وي چه په عقل کښې د هغے وقوع ناممکن گڼړلے شي لکه مثلًا د ((ق)) تفسیر أوکړے شي چه دا یو غر دے چه د ټولے زمکے نه ئے احاطه کړیده، یا مثلًا نمر مخکښې یو شان شکل وو بیا د ئمه شکل ئے په غر باندے بدل شو۔

یا لکه بعض مفسرینو دا نقل کړیدي چه عوج بن عنق د نوح عليه السلام په قوم کښې یو داسے شخص وو چه قد ئے درے زره درے سوه دری دیرش گزه او دریمه حصه د گز وو۔ او عمر ئے درے زره کاله وو او بیا موسیٰ عليه السلام قتل کړو او د دریاب نه به ئے ماهي راخستو او په نمر به ئے پخولو۔ [تفسیر القرطبی ١٢٦/٦ سورة المائدة]۔

نو داسے قسم روایات نقل کول هم صحیح نۀ دي او دا په (حدثوا عن بني اسرائیل ولا حرج) کښې او (لا تصدقو هم ولا تکذبو هم) کښې نۀ داخلیږي ځکه چه دا صراحةً معلوم دي چه دروغ دي۔ او د دروغو نقل کول صحیح نۀ وي۔

نو هرکله چه مونږ دا قید أولګولو نو بناء پدے باندے اسرائیلي روایات په [اِذَا حَدَّثَكُمْ بَنُوْ اِسْرَائِيْلَ فَلَا تُصَدِّقُوْهُمْ وَلَا تُكَذِّبُوْهُمْ] (کله چه تاسو ته بني اسرائیل خبرے بیانوي نو تصدیق او تکذیب ئے مۀ کوئ) کښې ډیر کم پاتے کیږي۔

بیا فرمائي : هرکله چه دا ضوابط تا أوپیژندل نو ددے نه دا معلومیږي چه اسرائیلي روایات نقل کول مطلقاً منع هم نۀ دي او دا خبره هم صحیح نۀ ده چه په هر تفسیر کښې اسرائیلي روایات وي نو هغه به مردود وي لکه بعض خلق دا کوشش کوي چه خپل

تفاسیر د هر قسم اسرائیلی روایت نه صفا ساتی بلکه په بعض اوقاتو کښې په اسرائیلی روایت سره مقصود واضح کیږی۔

لکه په تفسیر د آیت د طه کښې ﴿وَفَتَنَّاكَ فُتُونًا﴾ ۔ پدے کښې حدیث الفتون امام ابن کثیرؒ وغیره مفسرینو ذکر کړیدے چه په هغے سره ددے آیت پوره وضاحت کیږی۔ چه موسیٰ علیه السلام باندے کوم امتحانات او مصیبتونه راغلی وو هغه پکښې ذکر شویدی۔ او ددے اجازت رسول الله ﷺ ورکړیدے او دا په ((حدثوا عن بنی اسرائیل ولا حرج)) کښې داخل دی۔ خو هغه اسرائیلیات ندی نقل کول پکار چه د دویم یا څلورم قسم سره تعلق لری۔ چه شریعت د هغے تکذیب او تردید کوی یا عقل ئے ناممکن گنړی۔

والله تعالیٰ اعلم ۔ انتهیٰ ملخصاً۔

[مقدمة اصول التفسیر لشیخ الاسلام –شرحها للشیخ صالح بن عبد العزیز الدرس الثانی عشر]۔

OOOOOOOOOOO

## ٤٤- بحث : تعارف د بعض مشهور تفاسيرو او د هغوی د مصنفينو

د تفاسيرو د ليکلو ابتداء د بنو اميه په اخيری دور او د بنو عباس په ابتدائی دور کښې شويده ددې نه مخکښې د قرآن کريم تفسير او توضيح د نقل او روايت په ذريعه کيدله، صحابه کرامو به تفسيری روايات او احاديث د رسول الله ﷺ نه نقل کول او يو بل ته به ئې خودل او زده کول او تابعينو به د تفسير متعلق احاديث او آثار د صحابه کرامؓ نه نقل کول او يو بل ته به ئې خودل او دا ټول کار به په يادو باندې وو، او د استاذئ او شاګردئ سلسله وه، د صحابه کرامو او تابعينو په دور کښې اګرکه د تفسيری رواياتو څه صحيفې هم ليکلې شوې وې ليکن د ټول قرآن مکمل د آيتونو او سورتونو د ترتيب مطابق تفسير نهٔ وو ليکل شوې لکه څنګه چه احاديث د رسول الله ﷺ د نبی ﷺ په دور کښې ليکلې کيدل او صحابه کرامو او تابعينو د هغې نه څه صحيفې ليکلې وې ليکن باقاعده د کتابونو او د ابوابو په شکل تدوين د حديثو په روستو زمانه کښې اُوشو نو دغه شان د تفسير کار هم شروع شوې وو۔

د تفسير متعلق روايات او احاديث د حديثو په کتابونو کښې هم ذکر شويدی ليکن هغه مستقل طور سره د مکمل قرآن تفسير نهٔ شمارلې کيږی لکه مثلاً په صحيح بخاری، سنن ترمذی، سنن نسائی او نورو کتابونو کښې ابواب التفسير او کتب التفسير په عنوان سره ذکر شويدی او د هغې هم ډير اهميت او افاديت دې ليکن د مستقل تفاسيرو ليکونکی دلته بيانولې شی چه په هغوی کښې بعض دا دی :

### تفسير بالماثور

هغه مفسرين چه هغوی تفسير بالماثور کوی يعنی د آيتونو تفسير په آيتونو او احاديثو او آثارو سره کوی هغه دا دی :

**۱ - ابن ماجه**۔ المولود : ۲۰۷ هـ المتوفی (۲۷۵ هـ)

ابوعبد الله محمد بن يزيد الربعي القزويني الشهير بابن ماجة ۔ دا د عربو د مشهورې قبيلې بنو ربيعه مولیٰ وو، پدې وجه ده ته ربعی وئيلې شی، قزوينی ورته ځکه وائی چه دا

قزوین علاقې ته منسوب دے کوم چه په آذربائیجان کښې مشهور ښار دے۔ دا ښار د خلافت عثمانی په دور کښې د براء بن عازب ﷺ په قیادت کښې په سنه (۲٤ هـ) کښې فتح شوے وو۔ ماجه د محمد د پلار یعني یزید لقب وو۔ پدے وجه دا د ابن ماجه په نوم سره مشهور شویدے۔ او ماجه د فارسی ((ماه)) یا ((ماهجه)) نه جوړ شویدے چه ددے معنیٰ ده سپوږمئ۔ بعض خلقو وئیلی دی چه ماجه ئے د مور نوم وو، بعض وائی د نیکه نوم ئے وو لیکن امام نوویؒ په تهذیب الاسماء واللغات کښې او ابن کثیرؒ په البدایه والنهایه کښې او ابن حجرؒ په تهذیب التهذیب کښې دواړو قولونو ته غلط وئیلی دی۔

دده په حدیثو کښې مستقل کتاب (سنن ابن ماجه) شته لیکن په تفسیر کښې ئے هم د قرآن کریم مستقل تفسیر لیکلے وو۔

## (۲) تفسیر ابن جریر الطبری

### المولود ۲۲٤ هـ المتوفی ۳۱۰ هـ

ابوجعفر محمد بن جریر بن یزید بن خالد الطبریؒ۔ د طبرستان په مرکزی ښار آمل کښې پیدا شوے وو او په بغداد کښې وفات شوے وو۔ دده تفسیر دار الفکر بیروت په سنه (۱۹۸۸ء) کښې په (۳۰) اجزاء او (۱۵) جلدونو کښې چاپ کړیدے او مشهور او قدیم تفسیر دے۔

ابن جریرؒ مفسر، محدث، مؤرخ او فقیه وو او د اکابر امامانو مجتهدینو نه شمار وو۔

د کوفې قاضی احمد بن کامل شجری متوفی (۳۵۰ هـ) د ابن جریرؒ نه نقل کړیدی چه ما په اُوه کلنئ کښې قرآن حفظ کړے وو، او د اتو کالو په عمر د خلقو سره په جماعت د مانځه کښې شریك شوے یم۔ او د نهه کالو په عمر مے حدیثونه آوریدلی دی او لیکل مے شروع کړیدی۔ ابتداء کښې ئے په آمل کښې د محدثینو نه احادیث واوریدل بیا د علم د طلب دپاره د ایران مشهور ښار (رئ) ته تشریف یوړو۔ او د امام احمد بن حنبلؒ نه د حدیث د سماع او د علم د زده کړے په اراده ئے بغداد ته سفر اُوکړو لیکن دده د رسیدلو نه لږ وخت مخکښې په سنه (۲٤۱ هـ) کښې امام احمدؒ وفات شوے وو، ددے وجه نه ئے د هغه د شاګردئ شرافت حاصل نکړے شو۔

لیکن د بغداد د نورو محدثینو او فقهاؤ نه ئے ډیر علوم حاصل کړل۔ ددے نه بعد د عراق واسط او کوفې ښار ته لاړو۔

بیا ئے د شام سفر اُوکړو او په بیروت کښې ئے څه موده قیام اُوکړو۔

او د قاری عباس بن ولید بیروتی نه ئے د شامیین د روایت مطابق د قراء ت علم حاصل کړو۔ بیا په سنه (۲۵۳ھ) کښې مصر ته نقل شو او په فسطاط مقام کښې ئے څه موده تیره کړه بیا شام ته لاړو او په سنه (۲۵٦ھ) کښې واپس مصر ته راغلو او د ربیع بن سلیمان مرادی نه ئے د فقه شافعیؒ علم حاصل کړو او د امام مزنیؒ سره ئے څه مناقشے هم اُوکړے۔ ددے نه بعد واپس بغداد ته راغلو او څه موده تیرولو نه بعد خپل آبائی وطن طبرستان ته لاړو لیکن آخری ځل د باقی عمر تیرولو په نیت واپس بغداد ته راغلو او په بغداد کښې په سنه (۳۱۰ھ) کښې وفات شو۔

خطیب بغدادیؒ فرمائی: دوی دومره زیاتَ علوم حاصل کړی وو چه دده معاصرینو نه هیڅوك دده هَمْ رُتبه موجود نهٔ وو۔ د قرآن حافظ وو، د قراء ت ماهر وو۔ د قرآن په معانیو کښې ئے بصیرت لرلو۔ د قرآن په احکامو کښې ئے فقاهت لرلو۔ د احادیثو عالم وو۔ د هغے د طرق او اسانید، صحیح او ضعیف او ناسخ او منسوخ علم ئے هم لرلو، د احکام او حلال او حرام د مسائلو په باره کښې ئے د صحابه، تابعین او د هغوی نه د روستنو علماؤ اقوال پیژندل او د تاریخی واقعات او اخبارو عالم وو۔ د «تاریخ الامم والملوك» په نوم سره دده کتاب مشهور دے۔ په تفسیر کښې ددهٔ د کتاب مثل موجود نهٔ دے۔ په حدیث کښې دده د کتاب نوم دے «تهذیب الآثار» ددے په شان کتاب ما نهٔ دے لیدلے لیکن دا کتاب ئے نهٔ دے مکمل کړے، او ده په فقه او اصول فقه کښې کتابونه لیکلی دی۔ دا د فقهاؤ په اقوالو کښې بعضو لره په بعضو ترجیح هم ورکوی او دده نه بعض داسے مسائل هم منقول دی چه په هغے کښې دا منفرد وو۔ علی بن عبد الله سمسانیؒ نه نقل شویدی چه ابن جریر (٤٠) کالو پورے د تصنیف او تالیف په کار مشغول وو۔ او هره ورځ به ئے (٤٠) څلویښت صفحے لیکلے۔

[تاریخ بغداد ١٦٢/٢) البدایة والنهایة لابن کثیر (١٤٥/١١] ۔

## دده د قناعت عجیبه واقعه:

خطیب بغدادیؒ د دوی د قناعت او صبر عجیبه واقعه په خپل سند سره د ابو العباس بکریؒ نه نقل کړیده هغه فرمائی: علمی سفریو ځل محمد بن جریر، محمد بن خزیمه، محمد بن مروزی او محمد بن هارون رویانی (رحم الله الجمیع) په مصر کښې راجمع کړل او تنګدسته شو، او لوږے پریشان کړل او د خوراك هیڅ نهٔ وو، په کوم کور کښې چه دوی

اُوسیدل نو دے څلور واړو د شپے مشوره اُوکړه او توړل پدے خبره متفق شو چه قرعه اندازی بـه اُوکـړو چـه د چا نوم راووتو نو هغه به ملګرو دپاره د چا نه خوراك غواړی (ځکه د لوږے ختـمـولـو دپاره سوال جائز دے) نـو قـرعه په محمد بن خزیمهٓ راووتله، نو هغه اُووئیل : [اَمهِلُوْنِیْ حَتّٰی اُصلِّیَ]۔

مـا تـه دومـره مهلت راکړئ چه زه مونځ اُوکړم۔ نو ابن خزیمه د هغوی نه جدا شو او په مانځه کښ مشغول شو۔

راوی وائـي : دوی لا پـه دغـه حال کښ وو چه د مصر د والي (ګورنر) یو قاصد راورسیدو او دروازه ئے اُووهـلـه۔ نـو بـاقی ملګرو هغه ته دروازه کولاوه کړه او قاصد د سورلئ نه راکوز شـو او تـپـوس اُوکـړو چـه تاسو کښ محمد بن نصر کوم دے ؟ نو دوی اُووئیل : هغه دا دے، نـو هغه یوه بټوه را اُوویستله چه په هغے کښ پنځوس دیناره وو او هغه ته ئے ورکړه۔ بیا ئے اُووئیـل: پـه تـاسـو کـښ مـحـمـد بن جـریـر څـوك دے ؟ اُووئیل شو دا دے۔ نو هغه ته ئے د پـنـځوس دینارو بټوه ورکړه بیا ئے اُووئیل تاسو کښ محمد بن اسحاق بن خزیمه څوك دے ؟ نـو هـغـه تـه ئے هم دغه شان ورکړه۔ بیا ئے د محمد بن هارون رویانی تپوس اُوکړو او هغه تـه ئے هم د پنځوس دینارو بټوه ورکړه۔ او دا ئے ورته اُووئیل: چه امیر صاحب پرون قیلوله (د غـرمے خـوب) کـولو چه په خوب کښ هغه ته اُووئیل شو چه د محمد نوم والا کسان د لـوږے د وجـه نـه خـپـل کـولـمے تاؤ کړیدی نو ددے وجه نه هغه تاسو ته دا بټوے راولیږلے او تـاسـو لـه دا قَسـم درکـوی چـه کله دا ختمے شی نو هغه ته به ضرور خبر ورکوئ چه نورے راولیږی۔

[تذکرة الحفاظ [۷۵۳/۲] وتاریخ بغداد [۱٦۵/۲]۔

بیا هـغـوی د دغـه عـلاقے نـه پـه جلتئ لاړل ځکـه چه خلقو پـه ویرے مشهور کړل۔ (مختصر قیام اللیل مقدمه)۔

## ابن جریر باندے د شیعیت الزام

حـافـظ ابـن کـثـیرؒ فـرمـائـي : د ابن جریرؒ وفات د اتوار په ماښام (۲۸) شوال سنه (۳۱۰ هـ) کـښ شـوے وو د هـغـه عـمـر (۸۵، یا ۸٦) کالو نه اوړیدلے وو لیکن د سر او ګیرے په ویښتو کـښ ئے ډیر تـور ویښتـه موجود وو۔ په خپل کور کښ د شپے په وخت دفن کړے شو پدے وجه چه د حنابله ؤ بعض عوامو اوبے وقوف خلقو د ورځے د دفن کولو نه منع کړے وو او په

هغـه باندے ئے د رفض (شیعیت) الزام لګولے وو بلکه جاهلانو په هغه باندے د الحاد الزام لـګـولـے وو او حـال دا چـه هـغـه ددے تولو الزاماتو نه پاك وو۔ بلکه د قرآن او سنت د علم او عمل په اعتبار سره د اسلام د امامانو نه یو امام وو۔

او عـوامـو دده مـخـالـفـت پـدے وجـه کـرے وو چه دۀ به د فقه ظاهری یعنی د امام ابن داود ظاهری تـقـلـیـد نـۀ کـولـو او چا چه به ددے خلاف خبر ے کولے نو عوامو به هغه باندے د رفض (شیعیت) او نور غټ غټ الزامات او تهمتونه لګول۔

ابن جریرؒ چه کله وفات شو نو د بغداد د هر طرف نه خلق راجمع شو او د هغه په کور کښې ئے د هغه جنازه اُوکړه او په کور کښې دفن کړے شو او ډیرو میاشتو پورے به خلق راتلل او د هغه په قبر به ئے د جنازے مونځ یا دعا کوله۔

مـا پـه دوه ضخیم جلدونو کښې دده کتاب کتلے دے چه په هغے کښې ئے د غدیر خُم احادیث جـمـع کـړیـدی، هغه ته دا منسوب شویده چه هغه به په اوداسه کښې په خپو باندے مسح کول جائز ګڼړل او د خپے وینځل به ئے واجب نۀ ګڼړل او د هغه په باره کښې دا خبره مشهوره شـویـده۔ بـعـض عـلـماء وائی چه د ابن جریرؒ په نوم دوه کسان مشهور دی یو شیعه دے چه هغه ته دا خبره منسوب شویده او بل سنی، یعنی ابوجعفر طبری۔ مونږ طبری ددے قسم خبرو نـه پاك ګڼړو، هغوی په خپل تفسیر کښې چه په کومه خبره اعتماد کړیدے هغه خو دا دے چـه پـه اوداسـه کـښې خـپـے ویـنځـل واجب دی او د وینځلو سره په لاسونو باندے خپے مـږل هـم واجـب دی لـیـکـن هغه د دلك (مږلو) نه په مسح سره تعبیر کړیدے، نو ډیر خلق د هـغـه پـه مـقـصـد نۀ دی پو هه شوی او څوك چه پو هه شویدی نو هغوی دده مسلك داسے نقل کړیدے چه دده په نیز د خپے وینځل او مږل دواړه واجب دی۔ والله اعلم۔

انتهی کلام ابن کثیر۔ (البدایة والنهایة ۱۱/۱٤٦)۔

نـو ثـابـتـه شـوه چه ابن جریرؒ د اهل السنة والجماعة نه یو امام وو او شیعه نۀ وو او د غدیر خُم احـادیـث جـمـع کـول د شیعیت علامه نۀ ده بلکه ډیر امامانو د اهل سنت والجماعة د غـدیـر خُم حدیث قابل قبول ګڼړی اګرکه شیعه ګان ئے غلط مفهوم بیانوی چه هغه ورسره اهل السنة والجماعة نۀ منی۔

او د ابـن جـریـرؒ په نوم باندے یو بل مفسر هم تیر شویدے چه هغه شیعه وو۔ لکه دا خبره خطیب بغدادیؒ، امام ذهبیؒ، شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ او حافظ ابن کثیرؒ ذکر کړیده۔

او د ابـن جـریـرؒ تـائـیـد ئے کړیدے۔ د هغه عقیده د اهل السنة وه لکه اُوګوره [لسان المیزان

(۱۰۰/۵)]۔

د سنی ابن جریر د نیکه نوم یزید وو او د رافضی ابن جریر د نیکه نوم رستم وو۔ عام خلق د نیکه نوم نهٔ ذکر کوی نو ددے وجه نه بعض علماؤ ته دا اشتباه شویده چه دهٔ ته بعض علماؤ څنګه شیعه وئیلے دی؟۔

او حافظ ابن حجرؒ چه دا خبره کړیده چه[فِيْهِ تَشَيُّعٌ يَسِيْرٌ لَا يَضُرُّ] ۔ (چه په ده کښې معمولی شان تشیع وو چه هغه ضرر نهٔ ورکوی)

نو کیدے شی چه ددے نه مراد دا وی چه دهٔ علی ﷺ د عثمان نه افضل ګڼړلو اګرچه په خلافت کښې ئے د عثمان نه مؤخر ګڼړلو او دا قسم شیعیت نقصان ده نهٔ دے لکه دا خبره امام ذهبیؒ د میزان الاعتدال په اوائلو کښې لیکلے ده۔ والله اعلم۔

شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ نه تپوس شویدے چه کوم تفسیر دیر صحیح دے ؟ نو هغه داسے فرمائیلی دی :

[وَاَمَّا التَّفَاسِيْرُ الَّتِىْ فِىْ اَيْدِىْ النَّاسِ فَاَصَحُّهَا تَفْسِيْرُ مُحَمَّدِ بْنِ جَرِيْرِ الطَّبَرِيِّ فَاِنَّهُ يَذْكُرُ مَقَالَاتِ السَّلَفِ بِالْاَسَانِيْدِ الثَّابِتَةِ وَلَيْسَ فِيْهِ بِدْعَةٌ وَلَايَنْقُلُ عَنِ الْمُتَّهَمِيْنَ كَمُقَاتِلِ بْنُ بُكَيْرٍ وَالْكَلْبِيِّ]

[مقدمة تفسیر فتاوی ابن تیمیه ۳۸۵/۱۳]۔

(کوم تفاسیر چه د خلقو په لاسونو کښې دی نو پدے کښې دیر صحیح د محمد بن جریر الطبریؒ تفسیر دے څکه چه دا د سلفو اقوال په صحیح اسانیدو سره نقل کوی، پدے کښې بدعت هم نشته او دا د هغه خلقو نه روایات نهٔ نقل کوی چه په هغوی باندے د دروغو وئیلو تهمت لګولے شویدے لکه مقاتل بن بکیر او کلبی)۔

جلال الدین سیوطیؒ متوفی (۹۱۱ھ) په الاتقان کښې لیکلی دی :

[فَاِنْ قُلْتَ : فَاَیُّ التَّفَاسِيْرِ تُرْشِدُ اِلَيْهِ وَتَأْمُرُ النَّاظِرَ اِنْ يُعَوِّلَ عَلَيْهِ ؟ قُلْتُ : تَفْسِيْرُ الْاِمَامِ اَبِىْ جَعْفَرِ بْنِ جَرِيْرِ الطَّبَرِيِّ الَّذِىْ اَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ الْمُعْتَبَرُوْنَ عَلٰى اَنَّهُ لَمْ يُؤَلَّفْ فِى التَّفْسِيْرِ مِثْلُهُ قَالَ النَّوَوِیُّ فِىْ تَهْذِيْبِهٖ كِتَابُ ابْنِ جَرِيْرٍ فِى التَّفْسِيْرِ لَمْ يُصَنِّفْ اَحَدٌ مِثْلَهُ] (الاتقان فی علوم القرآن ۵۰۲/۲)۔

(که ته اُووائے چه ته کوم تفسیر طرف ته رهنمائی کوے او تفسیرونو کتونکو ته مشوره ورکوے چه په هغے باندے اعتماد اُوکړی ؟ نو زه وایم چه د ابن جریر طبریؒ تفسیر هغه تفسیر دے چه ددے په باره کښې د معتبر علماؤ اتفاق دے چه په تفسیر کښې ددے په شان کتاب نهٔ دے تصنیف شوے، امام نوویؒ په تهذیب الاسماء واللغات کښې فرمایلی دی : د ابن جریرؒ د تفسیر په

شان بل هیچا تفسیر نهٔ دے لیکلے)۔
دغه شان ددے تفسیر مدح او صفت خطیب بغدادیؒ، مشهور فقیه ابو حامد اسفرائینیؒ او محمد بن خزیمهٔ کړیدے۔
ابوبکر بن خالویهٔ نه نقل دی چه ابن جریرؒ دا تفسیر په اته کاله کښې مکمل کړیدے او بیا ابن خزیمهٔ ما نه دا تفسیر عاریهٔ واخستو او ډیرو کلونو پورے ئے مطالعه کړو او واپس ئے راکړو او دا ئے اُوفرمایل : [قَدْ نَظَرْتُ فِيْهِ مِنْ اَوَّلِهِ اِلٰى آخِرِهِ وَمَا اَعْلَمُ عَلٰى اَدِيْمِ الْاَرْضِ اَعْلَمَ مِنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَرِيْرٍ وَلَقَدْ ظَلَمَتْهُ الْحَنَابِلَةُ] ۔
(ما دا کتاب د اول نه تر آخر پورے په غور او فکر سره مطالعه کړو او ما ته په مخ د زمکه باندے د محمد بن جریر نه غټ عالم نهٔ دے معلوم۔ او حنابله وُ په ده باندے ظلم کړیدے)۔
[تاریخ بغداد ۱۶۳/۲] ۔

## ۳-ابن المنذر النیشاپوری المتوفی :(۳۱۸ھ)

ابوبکر محمد بن ابراهیم بن المنذر النیشاپوری شیخ الحرم۔
نیشاپور مشهور ښار دے، هغه ته منسوب دے لیکن ده بیا نقل مکانی اُوکړو او مکے مکرمے ته نقل شو او هلته ئے سکونت اختیار اُوکړو۔ پدے وجه دا په شیخ الحرم لقب سره مشهور شو۔ د صحیح قول مطابق دا په (۳۱۸ھ) کښې وفات شوے دے۔
علامه ذهبیؒ فرمائی : دا حافظ او فقیه وو او په فقه کښې ده د (المبسوط) په نوم یو داسے کتاب لیکلے دے چه د هغے مثال نهٔ ملاویږی او په اختلافی مسائلو کښې د دوی کتاب (الاشراف فی اختلاف العلماء) ډیر مفید کتاب دے۔ دا د هیڅ امام مقلد نهٔ وو بلکه مجتهد وو۔ [تذکرة الحفاظ للذهبی طبع حیدر آباد (۷۸۲/۳]۔
تاج الدین السبکیؒ متوفی (۷۷۱ھ) لیکلی دی چه محمد بن نصر، محمد بن جریر، محمد بن خزیمه او محمد بن منذر څلور واړه د اجتهاد مطلق درجے ته رسیدلی وو لیکن د هغوی آراء د امام شافعیؒ د آراؤ موافق وے پدے وجه دوی په فقهاء شافعیه کښې شمارلے کیږی۔

## (٤) ابن ابی حاتم رازیؒ

### المولود (۲٤۰ھ) المتوفی (۳۲۷ھ)

شیخ الاسلام ابو محمد عبد الرحمن بن ابی حاتم الرازیؒ دا د خپل والد ابو حاتم په اسم

کنیه سره مشهور دے۔لیکن د هغه نوم محمد بن ادریس وو او د ایران مشهور ښار (رَیْ) ته نسبت د وجه رازی وئیلے کیږی۔

ابن ابی حاتم او د هغه پلار دواړه پلار او ځوی حافظ الحدیث وو او په خپل دور کښ لوئی لوئی امامان وو۔دا وائی زه خپل والد محترم ځان سره سفر ته روان کړم، دے دپاره چه ما د لوئی لوئی محدثینو او علماؤ سره ملاؤ کړی او ما ته د هغوی نه د احادیثو د آوریدو سعادت نصیب شی۔ کله چه مونږ ذو الحلیفه (د مدینے والو میقات دے) ته اُورسیدو نو زه بالغ شوم، پدے باندے زما والد ډیر خوشحال شو چه زه به اُوس فرضی حکم (حج) هم ادا کولے شم، که بلوغ ته نهٔ وے رسیدلے او د ذو الحلیفے نه مے د حج احرام تړلے وے نو دا به نفلی حج شمارلے کیدے او فرضی حج به زما په ذمه باقی پاتے وے۔

پدے سفر کښ هغوی د وقت د اکابر محدثین او فقهاؤ په مجالسو کښ شرکت اُوکړو او (اسانید عالیه) ئے حاصل کړل۔ پنځه کاله بعد ئے په سنه (۲۶۰ هـ) کښ دوباره د خپل والد محترم سره حج اُوکړو او د مختلف اهل علمو نه ئے شرف د تلمذ حاصل کړو۔ ددے نه بعد په (۲۶۲ هـ) کښ د علم د طلب دپاره شام او مصر ته سفر اُوکړو او په سنه (۲۶٤ هـ) کښ مشهور علمی مرکز اصبهان ته تشریف یوړو او هلته ئے د علم او تحقیق او تدریس او تصنیف کار جاری اُوساتلو، آخر دا چه په محرم سنه (۳۲۷ هـ) کښ وفات شو۔

دده والد ابوحاتم رازیؒ او ابوزرعه رازیؒ ممتاز ائمه د حدیث شمار کیږی، او دے دواړو سره چه څومره علم وو هغه دهٔ حاصل کړے وو۔

ابن ابی حاتم د ابن جریر طبریؒ او کتب سته ؤ د مصنفین هم عصر وو۔ او د تفسیر او تدوین حدیث زیات کار په دغه دور کښ شوے وو۔

دا د علوم او رواة الحدیث په باره کښ د معلوماتو یو سمندر وو چه ددے ثبوت دا دے چه دوی مشهور کتاب (الجرح والتعدیل) لیکلے دے۔ خپله ډیر لوئی عابد او زاهد وو، د دوی والد محترم به وئیل چه د عبد الرحمن په شان عبادت څوك كولے شی ؟ ما ته معلومه نهٔ ده چه دوی به کومه ګناه کړی وی۔

دوی په فقه، او د اختلاف الصحابه والتابعین په موضوعاتو باندے بهترین کتابونه لیکلی وو او په ډیرو جلدونو کښ ئے د قرآن تفسیر لیکلے وو چه د هغے نوم دے : [تفسیر القرآن العظیم مسند عن الرسول و الصحابة و التابعین] [تذکرة الحفاظ للذهبی ۸۲۹/۳]۔

حافظ ابن کثیرؒ متوفی (۷۷۴ھ) ددے تفسیر متعلق فرمائی:

[وَلَهُ التَّفْسِيْرُ الْحَافِلُ الَّذِىْ اشْتَمَلَ عَلَى النَّقْلِ الْكَامِلِ الَّذِىْ يَرْبُوْ فِيْهِ عَلٰى تَفْسِيْرِ ابْنِ جَرِيْرِ الطَّبَرِيِّ وَغَيْرِهٖ مِنَ الْمُفَسِّرِيْنَ اِلٰى زَمَانِنَا]۔

(ابن ابی حاتم یو جامع تفسیر لیکلے دے چه په کامل نقل او روایت مشتمل دے چه د احادیث او آثارو د نقل کولو په باره کښ د ابن جریرؒ په تفسیر باندے فوقیت لری او زمونږ زمانے پورے د نورو مفسرینو په تفاسیرو باندے هم فوقیت لری)۔

پدے تفسیر کښ احادیث د رسول الله ﷺ، آثار د صحابه کرام، آثار د تابعین او تبع تابعینو او د تبع تابعینو د شاگردانو ډیر آثار نقل شویدی تردے چه د قرآن د یو لفظ د تفسیر په باره کښ هم که دوی ته کوم روایت ملاؤ شویدے نو هغه ئے هم نقل کړیدے۔

ابن کثیرؒ د کثرت روایات په اعتبار سره دوی ته په ابن جریرؒ باندے فوقیت ورکړیدے۔ اگرکه د نورو خصوصیاتو په لحاظ د ابن جریرؒ مقام ډیر اُوچت دے۔

شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ هم ددهٔ نه په خپلو کتابونو کښ روایات نقل کړیدی۔ ابن حجرؒ په فتح الباری او علامه عینیؒ په عمدة القاری کښ هم ددے تفسیر نه روایات نقل کوی او د تفسیر ابن کثیرؒ او د تفسیر در منثور د روایاتو لوئی مأخذ همدا تفسیر دے لیکن پدے کښ ضعیف او غریب احادیث او آثار هم په ډیر تعداد کښ نقل شویدی۔

ددے تفسیر دوه ضخیم جلدونه دارطیبه ریاض په سنه (۱۴۰۲ھ) کښ د جامعه ام القرآن مکے مکرمے ډاکټر احمد عبد الله العماری په تخریج او تحقیق سره په اعلی کتابت او طباعت سره چاپ کړیدی۔

دا دوه جلدونه د سورت فاتحه، سورة بقره، او سورة آل عمران په تفسیر باندے مشتمل دی او د باقی معلومات لا تر اُوسه نشته۔ اگرکه بغیر د تحقیق نه تول تفسیر ابن ابی حاتم موجود دے۔

(۵) **ابن مَردَویهٌ** المولود (۳۲۳ھ) المتوفی (۴۱۰ھ)

حافظ ابوبکر احمد بن موسی بن مردویه الاصبهانیؒ۔

دا د ایران قدیمی علمی مرکز اصبهان ته منسوب دے او مَرْدَوَیه د هغه د نیکه نوم دے ددے وجه نه دا د ابن مردویه په نوم مشهور دے۔

مردویه فارسي نوم دے۔ دوی په صحیح بخاري باندے مستخرج هم لیکلے دے او تفسیر ئے هم لیکلے دے۔ ابن کثیر، در منثور او نور تفاسیر هم د دوی نه روایات نقل کوی۔ [تذكرة الحفاظ]۔

دا تفسیر اُوس نایاب دے۔

## (٦) بحر العلوم تفسیر سمرقندي (متوفی : ۳۷۵ھ)

ددے تفسیر نوم بحر العلوم دے لیکن په تفسیر سمرقندي سره مشهور شویدے۔

دده مکمل نوم ابو اللیث نصر بن محمد بن ابراهیم الخطاب السمرقندي دے۔ مشهور فقیه دے او په الفقیه او امام الهُدیٰ لقب سره مشهور دے۔ او اسم کنیه باندے زیات مشهور دے۔

په تفسیر سمرقندي کښې احادیث او آثار نقل شویدي لیکن په هغے کښې اسرائیلیات او ضعیف روایات هم موجود دي۔ معلومیږي چه د سند د صحت یا د عدم صحت معلومولو څه خاص اهتمام ئے نهٔ وو کړے، دا تفسیر د الفاظ او کلماتو لغوي معاني په، ډیر آسان انداز کښې بیانوي، د اهل لغتو (ابن قتیبه، اصمعي، زجاج او خلیل نحوي) اقوال ځائے په ځائے نقل کوي۔

دا تفسیر دار الکتب العلمیه په درے جلدونو کښې په سنه (۱۹۹۳ء) کښې شائع کړیدے او د جامعه ازهر درے فضلاؤ پرے تحقیق کړیدے (شیخ علی محمد معوض، شیخ عادل احمد عبد الموجود او ډاکټر زکریا عبد المجید)۔

او په څلورو جلدونو کښې هم موجود دے۔

## ۷- النکت والعیون تفسیر الماوردي (متوفی ٤٥٠ھ)

د ماوردي نوم دے علي بن محمد بن حبیب البصري او کنیه ئے ابو الحسن ده۔ ماورد مخفف دے د مَاءُ الْوَرَد نه یعني د ګلابو اُوبه)۔ ددهٔ والد محترم به عرق ګلاب جوړولو او د هغے تجارت به ئے کولو پدے وجه دا د ماوردي په نوم مشهور شویدے۔

دده تاریخ پیدائش په بصره کښې په سنه (۳٦٤ھ) کښې شویدے۔ چه دا د دولت عباسیه د عروج دور وو او پدے دور کښې د علوم او فنونو درس او تدریس، تصنیف او تالیف او نشر او اشاعت ډیره ترقي کړے وه۔ ابتدائي علوم ئے په بصره کښې د ابو القاسم صیمري متوفی

(۳۸٦ هـ) نه حاصل کړل چه دا د بصرې په هغه زمانه کښې لوئی عالم وو۔ او د فقه شافعی ممتاز فقیه وو۔

ددې نه بعد بغداد ته نقل شو او د مختلفو اساتذهٔ نه ئې د حدیث او فقه سماع اُوکړه په آخر کښې د فقه شافعی حافظ او ممتاز امام ابوحامد اسفرائینی متوفی (٤٠٦ هـ) درس کښې شریك شو، دا وجه ده چه ماوردی هم د اسفرائینی د شاګردئ د وجه نه په فقهاء شافعیهٔ کښې لوئی مقام لرلو او په مختلفو علاقو کښې قاضی پاتې شویدې او په سنه (٤٢٩ هـ) کښې دهٔ ته د قاضی القضاة لقب ورکړې شو۔

د تفسیر نه علاوه ئې «الاحکام السلطانیه، ادب الوزیر او ادب القاضی» مشهور کتابونه لیکلی دی۔ په ربیع الاول سنه (٤٥٠ هـ) کښې وفات شویدې، خطیب بغدادیؒ د ماوردیؒ شاګرد وو، هغه فرمائی: ما دهٔ جنازه کړیده او دا (۸٦) کاله عمر ته رسیدلې وو۔ [تاریخ بغداد ۱۰۲/۱۲]۔

ماوردیؒ د آیت په تفسیر کښې د سلف او خلف یعنی د صحابه کرام او تابعینو تمام اقوال نقل کوی، لغوی تحقیقات هم کوی او د مفرداتو ډیر دقیق طریقې سره تجزیه کوی۔ قراء ات او فقهی احکام هم ذکر کوی۔ او په اقوالو کښې د ترجیح کوشش هم کوی، په آثار د صحابه کرام او تابعینو کښې دده لوئی مرجع او مصدر تفسیر ابن جریر دې، په لغوی او نحوی تحقیقاتو کښې د فراء، اخفش، ثعلب، مبرد، زجاج او د ابوعبیده د کتابونو نه زیاته استفاده کوی او د سیبویه او خلیل اقوال هم نقل کوی۔ او په فقهی احکامو کښې د امام شافعی اقوالو ته زیات اهمیت ورکوی لیکن د امام مالك، امام ابوحنیفه او د امام داود ظاهری آراء هم ذکر کوی۔

دهٔ په خپل تفسیر کښې خپل منهج داسې بیان کړیدې:

[وَلَمَّا كَانَ الظَّاهِرُ الْجَلِيُّ مَفْهُومًا بِالتِّلَاوَةِ وَكَانَ الْغَامِضُ الْخَفِيُّ لَايُعْلَمُ إِلَّا مِنْ وَجْهَيْنِ نَقْلٍ وَاجْتِهَادٍ جَعَلْتُ كِتَابِيْ هٰذَا مَقْصُوْرًا بَيْنَ تَاوِيْلِ مَا خَفِيَ عَمَلُهُ وَتَفْسِيْرُ مَا غَمَضَ تَصَوُّرُهُ وَفَهْمُهُ، وَجَعَلْتُهُ جَامِعًا بَيْنَ اَقَاوِيْلِ السَّلَفِ وَالْخَلَفِ وَمُوْضِحًا عَنِ الْمُؤْتَلِفِ وَالْمُخْتَلِفِ وَذَاكِرًا مَا سَنَحَ بِهِ الْخَاطِرُ مِنْ مَعْنًى يَحْتَمِلُ عَبَّرْتُ عَنْهُ بِاَنَّهُ مُحْتَمَلٌ لِيَتَمَيَّزَ مَا قِيْلَ مِمَّا قُلْتُهُ وَيُعْلَمَ مَا اسْتُخْرِجَ مِمَّا اسْتَخْرَجْتُهُ وَعَدَلْتُ عَمَّا ظَهَرَ مَعْنَاهُ مِنْ فَحْوَاهُ اِكْتِفَاءً بِفَهْمِ قَارِئِهِ وَتَصَوُّرِ تَالِيْهِ]۔

(کله چه ظاهري او ښکاره مفهوم د تلاوت نه معلومېږي او پټ او خفي علم نشي حاصلیدے مګر په دوه طریقو سره یو په نقل او بل په اجتهاد سره پدے وجه ما خپل دے کتاب کښ د هغه آیتونو په تاویل او تفسیر باندے اکتفاء کړیده چه د هغے په علم او فهم کښ څه خفاء او مشکلات وي، ما پدے کتاب کښ د سلف او خلفو اقوال راجمع کړیدي او د اتفاقي او اختلافي امورو وضاحت مے هم کړیدے. زما په زړه کښ چه کومه احتمالي معنی راغلے ده د هغے ذکر مے د محتمل په لفظ سره کړیدے دے دپاره چه د نقل شوی اقوالو او زما د قول ترمینځ فرق راشي او د منقول او مستنبط ترمینځ امتیاز راشي او د کومو آیتونو مفهوم چه د سیاق د کلام نه واضح کیږي د هغے بیانولو ته ما توجه نهٔ ده ورکړے بلکه د هغے معلومول مے د قاري په فهم او تصور باندے پریخی دي).

د ماوردیؒ دا تفسیر په شپږ (٦) جلدونو کښ دار الکتب العلمیه بیروت سنه (۱۹۹۲ء) کښ شائع کړیدے چه په هغه باندے سید بن عبد المقصود بن عبد الرحیم تفصیلي تعلیق لیکلے دے. ددے نه علاوه په څلور جلدونو کښ هم موجود دے.

## ۸- معالم التنزیل للبغوی متوفی (۵۱۶ھ)

د بغویؒ نوم حسین بن مسعود دے لیکن د فراء بغوی په نوم مشهور دے. فراء پوستین (کوټ) ته وئیلے شي، چونکه دهٔ به پوستینونه خرڅول او دا ددهٔ خانداني پیشه وه نو پدے وجه د فراء په نوم به پیژندلے شو.

او بغوی ورته ځکه وائي چه دا منسوب دے بَغْشُوْر علاقے ته چه دا د هرات او مروروذ ترمینځ مشهور ښار دے. چه پدے ښار کښ دا پیدا شوے وو. هرات د افغانستان مشهور ښار دے او اُوس هم په همدے نوم مشهور دے او مروروذ د مرو صغریٰ په نوم پیژندلے شي. دا د مشهور ښار (مرو الشاهجهان) نه (۱۶۰) میله لرے د نهر مرغاب په غاړه باندے آباد وو او په شمالي افغانستان کښ د ترکستان په حدودو کښ شامل وو. د خراسان دا علاقه د عثمان بن عفان په دور خلافت کښ په سنه (۳۲ھ) کښ احنف بن قیس رحمه الله فتح کړے وه.

په اسلامي تاریخ کښ (مَرُوَ) ته ډیر لوئي شهرت حاصل دے ځکه چه د اولنئ صدئ هجري نه تر شپږمے صدئ هجري پورے دا ښار د لوئي لوئي علماء او فحولو مرکز پاتے شویدے. امام بغویؒ هم پدے ښار کښ پیدا شویدے پدے وجه دهٔ ته بغوي وئیلے شي.

ددهٔ په تاریخ وفات کښې خو اتفاق دے (سوئ د ابن خلکان نه) چه دا په سنه (۵۱۶ هـ) کښې وفات دے او عمر ئے (۸۰) کالو نه زیات وو۔ او د ابن خلکان په نیز په سنه (۵۱۰ هـ) کښې وفات دے۔ پدے حساب سره ددهٔ تاریخ ولادت د پنځم صدئ هجری د عشره رابع په اوائلو کښې شویدے۔ او یاقوت حموی په معجم البلدان کښې لیکلی دی چه دا په سنه (۴۳۳ هـ) کښې پیدا شویدے۔ دده خاندان د فقه شافعی متبعین وو۔لیکن ده ته په تفسیر، حدیث او فقه درے واړو کښې امامت او قیادت او ریاست حاصل شویدے۔ په تفسیر کښې ئے (معالم التنزیل) او په حدیثو کښې ئے (شرح السنه او المصابیح) او په فقه کښې ئے (التهذیب) لیکلے دے۔ چه دا ټول معتمد او متداول کتابونه دی۔ او الله تعالیٰ ورله ډیر مقبولیت ورکړیدے۔

ددهٔ مشهور استاذ ممتاز عالم دین د خراسان شیخ الشافعیه قاضی حسین بن محمد مروزی متوفی (۴۶۲ هـ) وو۔

ابن خلکان د بغوی تعارف داسے کوی : ((د فقه شافعی لوئی فقیه، محدث وو، مفسر وو، او بحر العلوم یعنی د علومو سمندر وو)) [وفیات الاعیان لابن خلکان ۱۳٤/۲]۔

حافظ شمس الدین ذهبیؒ متوفی (۷٤۸هـ) لیکی :

امام بغوی امام وو، حافظ وو، فقیه وو، مجتهد وو، محی السنه (د سنت ژوندے کونکے) و،، د معالم التنزیل، شرح السنه، التهذیب او مصابیح السنه او نورو کتابونو مصنف وو۔ دهٔ فقه د قاضی حسین نه حاصل کړے وه او د هغه نه ئے احادیث هم نقل کړی وو۔

[تذکرة الحفاظ للذهبی (۱۲۵۷/٤]۔

حافظ ابن کثیرؒ متوفی (۷۷٤هـ) لیکی :

[كَانَ عَلَّامَةَ زَمَانِهٖ فِيْهَا كَانَ دَيِّنًا وَرِعًا، زَاهِدًا عَابِدًا، صَالِحًا، تُوُفِّيَ فِيْ شَوَّالَ مِنْهَا وَقِيْلَ فِيْ سَنَةِ عَشْرٍ فَاللّٰهُ اَعْلَمُ وَدُفِنَ مَعَ شَيْخِهِ الْقَاضِيْ حُسَيْنٍ بِالطَّالْقَانِ] [البداية والنهاية ۱۹۳/۱۲] ۔

(بغوی په علومو کښې علامه د زمانے وو، او دیندار، پرهیزګار، زاهد، عابد او صالح عالم وو۔ په شوال سنه (۵۱٦ هـ) کښې وفات شویدے۔ بعض وائی : په سنه (۵۱۰ هـ) کښې وفات دے۔ او په طالقان کښې د خپل شیخ د قاضی حسین د قبر سره دفن شوے وو۔

امام بغویؒ خپل تفسیر معالم التنزیل د تفسیر بالماثور په طرز باندے لیکلے دے، مختصر مګر ډیر جامع تفسیر دے، آیتونو سره متعلق احادیث او آثار چه نقل کوی نو په

هغې کښې د صحت د اسانید او طرقو خاص طور سره اهتمام کوی۔ ډیر لوئی محدث دے او د محی السنه په لقب سره مشهور دے ددے وجه نه نقل کړی روایات ئې اکثر معتمد دی۔

**شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ د یو سوال چه جواب کښې فرمائی :**

[فَاَسْلَمُهَا مِنَ الْبِدْعَةِ وَالْاَحَادِيْثِ الضَّعِيْفَةِ الْبَغَوِيُّ ......وَتَفْسِيْرُهٗ مُخْتَصَرٌ مِنْ تَفْسِيْرِ الثَّعْلَبِيِّ لٰكِنَّهٗ صَانَ تَفْسِيْرَهٗ عَنِ الْاَحَادِيْثِ الْمَوْضُوْعَةِ وَالْآرَاءِ الْمُبْتَدَعَةِ] [مقدمة تفسیر فتاوی [۳۸٦/۱۳]۔

(د بدعت او د ضعیف احادیثو نه ډیر محفوظ تفسیر د بغوی رحمه الله تفسیر دے، ددهٔ تفسیر د ثعلبی د تفسیر نه مختصر شویدے لیکن دهٔ خپل تفسیر د موضوع احادیثو او بدعتی آراؤ نه محفوظ کړیدے)۔

بغویؒ د ټولو نه مخکښې مختصر او آسان الفاظو کښې دآیت تفسیر کوی او بیا د غریب الفاظو د معانیو وضاحت کوی او د آیتونو ترمینځ تطبیق هم کوی۔ د اهل سنت او مبتدعینو ترمینځ اختلافی مسائلو کښې د اهل سنتو د رائے تائید کښې دلائل بیانوی او په مبتدعینو ردونه کوی۔لکه په آیت : (لاتدرکه الابصار (الانعام ۱۰۳) په تفسیر کښې ئې نور آیاتونه او احادیث راوړیدی او د الله تعالیٰ د رؤیت په مسئله کښې ئې د اهل سنة والجماعة د عقیدے تائید کړیدے۔ او په معتزله ؤ باندے ئې ردونه کړیدی۔ دغه شان د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو کښې په معتزله او جهمیه ؤ باندے رد کوی او د اهل سنة د عقیدے اثبات کوی چه په قرآن او سنت کښې د الله تعالیٰ کوم صفات مثلاً وجه، عین ید، رجل، ساق، اتیان، آسمان د دنیا ته نزول، استواء علی العرش، ضحك، فرح او دغه شان نورو صفاتو د الله باندے بغیر د تاویل او بغیر د تشبیه نه ایمان راوړل ضروری دی۔ لکه څنګه چه الله تعالیٰ ذات د مخلوق د ذواتو سره مشابه نهٔ دے نو دغه شان د هغه صفات هم د مخلوق د صفاتو سره مشابه نهٔ دی۔او پدے باندے د سلف او علماؤ اقوال او دلائل تفصیل سره ذکر کوی۔

په آیتونو د احکامو کښې د فقهاؤ آراء هم ذکر کوی۔ اکثر مسائلو کښې د امام شافعیؒ رائے ته ترجیح ورکوی لیکن په بعض مقاماتو کښې بغیر د ترجیح نه تیریږی۔

د بغوی تفسیر اګرکه د اسرائیلیات او ضعیف روایاتو نه بالکل خالی نهٔ دے ځکه چه د محمد بن سائب کلبی کوفی متوفی (۱٤٦ هـ) په شان مجروح راویانو روایات ئې هم په

تفسیر کښې کافي تعداد کښې نقل کړیدي لیکن په هغه روایاتو باندې ئې استدلال نهٔ دې کړې.

حاصل دا چه په مجموعي طور سره دا تفسیر هم ډیر مفید دې، دا تفسیر بار بار شائع شویدې لیکن په سنه (۱۴۰۹ھ) کښې دار طیبه ریاض د احادیثو د تخریج او تحقیق سره په بهترین طباعت او کتابت کښې شائع کړیدې.

او ددې نه یو مختصر تفسیر هم جوړ شویدې دکتور عبد الله بن احمد بن علي الزید مختصر کړیدې.

محمد رشید رضا د هغې په مقدمة الطبع کښې ډیر صفت کړیدې سنه (۱۳۴۳ھ).

## ۹- زاد المسیر د ابن الجوزي متوفی (۵۹۷ھ)

د ابن الجوزيؒ نوم عبد الرحمن بن ابي الحسن دې او کنیه ئې ابو الفرج ده لیکن ددهٔ جد اعلیٰ په جعفر جوزي نوم سره مشهور وو. پدې وجه دا په ابن جوزي سره مشهور شو. جوز د غوزانو ونې ته وئیلې شي. بعض وائي چه دا د بصرې د نهر په بنې طرف کښې د یو ځائې نوم (فرضة الجوزه) وو چه هغې ته جعفر منسوب وو.

بعض وائي : په بصره کښې د یوې محلې نوم جَوْزَه وو.

او یو قول دا هم دې چه په واسِط کښې ددهٔ په کور کښې د غوزانو ونه وه او په واسِط کښې بل ځائې د غوزانو ونه نهٔ وه.

ابن جوزيؒ وائي چه ما ته خپل تاریخ پیدائش خو معلوم نهٔ دې لیکن دومره راته یاد دي چه زما والد محترم په سنه (۵۱۴ھ) کښې وفات شوې وو. او زما والدې به وئیل چه په هغه وخت کښې زما عمر د درې کالو وو. نو پدې حساب سره د هغه د ولادت تاریخ سنه (۵۱۱ھ) یا (۵۱۲ھ) جوړیږي.

دا په بغداد کښې پیدا شوې وو، مور او ترور ئې تربیت او کفالت کړې وو او بیا په (۱۲) رمضان المبارك (۵۹۷ھ) کښې وفات شوې وو. د وفات په وخت ددهٔ عمر د (۹۰) کالو نه اوړیدلې وو. ددهٔ د مرګ په خبر سره د بغداد ټول بازارونه بند شو. او د بغداد تقریباً ټول خلق ددهٔ په جنازه کښې شریك شو.

علامه ابن جوزيؒ د هر فن ممتاز او مشاهیرو علماؤ نه علوم حاصل کړي وو، په تفسیر، حدیث، فقه او نورو علوم او فنونو کښې دوی کتابونه لیکلي دي او دا په لوئې محدثینو

کښې شمار کیږي. دا ډیر لوئی واعظ وو او ددهٔ د وعظ په مجالسو کښې به زرګونو خلقو شرکت کولو.

ابن خلکان متوفی (۶۸۱ هـ) ددهٔ تعارف داسے کوی:

[كَانَ عَلَّامَةَ عَصْرِهِ وَإِمَامَ وَقْتِهِ فِي الْحَدِيْثِ وَصِنَاعَةِ الْوَعْظِ صَنَّفَ فِيْ فُنُوْنٍ عَدِيْدَةٍ] (وفيات الاعيان ۱٤۰/۳).

(ابن جوزیؒ علامه د زمانے وو او په حدیث او فن خطابت کښې د خپل دور امام وو. او په ډیرو فنونو کښې ئے تصنیفات کړیدی)

ددهٔ کتابونه ډیر مفید دی لکه صید الخاطر، تلبیس ابلیس، او موضوعات ابن جوزیؒ وغیره.

دا په خپل تفسیر زاد المسیر کښې د آیتونو په تفسیر کښې احادیث او آثار او ډیر اقوال نقل کوی او په نقل د روایاتو کښې ئے لوئی مصدر او مرجع تفسیر ابن جریرؒ دے لیکن په اقوالو کښې ترجیح نهٔ ورکوی بلکه صرف ئے نقل کړی او مخکښې لاړ شی نو ددے وجه نه دا تفسیر د اسرائیلیات او ضعیف روایاتو نه هم خالی نهٔ دے. لیکن ددے نقصاناتو سره سره دیر مفید هم دے.

مکتبه اسلامی بیروت دا تفسیر په سنه (۱۹٦٤ء) کښې اول ځل د تحقیق او تعلیق سره شائع کړیدے.

## ۱۰. المحرر الوجيز في تفسير الكتاب العزيز

### د ابن عطية غرناطي متوفى (٥٤۱ هـ)

دده نوم عبد الحق بن غالب دے او اسم کنیه ئے ابو محمد ده، لیکن د بره نیکه نوم ئے عطیه وو او د تولو نه رومبے اندلس ته همدا داخل شوے وو. ددے وجه نه هغه ته د نسبت د وجه نه دا په ابن عطیه نوم سره مشهور شو. د اندلس مشهور ښار غرناطه ته منسوب دے. دا د نسب په اعتبار سره خالص عرب وو ځکه د عطیه بره نیکه زید بن محارب د مضر بن نزار د نسل نه وو چه هغه د عربو مشهوره قبیله ده.

تاریخ پیدائش ئے په سنه (٤۸۱ هـ) کښې شوے دے او په وفات کښې ئے اختلاف دے لیکن د صحیح قول مطابق په (۲۵) رمضان سنه (٥٤۱) کښې وفات شوے وو. د ابن عطیه تربیت

په علمي کورنۍ او خاندان کښې شوے وو، په هغه وخت کښې غرناطه د علوم او فنونو مرکز وو۔
د نسب او علم دواړو شرافت دوی ته الله تعالیٰ ورکړے وو۔
د دوی پلار ابوبکر غالب بن عطیه فقیه، محدث او زاهد وو او د اندلس په مشهورو علماؤ کښې شمار دے، ددهٔ علمي مجلس ته به طلباؤ حاضري ورکوله او ابن عطیهٔ وړوکے وو نو هغه به ددے علمي ماحول نه متأثره کیدو او پدے علمي فضاء کښې به ددهٔ تربیت کیدو۔
خپل والد محترم ورله د بهترین اساتذو انتخاب کړے وو او خپله ئے هم د هغه په تعلیم او تربیت کښې خصوصي دلچسپي لرله، ددے علمي ماحول او اعلیٰ تعلیم او تربیت دا اثر وو چه ابن عطیه د ذهانت، فطانت او عقلمندیٔ اعلیٰ مقام باندے فائز شو۔ او د علومو د حاصلولو او د کتابونو د جمع کولو ډیر شوق ئے لرلو۔ ددے شوق او علمي تندی د ماتولو دپاره ئے د اندلس لوئی لوئی علمي مراکزو ته سفر اُوکړو او د خپل وخت د نامورو علماؤ نه ئے علوم حاصل کړل تردے چه په اندلس کښې د اهل السنة والجماعة د افاضل علماؤ نه شمار شو۔
د اندلس په ښار (مُریه بروزن غُنیه) یا مریّه بروزن غَنیّه) کښې ډیرے مودے پورے قاضي مقرر وو۔ پدے وجه دا په قاضي ابن عطیه باندے مشهور دے او په تفسیر کښې چه کله خپله رایه ورکوی نو داسے الفاظ استعمالوی : [قال القاضی ابومحمد]۔
ابن عطیه د باطل په مقابله کښې د جهاد بالعلم سره جهاد بالسیف کښې هم حصه اخستے وه، د کافرانو سره د مقابلو دپاره به د کور نه ډیره ډیره موده غائب وو او دا ئے لوئی عبادت ګنړلو۔
دا په خپل تفسیر کښې د آیتونو په تفسیر کښې احادیث او آثارو ته په نورو ماخذونو باندے فوقیت ورکوی او غیر ضروری قصے او حکایات نهٔ ذکر کوی او د اسرائیلیاتو د ذکر کولو نه عموماً اعراض کوی اګرکه په بعض مقاماتو کښې ئے هغه هم ذکر کړیدی لیکن ددهٔ منهج دا دے چه تفسیر لره په اسرائیلي او غیر ضروری قصو او حکایاتو سره طول ورنکړے شي۔ او دا ئے د تفسیر غټه خوبی دهٔ۔ شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ پدے تفسیر باندے ډیره ښه تبصره کړیده :

[وَتَفْسِيرُ ابْنِ عَطِيَّةَ خَيْرٌ مِنْ تَفْسِيرِ الزَّمَخْشَرِيِّ وَاَصَحُّ نَقْلاً وَبَحْثاً وَاَبْعَدُ مِنَ الْبِدَعِ وَاِنِ اشْتَمَلَ عَلى بَعْضِهَا بَلْ هُوَ خَيْرٌ مِنْهُ بِكَثِيْرٍ بَلْ لَعَلَّهُ اَرْجَحُ هٰذِهِ التَّفَاسِيْرِ لٰكِنَّ تَفْسِيْرَ ابْنَ جَرِيْرٍ اَصَحُّ مِنْ هٰذِهِ كُلِّهَا]

[مقدمة تفسير الفتاوى (۱۳/۳۸۸)]۔

(د ابـن عـطيـه تفسير د زمخشری د تفسير نه بهتر دے، ددے نقل او بحث ډير صحيح دے او د بـدعـاتـو نـه ورانـدے دے، اگـرکـه بـعـض بـدعات پدے کـښ هم راغلی دی بلکـه دا د زمخشری د تفسير نه په ډير اعتباراتو غوره دے بلکه شايد چه دا به ددغه ټولو تفاسيرو نه هم غوره وی ليکن د ابن جريرؒ تفسير ددے ټولو نه زيات صحيح تفسير دے)۔

ابـن خـلـدون په خپله مقدمه کښ ليکی :[وَلَـمَّـا رَجَعَ النَّاسُ اِلَى التَّحْقِيْقِ وَالتَّمْحِيْصِ وَجَاءَ اَبُوْمُـحَـمَّـدٍ عَبْدُ الْحَقِ ابْنِ عَطِيَّةَ مِنَ الْمُتَأَخِّرِيْنَ بِالْمَغْرِبِ فَلَخَّصَ التَّفَاسِيْرَ كُلَّهَا وَتَحَرّٰى مَا هُوَ اَقْرَبُ اِلَى الصِّحَّةِ مِنْهَا]۔

(هرکلـه چه د خلقو ميلان تحقيق او اختصار طرف ته شو او د متاخرينو نه ابو محمد عبد الحق ابـن عطيه مغرب (اندلس) ته راغلو نو د ټولو تفاسيرو خلاصه ئے په خپل تفسير کښ پيش کړه او هغه تفاسير ئے تلاش کړل کوم چه د هغے نه صحت ته زيات قريب وو)۔

ابن عطيه چونکه په عربی لغت او صرف او نحو کښ هم زيات مهارت لرلو پدے وجه ئے په تفسير کښ د لغت، اعراب او اشتقاق متعلق بحثونه هم کړيدی۔

په احاديث او آثارو کښ ابن عطيه زيات اعتماد په تفسير ابن جرير کړيدے، د لغت او نحو او صـرف متـعـلـق مباحثو کښ اکثر د خليل نحوی، سيبويه، مبرد، ثعلب، فراء، زجاج او ابـوعبيـده مـعـمـر بن مثنی د اقوالو نه استفاده کوی۔ او په فقهی مسائلو کښ ئے د موطأ مالك او د فقه مالکی نورو کتابونو باندے اعتماد کړيدے۔

د ابـن عـطيـه نه روستو راتلونکی درے مفسرينو ددهٔ کتاب نه ډيره استفاده کړيده او ځائے په ځائے د هغے نه اقتباسات کوی۔

يـو امـام قـرطبـیؒ پـه تـفسيـر الجامع لاحکام القرآن کښ او بل ابوحيان الغرناطی او دريم شيـخ ابوزيد عبد الرحمن بن مخلوف الثعالبی الجزائری۔ چه ددے علماؤ تاريخ به روستو راشی۔

د ابن عطيه دا تفسير اول ځل په سنه (۱۳۹۸ هـ) مطابق (۱۹۷۷ء) کښ د دولت قطر امير شيخ خليفه بن حمد آل ثانی په خرچه باندے د شيخ عبد الله بن ابراهيم الانصاری د اهتمام

لاندے په (١٥) جلدونو کښې چاپ شویدے اُوس هم موجود دے۔

## ١١- جامع احکام القرآن للقرطبي متوفی (٦٧١هـ)

د امام قرطبي نوم دے: محمد بن احمد بن ابی بکر بن قرح۔
د نسب په اعتبار سره انصاری خزرجي دے او د فقهي مسلك په اعتبار سره امام مالك ته منسوب وو۔ ددهٔ اسم کنیه ابوعبد الله وه۔ د اندلس دمشهور ښار قرطبه اُوسیدونکے وو پدے وجه په قرطبي نوم سره ډیر مشهور دے۔ او ددهٔ تفسیر هم په تفسیر القرطبي سرهٔ مشهور دے۔
قرطبه د قاف پیش، د راء سکون او د طاء په پیش او د راء په زیر سره عجمي او رومي نفظ دے او دا هم جائز ده چه دا لفظ عربي وی د قرطبه (د قاف او طاء په زبر سره) نه ماخوذ وی چه ددے معنیٰ ده [اَلْعَدُوُ الشَّدِيْدُ] (تیزه منده وهل) دا د اندلسو د ښارونو په مینځ کښې یو لوئی ښار دے۔ چه د هغه علاقے د بادشاه دار الحکومة وو۔ د بنوامیه ملوك به په همدے ښار کښې اُوسیدل، د ډیرو فضلاء او علماؤ مرکز پاتے شویدے، ددے او د سمندر ترمینځ د پنځه ورځو مسافت دے۔ [معجم البلدان لیاقوت الحموی: ٤/٣٢٤]۔
علامه شمس الدین داودیّ لیکی: امام قرطبي د نیك بندګانو نه وو او د هغه علماؤ نه شمار دے چه د الله تعالیٰ معرفت ورته حاصل وی، کوم چه پرهیزګار وی، او د چازړونه چه د دنیا د حرص او محبت نه خالي وی یعنی زاهد وی او د آخرت په کارونو کښې مشغول وی او د هغوی اوقات په توجه الی الله، عبادت او تصنیف او تالیف کښې مصروف وی۔ ده په (١٥) جلدونو کښې د قرآن کریم تفسیر کښې یو لوئی کتاب لیکلے دے چه د هغے نوم دے [جَامِعُ اَحْکَامِ الْقُرْآن وَالْمُبَيِّنُ لِمَا تَضَمَّنَ مِنَ السُّنَّةِ وَآيِ الْفُرْقَانِ]۔
دا د فائدے په اعتبار اعلیٰ او عظیم ترین تفسیر دے، پدے کښې غیر ضروري قصے او تاریخي واقعات پریښودے شویدی او د هغے په ځائے د قرآني احکام، او د هغے د دلائلو، اعراب، قراءات او ناسخ او منسوخ په باره کښې معلومات زیات شویدی۔
دوی د اسماء حسنی په شرح کښې یو کتاب لیکلے دے چه د هغے نوم دے [اَلْكِتَابُ الْاَسْنیٰ فِيْ شَرْحِ اَسْمَاءِ اللّٰهِ الْحُسْنیٰ]۔ او د اذکارو په موضوع دوی [اَلتِّذْکَارُ فِيْ اَفْضَلِ الْاَذْکَارِ] په نوم یو کتاب لیکلے دے او د آخرت د کارونو په باره کښې ئے [اَلتَّذْکِرَةَ فِيْ اَحْوَالِ الْمَوْتیٰ وَاُمُوْرِ الْآخِرَةِ] په نوم یو کتاب لیکلے دے۔

امام ذهبیؒ وئیلی دی چه دا راسخ او ثقه امام وو او متبحر عالم وو، ددهٔ ډیر مفید تصانیف دی چه د هغے نه معلومیږی چه د دوی علم ډیر وسیع (فراخه) وو او دوی د امامت او فضیلت په مقام باندے فائز وو۔ د دوی وفات په (۹) شوال سنه (٦٧١ هـ) کښې شویدے۔ [طبقات المفسرین د داودی [٦٩/٢]۔

## ۱۲۔ تفسیر القرآن العظیم
## د حافظ ابن کثیر متوفی (٧٧٤هـ)

د امام ابن کثیرؒ نوم اسماعیل بن عمر بن کثیر وو لقب ئے عماد الدین او کنیه ئے ابو الفداء وه لیکن د خپل نیکه کثیر په نسبت سره ددهٔ نوم ابن کثیر زیات مشهور دے۔ ددهٔ والد محترم د دمشق په مضافاتو کښې د بصریٰ اُوسیدونکے وو، لیکن والدے ئے د بُصریٰ سره د مجدِل په نوم یو کلی سره تعلق لرلو، د دوی والد محترم د مَجدَل د مسجد خطیب وو او ښائسته واعظ او فقیه وو۔

ابن کثیرؒ په همدے مَجُدَل کښې په سنه (٧٠٠هـ) کښې پیدا شوے وو، د والد د وفات په وخت دده عمر (۳) کاله وو لیکن په سنه (٧٠٧هـ) د ابن کثیرؒ خاندان د دوی مشر ورور کمال الدین عبد الوهاب په نګرانۍ کښې دمشق ته منتقل شو او د دوی تعلیم په دمشق کښې د خپل ورور په نګرانۍ کښې اُوشو۔

ابن کثیرؒ خپل تاریخ په البدایه والنهایه کښې پخپله لیکلی دے:

[تُوُفِّيَ وَالِدِيْ فِيْ شَهْرِ جُمَادَى الْأُوْلٰى سَنَةَ ثَلَاثٍ وَسَبْعِ مِائَةٍ فِيْ قَرْيَةِ مَجِيْدَل وَدُفِنَ بِمَقْبَرَتِهَا الشِّمَالِيَّةِ عِنْدَ الزَّيْتُوْنِ وَكُنْتُ إِذْ ذَاكَ صَغِيْرًا ابْنَ ثَلَاثِ سِنِيْنَ أَوْ نَحْوِهَا ثُمَّ تَحَوَّلْنَا مِنْ بَعْدِهِ فِيْ سَنَةِ سَبْعٍ وَسَبْعِ مِائَةٍ إِلَى دِمَشْقَ صُحْبَةَ كَمَالِ الدِّيْنِ عَبْدِ الْوَهَّابِ وَقَدْ كَانَ لَنَا شَقِيْقًا وَبِنَا رَفِيْقًا شَفُوْقًا وَقَدْ تَأَخَّرَ وَفَاتُهُ إِلَى سَنَةِ خَمْسِيْنَ فَاشْتَغَلْتُ عَلٰى يَدَيْهِ فِي الْعِلْمِ فَيَسَّرَ اللّٰهُ تَعَالٰى مِنْهُ مَا يَسَّرَ وَسَهَّلَ مِنْهُ مَا تَعَسَّرَ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ]

(البداية والنهاية ٣٢/١٤)۔

(زما والد په جمادی الاولی سنه (٧٠٣هـ) کښې په قریه مجیدل (یا مجدل) کښې وفات شو او زه په هغه وخت کښې د درے کالو ماشوم وم۔ د والد د وفات نه بعد مونږ په سنه (٧٠٧هـ) کښې د کمال الدین عبد الوهاب په نګرانۍ کښې دمشق ته نقل شو چه دا زما

سکه ورور وو او مونږ سره ئے ډیر محبت او شفقت لرلو، زما ددے ورور وفات سنه (۷۵۰هـ) پورے روستو شوے وو- پدے وجه زه د هغه نه په علم حاصلولو کښې مشغول شوم نو الله تعالیٰ د هغه په ذریعه مونږ ته آسانیانے راکړے او زمونږ مشکلات ئے لرے کړل او سهولتونه ئے راکړل-

په دمشق کښې د ابن کثیرؒ خاندان په مدرسه نجیبیه کښې اُوسیدل چه دا د شافعیه ؤ مدرسه وه او امیر جمال الدین نجیبی وقف کړے وه- ابن کثیرؒ په سنه (۷۱۱هـ) کښې د یولسو کالو په عمر کښې قرآن کریم د تجوید او قراء ت سره حفظ کړے وو او د خپل ورور نه علاوه د هغه وخت د کبارو او ممتازو علماؤ نه دینی علوم حاصل کړی وو لیکن د دوی تعلق د شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ متوفی (۷۲۸هـ) او د حافظ جمال الدین المِزّیؒ سره زیات وو- دا د دغه دواړو خاص شاګرد وو او د حافظ مزی زوم هم وو- لورئے ورکړے وه- شیخ الاسلام تقی الدین ابن تیمیه رحمه الله د حران علاقے یو علمی خاندان کښې په سنه (٦٦١هـ) کښې پیدا شوے وو د هغوی نیکه ابوالبرکات مجد الدین ابن تیمیه د حنفی مسلك د کبار علماؤ نه شمار وو او د دوی پلار محترم شهاب الدین عبد الحلیم بن تیمیه د حنبلی مسلك عالم، محدث او فقیه وو- درسونه به ئے ورکول او فتوے به ئے هم ورکولے او تقی الدین ابن تیمیه (یعنی شیخ الاسلام) خپله هم ډیر لوئی محدث او فقیه وو دوی د دین په تجدید او اشاعت د توحید او سنت کښې ډیر لوئی رول لوبولے دے، او پدے لاره کښې ئے انتهائی تکلیفونه تیر کړیدی، جیلونه او قیدونه ئے برداشت کړیدی او د ډیرو امتحاناتو سره مخامخ شویدے- ابن کثیر رحمه الله د دوی د دین د تجدید او دعوتی کار کردګی نه او د دوی د صبر او استقامت نه ډیر زیات متأثره وو او د هغوی په طرز باندے ئے دعوتی او اصلاحی مشن جاری ساتلو- ابن کثیرؒ رحمه الله د شیخ الاسلام علمی مقام داسے ذکر کړیدے :

ابن تیمیهؒ یو ذکی او ذهین شخص وو، د هغه په حافظه کښې ډیر زیات معلومات محفوظ وو، تفسیر او د هغے سره تعلق لرونکی علومو کښې امام وو، فقه کښې ئے ډیر لوئی معرفت او مهارت لرلو، د علماء او فقهاؤ په مابین کښې د اختلافی مسائلو لوئی عالم وو- په اصول او فروع، نحو او لغت او نور نقلی او عقلی علومو کښې ئے زیات مهارت لرلو، د هر یو فن یو فاضل شخص چه به کله د هغه سره خبرے کولے نو هغه به ئے د فن ماهر ګڼلو او دا به ئے وئیل چه دا خو د همدے فن ماهر دے- ما هغه د حدیثو ډیر لوئی حافظ

مونـدلـے وو چه پـه صحیح او ضعیف کښې بـه ئې تمییز کولے شو او راویانو د حالاتو په پیژندلو کښې دۀ ته ډیره لویه تجربه حاصل وه۔

او د حافظ مزی نوم یوسف بن عبد الرحمن دمشقي وو، لقب ئې جمال الدین او کنیه ئې ابـو الـحجاج وه لیکن چونکه دده تربیت په مزه ښار کښې شوے وو او د ژوند زیاته حصه ئې هـمدلتـه تیـره کړے وه پدے وجه په اهل علمو کښې حافظ جمال الدین د مزی په نوم سره پیـژنـدلـے شـی۔ مزه د دمشق خوا کښې یو ښار دے او د دمشق نه یو نیم میل فاصله باندے پروت دے۔ (معجم البلدان)

عـلامـه مزی پـه عـقیـده کښې د سلف صالحینو په منهج روان وو د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو کښې به ئې تاویل نۀ کولو ۔دا د حافظ ابن تیمیه ملګرے وو د یو بل نه به ئې استفاده کوله او د هغه د رفاقت او صحبت د وجه نه دوی ته تکلیفونه رسیدلی وو۔

حـافـظ ابـن حـجـر پـه الدرر الکامنه کښې لیکلی دی چه په سنه (۷۰۵ هـ) کښې په "قصر ابـلـق" کـښې یـوه ورځ حـافـظ مـزی د صفی هندی او د ابن زملکانی سره د عقیدے په یوه مسـئـلـه کـښې بحث کولو چه د بحث په دوران کښې حافظ مزی د امام بخاری کتاب (خلق افـعال العباد) لوستل شروع کړل، پدے کتاب کښې یو فصل د جهمیه ؤ په رد کښې هم دے۔ پدے موقعه په مجلس کښې حاضر بعض خلق غصه شو او دا ئې اُووئیل چه ستا مقصد دا دے چه مونږ جهمیه یو۔ نو دا خبره قاضی ته اُورسیده او هغه حافظ مزی جیل ته واچولو لیـکـن د شیـخ الاسلام ابن تیمیه په کوششونو سره آزاد کړے شو، دوباره جیل ته واچولے شو او دوباره آزاد کړے شو۔ دا ازمیښت هغه باندے د ابن تیمیهؒ د تعلق په وجه راغلو۔

ابن کثیرؒ لیکلی دی چه د حافظ مزی زوجه محترمه عائشه بنت ابراهیم بن صدیق ډیره نیکه ښځه وه، د قرآن کریم حافظه وه او عالمه هم وه او د هغے لور زینب هم عالمه وه او زما په نکاح کښې وه۔ [البدایة والنهایة ۱۹۲/۱٤]۔

د حافظ مزی دوه کتابونه زیات مشهور دی او په اهل علمو کښې بے حد مقبول او متداول دی یـو (اطراف الکتب السته) یعنی تحفة الاشراف) او دویم دے (تهذیب الکمال فی اسماء الرجال)۔

د ابـن کـثیـرؒ د ثـقاهت او فضیلت دپاره د حافظ ابن تیمیهؒ او حافظ مزیؒ په شان د حدیث د اکـابرو امـامـانـو شاګردی هـم کـافـی ثبوت دے لیکن حافظ شمس الدین داودیؒ متوفی (۹٤۵ هـ) د ابـن کـثیـرؒ شیخ حافظ شمس الدین ذهبی متوفی (۷٤۸ هـ) نه د هغه د علم او

فضیلت په جامع الفاظو داسے نقل دے : [فَقِيهٌ مُتَفَنِّنٌ وَمُحَدِّثٌ مُتْقِنٌ وَمُفَسِّرٌ نَقَّادٌ] [طبقات المفسرین ۱/۱۱۲] ـ

(د دین په مختلفو فنونو کښ فقیه وو، پوخ علم والا محدث وو او نقد او تحقیق کونکے مفسر وو)ـ

تفسیر، حدیث او فقاهت (یعنی د قرآن او حدیث نه د احکامو معلومولو صلاحیت) د دین اسلام دغه درے اصول دی او څوك چه پدے دریو کښ وسیع او پاخه معلومات لری نو هغه د امت مسلمه د دین او فکری قیادت اهل وی او دا درے واړه صفات الله تعالیٰ په حافظ ابن کثیرؒ کښ اچولی وو۔

[ذلك فضل الله يؤتيه من يشاء]۔

**تفسیر ابن کثیر :** د ابن کثیر (تفسیر القرآن العظیم) ته که د ابن جریرؒ د تفسیر تلخیص (خلاصه) اُووئیلے شی نو بے ځائے به نهٔ وی، ځکه چه ده چه کوم احادیث او آثار نقل کړیدی نو د هغے ماخذ ابن جریر دے۔ اگرکه ابن کثیر په تفسیر کښ د صحاح سته، مسند احمد او نورو کتابونو نه هم روایات نقل کړیدی او تلخیص ورته ځکه وایو چه ابن جریرؒ چه د حدیث او اثر متعدد طرق او اسانید بیانوی نو حافظ ابن کثیر په اختصار سره اسانید په اکثرو ځایونو کښ حذف کوی البته که د یو علمی یا سندی نکتے بیان مقصود وی نو بیا پوره سند هم ذکر کوی۔

لیکن د ابن کثیرؒ څلور امتیازی خصوصیات دی چه د هغے په وجه دده افادیت (زیات مفید کیدل) د ابن جریرؒ نه زیات دی۔

۱- یو دا چه د آیتونو په تفسیر کښ د نورو سورتونو نه نظائر او امثال پیش کوی چه د هغے په وجه د دغه زیر بحث آیت معنی ذهن ته زر راځی۔ یعنی تفسیر القرآن بالقرآن په خصوصی طریقه کوی۔

۲- دویم خصوصیت دا دے چه کوم روایات ئے نقل کړیدی نو د هغے په صحت او عدم صحت باندے اکثر بحث کوی۔ او د راویانو په ضعف او صحت باندے رڼړا اچوی۔

۳- دریم خصوصیت دا دے چه اسرائیلی روایات خو اکثر نهٔ نقل کوی بلکه د هغے ضعف ته اشاره کولو سره مخکښ ځی۔ او کوم ځائے چه نقل کړی نو په هغے باندے تنقید کوی او لوستونکی ته دا ورښائی چه د آیت تفسیر دے روایاتو ته محتاج نهٔ دے او دا به د آیت تفسیر نشی گڼرلے۔

٤- څلورم خصوصيت دا دے چه کوم ځيزونه قرآن کريم مبهم پريخی دی او رسول الله ﷺ نه په صحيح سند د هغے وضاحت نۀ وی نقل شوے او آيت چه کوم مقصد دپاره نازل شوے وی د هغے په اعتبار سره د ابهام زائله کول ضروری هم نۀ وی نو داسے ځيزونه مبهم پريدی او غير ضروری بحثونه نۀ کوی۔ لنده دا چه دا په علم الدراية او علم الرواية دواړو باندے مشتمل دے۔

دا تفسير په مختلفو جلدونو کښ شائع شويدے او تعليقات او تحقيقات ئے هم شويدی۔ او ددے تلخيص او اختصار هم شويدے۔ أو يو سلفی تفسير دے۔

## ۱۲ - الجواهر الحسان فی تفسير القرآن
## يعنی تفسير الثعالبی متوفی (۸۷۵هـ)

دده نوم عبد الرحمن بن محمد بن مخلوف دے او کنيه ئے ابوزيد ده۔ الجزائر ښار ته نزدے يوه علاقه کښ په سنه (۷۸٤) کښ پيدا شويدے او په الجزائر کښ په سنه (۸۷۵) کښ وفات شويدے او هم دلته دفن شويدے۔ دوی د طلب د علم دپاره اول سفر د الجزائر يو ښار (بجايه) ته أوکړو او د مشهور کبار علماؤ نه ئے علم حاصل کړو بيا تونس ته لاړو هلته ئے د مشهور علماؤ نه استفاده أوکړه بيا مصر ته لاړو او د (الفيه فی علوم الحديث) د مصنف حافظ زين الدين العراقی متوفی (۸۲٦هـ) نه ئے حديث نبوی او د هغے متعلق علوم حاصل کړل، د مصر نه د حج دپاره مکے مکرمے ته لاړو او هلته ئے د علماؤ نه مختلف علوم حاصل کړل او د حديث د بيانولو اجازت ئے حاصل کړو او بيا واپس الجزائر ته راغلو او د درس او تدريس او تصنيف کار ئے جاری کړو۔ ثعالبی په خپلو ملګرو کښ ولی الله ګڼړلے شو او د امام غزالی د کتاب (احياء العلوم) مطالعه به ئے هم زياته کوله۔

دوی د خپل تفسير منهج د خپل تفسير په مقدمه کښ داسے بيان کړيدے چه خلاصه ئے دا ده:

اے زما روره! الله تعالیٰ دے زما او ستا زړه د ايمان او د يقين په انواراتو سره منور کړی او ما او تا دے په خپلو متقی اولياؤ کښ شامل کړی۔ ما د خپل ځان او ستا دپاره پدے مختصر تفسير کښ هغه خبرے جمعه کړيدی چه زما او ستا سترګے په دواړو جهانو کښ يخوی۔ ما پدے تفسير کښ د ابن عطيه د تفسير مهمے او ضروری خبرے جمع کړيدی او د

نورو امامانو د کتابونو نه مے هم ډیر فوائد یو ځائے کړیدی، ما چه د کوم کتاب نه هم اقتباس نقل کړیدے نو د هغه د مصنف په خپلو الفاظو کښ مے نقل کړیدے او کومه خبره چه ما د خپلے رائے نه لیکلے ده نو د هغے دپاره مے د (ت) نښه لګولے ده په بدل د (قُلْتُ) کښ۔ او کوم چه د ابن عطیه مے نقل کړیدی نو هغے دپاره عین لفظ نښه ده۔ او د بخاری او مسلم او ابوداود او ترمذی نه علاوه چه کوم صحاح یا حسان احادیث نقل شویدی نو هغه د نووی الاذکار، د منذری د ترغیب او ترهیب او د قرطبی د کتاب التذکره او د بغوی د مصابیح السنه نه اخستے شویدی))۔

د مصنف د بیان نه معلومه شوه چه دا کتاب په اصل کښ د ابن عطیه د تفسیر (المحرر الوجیز) تلخیص دے او پدے کښ د نورو ائمهٔ د تفاسیرو نه هم بعض ضروری فوائد او نکات نقل کړے شویدی او د لغت او اعراب متعلق اکثر نکات د ابو حیان د تفسیر نه اخستے شویدی۔

دا هم یو مفید تفسیر دے چه روایت او درایة دواړه ئے جمع کړیدی۔

دا تفسیر دار الکتب العلمیه (۱۹۹۶ء) بیروت کښ په درے جلدونو شائع کړیدے او ابو محمد غماری ادریسی ددے تحقیق او تخریج د احادیثو کړیدے۔

## ۱٤- الدر المنثور فی التفسیر المأثور

## د سیوطی متوفی (۹۱۱هـ)

امام سیوطیؒ پدے تفسیر کښ د آیتونو په تفسیر کښ د احادیثو او آثارو د نقل کولو نه علاوه د خپل طرف نه هیڅ هم نهٔ دی لیکلی۔ ددے تفسیر پس منظر او باعث د تصنیف مصنف په مقدمه کښ پخپله بیان کړیدے چه خلاصه ئے دا ده:

((ما چه کله خپل کتاب ترجمان القرآن تالیف په څو جلدونو کښ مکمل کړو چه په هغے کښ احادیث د رسول الله ﷺ او آثار د صحابه کرامو په اسانیدو سره نقل کړے شوی وو نو ما د خلقو همتونه کمزور اُولیدل او د اسانیدو نه بغیر مے صرف په متونو باندے اکتفاء ته د خلقو رغبت اُولیدلو، نو د خلقو ددے کم همتئ او اختصار ته میلان په وجه ما د ترجمان القرآن تلخیص اُوکړو او مختصر تفسیر مے مرتب کړو او اسانید حذف کولو سره مے د احادیثو په متونو باندے اکتفاء اُوکړه لیکن د هر روایت په اول کښ مے د هغه معتبر کتابونو حواله ورکړه د کوم نه چه نقل شویدے او چا چه د هغوی تخریج کړیدے د

اختصار نه بعد ددے تفسیر نوم ما [الدر المنثور فی التفسیر بالمأثور] کیخودلو۔
د علامه سیوطی تعارف: نوم ئے عبد الرحمن بن کمال ابی بکر بن محمد دے او لقب ئے جلال الدین دے لیکن د مصر مشهور ښار اسیوط په نسبت سره دا په جلال الدین السیوطی سره ډیر مشهور شو۔
دا په رجب سنه (۸٤۹ هـ) کښې پیدا شویدے او په سنه (۹۱۱ هـ) کښې وفات شویدے۔ د اتو کالونه په کم عمر کښې ئے قرآن کریم حفظ کړے وو او د هغے نه بعد د فقه کتاب (عمدة الاحکام) او د علم اصول کتاب (منهاج الفقه والاصول) او د علم نحو کتاب (الفیه ابن مالك) درے واړه یاد کړی وو او بیا په سنه (۸٦٤هـ) کښې د (۱۵) کالو په عمر کښې د مختلف علوم او فنونو تفصیلی او تحقیقی علم حاصلولو دپاره د اکابرو او مشاهیرو اساتذه کرامو په مجالسو کښې حاضری ورکولو ابتداء اُوکړه۔ په فقه کښې د دوی مشهور استاذ شیخ الاسلام علم الدین بلقینی وو د هغه سره ئے تعلق د هغه د مرګ پورے وو از د هغه نه روستو ئے د بلقینی د ځوی نه هم بعض کتابونه لوستلی وو۔ او د علم د طلب دپاره ئے د مصر نه شام، حجاز، یمن، هند او مغرب یعنی اندلس ته هم سفرونه کړی وو او د خپل ملك مختلف مراکزو ته به ئے دورے هم کولے لیکن د ژوند اکثره حصه ئے په قاهره کښې تیره کریده چه په هغے کښې په هغه وخت حافظ ابن حجر عسقلانیؒ متوفی (۸۵۲هـ) او بدر الدین عینی متوفی (۸۵٦هـ) او علامه سخاوی متوفی (۹۰۲هـ) او دوی په شان نور اکابرین محدثین موجود وو۔ په سنه (۸۷۱هـ) کښې د (۲۲) کالو په عمر کښې سیوطی فتوے ورکول شروع کړی وو او په سنه (۸۷۲هـ) د (۲۳) کالو په عمر کښې هغوی د حدیثو درس شروع کړی وو او په سنه (۸۸٦هـ) کښې د (۳۷) کالو په عمر کښې د تصنیف او تالیف کار شروع کړو۔
سیوطی خپله لیکلی دی چه ما ته الله تعالیٰ په اُووه علومو کښې تبحر او مهارت راکړیدے۔ تفسیر، حدیث، فقه، نحو، معانی، بیان او بدیع۔
سیوطیؒ خپل کتاب (حسن المحاضرة فی اخبار مصر والقاهره) کښې لیکلی دی چه د تفسیر او قرآن سره تعلق لرونکی زما (۲۵) کتابونو پورے رسیدلی دی۔ او د دوی ټولو تصنیفاتو په باره کښې وئیلے شویدی چه (۵۰۰) نه زیات دی۔
د دوی تفسیر الدر المنثور کښې د احادیث او آثارو کافی ذخیره موجوده ده لیکن په هغے کښې د صحاح او حسان سره ضعاف هم موجود دی او د اسرائیلی روایاتو کمے هم پکښې

نشته پدې وجه بغير د تحقيق نه به هغه روايانو باندې په پټو سترګو اعتماد نشي كيدې. ليكن د رواياتو دومره ذخيره جمع كول د هغوى ډير لوئى خدمت دې. الله تعالىٰ دې اجر عظيم وركړي.

انظر مقدمة تفسير الدر المنثور للشيخ خليل مدير الازهر لبنان)

تفسير الدر المنثور په اته (۸) جلدونو كښې دار الفكر بيروت په سنه (۱۹۸۳ هـ) كښې په بهترين طباعت كښې شائع كړيدې.

دا هغه مفسرين وو چه دوى په خپلو تفاسيرو كښې تفسير بالماثور كړيدې يعنى تفسير القرآن بالقرآن او بالاحاديث والآثار ئې كړيدې.

اُوس د هغه تفاسيرو تذكره كيږي چه هغوى د تدبر او فكر په ذريعه د قرآن كريم تفسير كړې وي. يعنى

**تفسير بالرأى** ئې كړې وى لكه چه د تفسير بالرأى حكم مخكښې بحثونو كښې تير شوېدې.

## (۱) مفاتيح الغيب

## المعروف بتفسير كبير للامام الرازى متوفى (۶۰۶ هـ)

د امام رازى نوم: محمد بن عمر بن حسين دې لقب ئې فخر الدين دې. ولادت او تربيت ئې په مشهور علمي مركز «رَىُ» كښې شوې وو پدې وجه په نسبت كښې ورته رازى وئيلې شي، ددهٔ والد محترم عمر بن حسين چه لقب ئې ضياء الدين وو د رَىُ خطيب پاتې شرې وو، پدې امام رازى ته ابن الخطيب هم وئيلې شي.

امام رازى په (۲۵) رمضان سنه (۵۴۴ هـ) كښې په رىُ كښې پيدا شوې وو او په اول شوال سنه (۶۰۶ هـ) كښې (د عيد الفطر په ورځ) په هرات كښې وفات شوې وو. او د همدغه ورځې په مابنام كښې د هرات خوا كښې د (مزدرخان) په نوم يوه علاقه كښې په يو غر كښې دفن شوې وو. د امام رازى اولنې استاذ د دوى پلار ضياء الدين عمر بن حسين وو او د هغوى استاذ مشهور امام او محدث بغوى وو. ليكن د والد محترم د تربيت او تعليم نه روستو د مشهور استاذانو نه ئې مختلف علوم او فنون حاصل كړل او بيا ئې درس او تدريس او وعظ او خطابت او مناظرو او بحثونو او تاليف او تصنيف كښې وخت تير كړو تردې چه خلقو هغه ته د امام رازى او فخر الدين رازى لقب وركړو.

امام رازی په علم الکلام او فلسفه او معقولاتو کښې د خپل دور په تمام اهل علمو باندې فوقیت لرلو، په مختلفو فنونو کښې ئې مفید مفید کتابونه لیکلی دی۔
په خطابت او وعظ کښې ئې بې مثال صلاحیت لرلو، په عربي او فارسي دواړو ژبو کښې به ئې تقریر کولو، او د تقریر په دوران کښې به پرې داسې حالت طاري کیدو چه ډیر به ئې ژړل۔
په هرات ښار کښې به دده مجلس کښې هر قسم نظریاتو والا خلق شریك کیدل او قسماقسم سوالات به ئې کول لیکن دوی به هر یو ته په ډیر ښائسته انداز کښې جواب ورکولو۔ د دوی په مجلس کښې د شرکت او جواباتو د اَوریدو د وجه نه د کرامیه فرقې او د نورو اهل بدعو ډیر خلق د اهل سنت والجماعة مسلك اختیار کړې وو۔ په هغه زمانه کښې په هرات او خواؤ شا کښې د کرامیه ؤ کثرت وو۔
د امام رازی ابتدائي ژوند په ډیره غریبئ او فقر کښې تیر شویدې لیکن آخري ژوند ې په ډیره مالدارئ او عیش او راحت کښې تیر کړیدې۔ وجه دا وه چه یو مالدار طبیب وو کله چه امام رازی د خوارزم او د ماوراء النهر دوره باندې تلې وو او د مختلفو مذاهبو او نظریاتو والا خلقو سره مناظرې او بحثونه اُوکړل نو خلقو د خپلې علاقې نه اُوویستو نو آخر تنګ شو او د خپل پلار نیکه ښار (ری) ته راغلو۔ نو په رَی کښې یو مالدار طبیب وو۔ چه د هغه دوه لونړه وې او هلکان ئې نهٔ وو۔ او اتفاق سره د امام رازی هم دوه ځامن وو، طبیب چه کله د مرګ په مرض بیمار شو او یقین ئې راغلو چه زهٔ اُوس ضرور مرم نو خپلې دواړه لونړه ئې د امام رازی دواړه ځامنو ته په نکاح ورکړې او د هغه ټول منقوله او غیر منقوله اموال ئې د امام رازی ځامنو ته رانقل شو نو پدې سره د امام رازی حالت ښه کیدو ته نقل شو۔
حافظ ابن کثیرؒ د امام رازی مقبولیت او مالداری او عیش داسې ذکر کوی :
(د خوارزم او د نورو علاقو د بادشاهانو په نیز امام رازیؒ ته لوئی عظمت او وجاهت حاصل وو، د هغه دپاره په مختلفو ښارونو کښې مدارس جوړ کړې شو، خالص د سره زرو (۸۰) اتیا زره دینار د هغه په ملکیت کښې راجمع شو او نور د استعمال څیزونه، سامانونه، سورلیانې او کپړې وغیره د هغې نه علاوه وو۔ دده په ملکیت کښې (۵۰) ترکی غلامان راغلل، دده د وعظ او خطابت په مجلس کښې به بادشاه، وزراء، علماء، امراء او فقراء او عام خلق ټول شریك کیدل او د هغه د عبادات او اورادو او اذکارو اوقات هم معلوم وو۔ د امام رازیؒ او کرامیه ؤ ترمینځ بحثونه او مناظرې به هم کیدلې۔ امام رازیؒ چه څومره په علم الکلام کښې پوخ او راسخ وو نو د هغې باوجود به ئې دا وئیل: [مَنْ لَزِمَ مَذْهَبَ الْعَجَائِزِ كَانَ هُوَ الْفَائِزِ] ۔ (څوك چه د

بو دئ ګانو زنانو د مذهب پابند شو نو بس همغه کامیاب دے)۔

[البداية والنهاية [۵۵/۱۳] ووفيات الاعيان لابن خلكان (۲۵۱/٤] ملخصاً۔

يعنی مطلب دا چه يوه ساده بو ډئ زنانه چه په الله او رسول او دين اسلام باندے ټنګه ايمان او يقين لری نو د کاميابئ او د نجات دپاره همدغه ايمان کافی دے او فلسفيانه او متکلمانه او تکلفی دلائلو ته هيڅ ضرورت نشته۔

د امام رازی تفسير اصل نوم مفاتيح الغيب دے ليکن په خواص او عوامو کښې د تفسير کبير په نوم مشهور دے، دا واقعی ډير لوئی تفسير دے پدے کښې ډير علوم او معارف او باريکات راجمع شويدی او د هر فن او علم متعلق بحثونه په ښائسته ترتيب او ښائسته بيان سره پدے کښې ليکلے شويدی، کله چه يو آيت راشی نو د امام رازی په ذهن کښې مختلف علوم او فنون چپے وهی، د لغت او صرف او نحو او بلاغت او حديث او فقه او فلسفے او علم کلام متعلق بحثونه راوړی چه ددے په وجه په اهل علمو کښې دا مشهوره شويده چه [وَفِى الْكَبِيرِ كُلُّ شَیْءٍ إِلَّا التَّفْسِيرَ]۔

(په تفسير کبير کښې د تفسير نه علاوه هر شے ملاويږی)

يعنی علمی بحثونه دومره اُوږده راوړی چه اصل تفسير به درنه ورك شی۔ دا د عام بحثونو او بلاغت وغيره متعلق مفيد تفسير دے ليکن طرفی مسائلو کښې د اُوږد والی په وجه خلق ددے په لوستلو کښې تنګی محسوس کوی۔

پدے باندے يو عيب وئيلے شويدے چه حافظ ابن حجرؒ وائی : ((امام رازی باندے دا عيب لګولے شويدے چه دا شبهات خو سخت راوړی ليکن د هغے حل ناقص او کمزورے پيش کوی تردے چه بعض اهل مغرب وئيلی دی : [يُورِدُ الشُّبَهَ نَقْدًا وَيَحِلُّهَا نَسِيئَةً ]۔

(امام رازی شبهات خو نقد پيش کوی ليکن د هغے حل او جواب په قرض باندے پريدی)۔[لسان الميزان ٤٢٧/٤]۔

په تفسير کبير کښې بل نقصان علماؤ دا وئيلے دے چه دا کله نا کله د بعض معتزلو تائيد کوی لکه د ابو مسلم اصفهانی معتزلی تائيد ئے په بعض مقاماتو کښې کړيدے لکه د سورة طه په (بصرت بما لم يبصروا) آيت کښې ئے د ابو مسلم تائيد کړيدے دغه تاويل تفسير البحر المحيط او تفسير نيشاپوری هم راوړيدے ليکن هغوی هم نۀ ترديد کړيدے او نۀ تائيد البته تفسير روح المعانی کښې د هغے ترديد شويدے۔

په تفسير کبير کښې د سورتونو او آيتونو ترمينځ د ربط او مناسبت اهتمام هم شويدے

لیکن عادت ئے دا دے چه کله ډیر توجیهات ذکر کوی چه په هغے کښں کمزوری توجیهات هم وی چه په هغے سره مضبوط او قوی توجیهات هم کمزوری ګنړلے کیږی۔

۵- امام رازی امام المتکلمین او د علوم او فنونو بحر زخار وو لیکن د حدیثو په ائمه ؤ کښں شمار نۀ دے او په حدیثو کښں کمزورے هم وو۔ په تفسیر کبیر کښں د احادیثو او آثارو تعداد خو ډیر کم دے او کوم روایات چه په کښں نقل شویدی د هغے هم د صحت او ضعف تحقیق نۀ دے شوے۔او اکثرو مقاماتو کښں حوالے هم نۀ دی ورکړے شوی پدے وجه په هغه روایاتو به بغیر د تحقیق نه استدلال نۀ کیږی۔

٦- امام رازی خپل تفسیر په خپل قلم سره نۀ دے مکمل کړے بلکه د سورة انبیاء پورے ئے خپله لیکلے وو بیا وفات شو۔ او د بعضو په نیز باندے باقی حصه تر آخره پورے نجم الدین احمد بن محمد مخزومی مصری متوفی (۷۲۷هـ) مکمل کړیدے۔ او ځینی وائی چه د تکملے څه حصه قاضی القضاة شهاب الدین بن خلیل دمشقی هم لیکلے ده۔ تکمله چه هر چا لیکلے ده لیکن د تفسیر اسلوب د ابتداء نه تر آخر پورے یو شان دے او لوستونکے دا نۀ محسوس کوی چه ګنے د امام رازی نه دا تفسیر نیمه کښں پاتے شویدے۔

[الدرر الکامنة للحافظ ابن حجر]۔

## (۲) انوار التنزیل واسرار التاویل

### معروف په تفسیر بیضاوی متوفی (۶۹۱هـ)

د بیضاوی نوم عبد الله بن عمر بن محمد دے، لقب ئے ناصر الدین دے، او کنیه ئے ابو الخیر ده لیکن دا د فارس مشهور ښار بیضاء ته د نسبت په وجه سره د قاضی بیضاوی په نوم مشهور شویدے۔

بیضاء یو لوئی ښار دے پدے کښں یوه قلعه ده چه هغه د وړاندے ښکاره کیږی پدے وجه دے کلی ته بیضاء وئیلے شویده ددے او د شیراز ترمینځ اته فرسخه یعنی (۲٤) میله فاصله ده۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی : دا قاضی وو، امام وو، علامه ناصر الدین عبد الله بن عمر شیرازی وو، د شیراز قاضی او عالم وو او د آذربیجان او د هغے د اطرافو هم عالم وو او په (٦٨٥هـ) کښں په تبریز کښں فوت شویدے۔ [ البدایة والنهایة :۳۰۹/۱۳]۔

تاج الدین سبکیؒ دده تعارف داسے کوی : [ کَانَ اِمَامًا مُبَرِّزًا، نَظَّاراً، صَالِحاً مُتَعَبِّداً زَاهِداً ] ۔

(بيضاوي په خپلو ملګرو باندے فوقيت لرونکے امام وو، زيرك او عقلمند وو، عابد او زاهد وو)۔

دا تبريز ته په هغه وخت کښ داخل شوے وو چه يو فاضل عالم په خپله درسګاه کښ درس ورکولو، قاضي بيضاوي هم د هغه مجلس په آخر کښ کيناستو، مدرس په مجلس کښ يوه نکته پيش کړه او وے وئيل چه ددے تشريح اُوکړئ او ددے جواب راکړئ، که جواب نشئ ورکولے نو صرف تشريح اُوکړئ او که دا هم نشئ کولے نو ما چه کومه نکته بيان کړه نو هغه زما په الفاظو مکرر کړئ؟ د مدرس دا ګمان وو چه د حاضرينو نه به دا نکته هيچا ته نۀ وی معلومه ليکن مدرس چه کله خپله خبره پوره کړه نو بيضاوي جواب ورکول شروع کړل ليکن مدرس اُووئيل چه زه جواب نه آورم ترڅو چه ما ته معلومه نۀ شي چه تاسو پدے نکته پوهه شوی يئ۔ قاضي اُووئيل چه ددے تشريح به لفظ سره اُوکړم او که په معنی سره يعنی ستا الفاظ مکرر کړم او که په خپلو الفاظو کښ ئے اُوويم؟ مدرس اول خو څه متحير شو ليکن بيا ئے اُووئيل چه زما الفاظ اُووايه۔ قاضي د هغه الفاظ اُووئيل او وے وئيل چه ستا د بيان کړی الفاظو په ترکيب کښ دا نقصان پاتے شوے وو۔ بيا ئے هغه نکته حل کړه يعنی تشريح ئے اُوکړه او بيا ئے د هغه جواب ورکړو او فوراً ئے د هغے په شان يوه بله نکته پيش کړه او مدرس ته ئے دعوت ورکړو چه ته دا حل کړه ليکن مدرس هغه نکته حل نکړے شوه۔ په مجلس کښ وزير هم تشريف لرلو نو هغه دۀ لره خپل ځان ته راوغوختو او تپوس ئے اُوکړو ته څوك ئے؟ دۀ اُووئيل زه بيضاوي يم او د شيراز د قضاء درخواست مے راوړيدے۔ وزير د هغه اکرام او اعزاز اُوکړو او همدغه ورځے ئے ورله تحفه ورکړه او د هغه حاجت ئے پوره کړو۔

[طبقات الشافعية الكبرى ۸/۱۵۷ ترجمة نمبر ۱۱۵۳]۔

قاضي بيضاوي د تفسير نه علاوه په مختلفو علومو کښ نور کتابونه هم ليکلی دی، په علم اصول کښ ئے (المنهاج) او د هغے شرح ليکلے ده او په حديثو کښ ئے د (مصابيح السنه) شرح ليکلے ده۔

د تفسير بيضاوي په خطبه کښ مصنف د خپل تفسير نوعيت ذکر کړيدے چه د هغه د عبارت نه دا معلوميږی چه د هغه تفسير په پنځه امورو مشتمل دے:

۱- د صحابه کرامو او تابعينو او سلف صالحينو په اقوالو۔

۲- د هغه د خپل عقل او رائے نه معلوم کړی نکات او لطائف۔

۳- د متأخرین فضلاء او محققینو بیان کړی نکات او لطائف۔
٤- د قرائت د مشهورو امامانو مشهور قراء تونه۔
۵- او د نورو معتبرو قاریانو نه روایت شوی شاذ قراء تونه۔
کومو نکتو او لطائفو ته چه ده اشاره کړیده، هغه د لغت او عربیت او صرف او نحو او بلاغت سره هم تعلق لری او د نورو امورو سره هم تعلق لری۔
د بیضاوی تفسیر صرف په احادیثو مشتمل نهٔ دے بلکه تفسیر بالرأی هم پکښ شته پدے وجه دا د تفسیر بالرأی په لسټ کښ شامل شو۔
ددے تفسیر د مطالعے نه دا معلومیږی چه ددے لوئی مأخذ د زمخشری تفسیر کشاف دے بلکه د بعضو په نیز دا د کشاف تلخیص دے لیکن دهٔ د زمخشری د اعتزال تائید نهٔ دے کړے۔ بلکه ځائے په ځائے ئے د هغه تردید کړیدے او د اهل سنتو د مسلك دفاع ئے کړیده البته د عربیت او بلاغت متعلق امور او علمی نکات ئے د کشاف نه استفاده کړیدی۔
او د احادیثو د صحت او عدم صحت او سندی تحقیق ته ئے هیڅ توجه نهٔ ده کړے پدے وجه د سورتونو په فضائلو کښ چه په کشاف کښ کوم روایات نقل شویدی هغه بیضاوی هم بغیر د تحقیق نه نقل کړیدی حالانکه په هغے کښ ضعیف هم دی بلکه موضوع هم شته۔ بیضاوی اگرکه په فن حدیث کښ د بغوی په (مصابیح السنه) باندے شرح هم لیکلے ده لیکن ددے باوجود دا د مشهور او معتمدو امامانو د حدیث نه شمار نهٔ دے۔ پدے وجه لکه څنګه چه د امام رازی، امام غزالی، او زمخشری کتابونه د ضعیف روایاتو نه خالی نهٔ دی۔ دغه شان د بیضاوی په تفسیر کښ هم ضعیف روایات راغلی دی۔ لیکن اسرائیلی روایات پکښ ډیر کم ذکر شویدی۔ او کوم ځائے چه ذکر شویدی نو د ضعف د اشارے سره او دا ئے لویه خوبی ده۔ د بر صغیر پاك وهند د دینی مدارسو په نصاب کښ تفسیر بیضاوی د سورة البقرے د آخر پورے شامل دے۔ څکه چه ددے په لوستلو سره روستو تفسیر خود بخود آسانیږی۔

## (۳) مدارک التنزیل وحقائق التاویل

### د نسفی متوفی (۷۰۱ هـ)

د نسفی نوم عبد الله بن احمد بن محمود دے او لقب ئے ابو البرکات دارنګه حافظ الدین هم دے۔ لیکن د نسف په نسبت سره د نسفی په نوم سره مشهور دے او دده تفسیر هم په

تفسير نسفي او تفسير مدارك سره مشهور دے۔ نسف د ماوراء النهر علاقه کښې مشهور ښار دے چه په هغے کښې لوئي لوئي علماء او فقهاء تير شويدي۔ ددۀ د وفات په باره کښې يو قول دا دے چه دا (۷۱۰هـ) کښې وفات شويدے ليکن صحيح او مشهور قول دا دے چه دا په اَيْذَجُ ښار کښې په سنه (۷۰۱هـ) کښې وفات شويدے۔

دا په خپله زمانه کښې د حنفيه امام وو، او په فقه او اصولو کښې رئيس وو او د شمس الدين محمد بن عبد الستار کردري او بدر الدين خواهر زاده نه ئے د فقه علم حاصل کړے وو، ددۀ معتبر او معتمد تصانيف هم موجود دي مثلاً په فقه کښې ئے (الوافي) او د هغے شرح (الکافي) او (کنز الدقائق) او په اصول فقه کښې (المنار) او په تفسير کښې (مدارك التنزيل) دے۔

امام نسفي د خپل تفسير منهج په خطبه کښې داسے بيان کړيدے:

ما نه هغه خلقو درخواست اُوکړو چه د هغوی خبره منل ضروري وو چه زه د قرآن په تاويلاتو کښې درمياني درجه داسے کتاب اُوليکم چه وجوه د اعراب او قراء ت لره جامع وي، د علم بديع او علم اشاراتو په باريکو او دقيق نکتو باندے مشتمل وي، د اهل سنت والجماعة په اقوالو سره مزين وي، د اهل بدعت او ضلالت د دروغو خبرو نه خالي وي، دومره اُوږد هم نۀ وي چه قاري د هغے په لوستلو سره تنګ شي او دومره لنډ او مختصر هم نۀ وي چه د هغے په پوهه کښې خلل راشي۔ ليکن ما د خپل بشري قوت د قصور د احساس په وجه خپل قدم مخکښې روستو کولو او پدے خطرناکه لاره تيريدو نه مے احتياط کولو تردے چه ما د الله په توفيق سره پدے کار شروع اُوکړه حال دا چه عوارض او موانع ډير زيات وو او په لږه موده کښې مے دا کتاب مکمل کړو، ما ددے نوم (مدارك التنزيل وحقائق التاويل) کيخودو۔

د نسفي تفسير د بيضاوي او د کشاف تلخيص دے ليکن په کشاف کښې چه د اعتزال کومے خبرے دي هغه دوي پريخوستي دي۔ البته د بلاغت او عربيت علمي دقائق او نکات ئے بيان کړيدي۔ دا مختصر او جامع تفسير دے۔

## (٤) لباب التاويل في معاني التنزيل

### معروف په تفسير خازن متوفي (۷٤۱هـ)

د خازن نوم علي بن محمد بن ابراهيم البغدادي الشيحي دے (شِيُحه په شام کښې د حلب

سره نزدے د یو کلی نوم دے پدے وجه ده ته شیحی وئیلے شی لیکن دا د خازن په نوم سره مشهور دے او ددهٔ تفسیر هم د تفسیر خازن په نوم پیژندلے شی۔ ددے وجه د تسمیه دا ده چه دا د دمشق د یوے کتب خانے خازن (خزانچی) پاتے شوے وو پدے وجه په خلقو کښ د خازن په نوم مشهور شو۔

ددهٔ لقب علاء الدین دے او دا د صوفی په نوم سره هم مشهور دے، علامه خازن په (۶۷۸ هـ) کښ په بغداد کښ پیدا شوے وو۔ د بغداد د اهل علمو نه د استفادے کولو نه روستو ئے دمشق ته سفر اُوکړو او هلته ئے د ډیرو علماؤ او محدثینو نه علوم حاصل کړل۔

په دمشق کښ یوه محدثه وزیره بنت عمر متوفاة (۷۱۶هـ) نه ئے هم د حدیثو سماع کړے وه، د تفسیر نه علاوه دوی د ((مقبول المنقول)) په نوم سره په لس جلدونو کښ د حدیثو یو کتاب لیکلے وو چه په هغے کښ ئے د'مسند شافعی، مسند احمد، صحاح سته، موطأ او دارقطنی احادیث راجمع کړی وو۔ او دے له ئے د ابوابو په طریقه سره مرتب کړے وو۔ په سیرت نبویه باندے ئے هم یو لوئی کتاب لیکلے وو۔ حافظ تقی الدین محمد بن رافع دمشقی متوفی (۷۷۴هـ) د دوی هَمْ عصر وو هغه فرمائی : خازن د ښائسته اخلاقو خاوند وو او د خلقو سره محبت کونکے او ښه تعلقات ساتونکے وو۔ دا په رجب یا شوال (۷۴۱هـ) کښ د شام په مشهور ښار حلب کښ وفات شوے دے۔

[طبقات المفسرین د داودی : ۴۲۶/۱]۔

تفسیر خازن په اصل کښ د بغوی د معالم التنزیل تلخیص دے او ددے سره دوی د نورو مفسرینو نه هم منتخب فوائد او نکات شامل کړیدی او د خپل ځان نه ئے پکښ د خپل طرف نه هیڅ خبره نهٔ ده کړے۔

هغه په خطبه د خپل تفسیر کښ داسے بیان کوی چه حاصل ئے دا دے :

هرکله چه د بغوی تفسیر معالم التنزیل په علم تفسیر کښ یو بهترین او اُوچت تفسیر وو، د صحیح اقوالو جامع وو، د شبهات او تصحیف نه خالی وو، په احادیث نبویه ؤ سره مزین وو، احکام شرعیه، ناشنا قصے او د ماضی په عجیب حالاتو مشتمل وو او پدے کښ ښائسته اشارات او نکات وو او مضامین ئے د واضح او ښائسته عباراتو په قالب کښ اچولے شوی وو نو ما دا اراده اُوکړه چه زه دا مختصر کړم او ددے سره نور فوائد او علمی نکات هم جمع کړم کوم چه ما د نورو مفسرینو د کتابونه نقل کړیدی۔

ما پدے کتاب کښ سوئ د نقل او انتخاب نه د خپل طرف نه هیڅ نهٔ دی لیکلی۔ د اُوږد

والی د کلام نه مے اجتناب کړیدے او د روایتونو سندونه مے حذف کړیدی۔ او د آیت د تفسیر دپاره یا د کوم حکم شرعی د اثبات دپاره چه ما کوم احادیث نبویه نقل کړیدی نو هغه مے تخریج کونکو محدثینو طرف ته منسوب کړیدی او د هغوی دپاره مے حروف علامات ایخودلی دی۔ د بخاری دپاره (خ) د مسلم دپاره (م) او د دواړو متفقه حدیث دپاره (ق) او د ابوداود، ترمذی او نسائی دپاره مے علامے نهٔ دی مقرر کړی بلکه د هغوی نوم مے اخستے دے۔

ما چه د بغوی نه زیات کوم احادیث نقل کړیدی یا د حدیث مختلف الفاظ نقل کړیدی نو ما د معتبرو کتابونه مثلًا د حمیدی د ((الجمع بین الصحیحین)) او د ابن الاثیر د ((جامع الاصول)) نه مے د هغے په تصحیح کښ پوره کوشش کړیدے، د اسناد د حذف کولو په عوض کښ ما د حدیث د غریب الفاظو تشریح کړیده دے دپاره چه د طالب علمانو دپاره د هغے فائده زیاته شی، څوپورے چه زما په وس کښ وو نو ما دا کوشش کړیدے چه په کتاب کښ ایجاز او اختصار وی، ترتیب ښائسته وی او ددے پو هه آسانه وی، مناسب دا ده چه کوم مصنف یو نوے کتاب لیکی چه د هغه کتاب د پنځه (۵) فوائدو نه خالی نهٔ وی۔ یو د مشکلے خبرے تحقیق کول۔ دویم : متفرق او خورے ورے خبرے په جامع الفاظو کښ راجمع کول۔ دریم : د پټو او باریکو خبرو تشریح کول۔ څلورم : ښائسته ترتیب او پنځم : زیاتی خبرے حذف کول او د اُوږد کلام نه اجتناب کول۔ زما امید دے چه زما دا کتاب به ددے پنځو فوائدو نه خالی نهٔ وی او ما ددے کتاب نوم ((لباب التاویل فی معانی التنزیل)) ایخودے دے۔

خازن خپله هم محدث وو او د علوم الحدیث نه واقف وو لیکن معلومه نهٔ ده چه په څه وجه ددهٔ په تفسیر کښ اسرائیلی روایات زیات نقل شویدی۔ د اسرائیلیاتو لوئی مأخذ د ابواسحاق ثعلبی نیشاپوری متوفی (۴۲۷ هـ) تفسیر (الکشف والبیان عن تفسیر القرآن) دے۔ او ثعلبی خپله دینداره ښه سړے وو لیکن حاطب لیل وو څه چه به ئے په کتابونو د تفسیر کښ موندل هغه به ئے نقل کول۔ لکه دا خبره شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ کړیده۔

اګرکه خازن په بعض ځایونو کښ په بعض اسرائیلی روایاتو رد هم کوی لکه د سورة ص آیات (۱۲) نه تر (۲۵) پورے په تفسیر کښ د اُوریا د ښځے متعلق قصه نقل کړیده بیا ئے د هغے نه روستو (فصل فی تنزیه داود علیه السلام عما لا یلیق به) عنوان سره ددے قصے سخت رد کړیدے او قاضی عیاض او امام رازی چه په هغه روایت باندے تنقید کړیدے

هغه ئے نقل کړیدے۔

لیکن اکثرو ځایونو کښې اسرائیلیات په تفصیل سره نقل کوی او غلے تیریږی۔

او په تفسیر د آیات الاحکام ئے کښې خپله وعده نۀ ده پوره کړے بلکه د ډیر اُوږد والی نه ئے کار اخستے دے۔ داسے معلومیږی چه د دوی مزاج صوفیانه هم وو او واعظانه هم وو او د صوفیانه مزاج والا خلق بالعموم د صحت د سند خیال نۀ ساتی بلکه کومه خبره چه په حاضرینو اثر کوی بس هغه بغیر د تحقیق نه بیانوی۔ بهر حال دا تفسیر ددے خامیانو باوجود ډیر مفید تفسیر دے او ډیر ښائسته معلومات پکښې دی۔ دا تفسیر بیروت دار الفکر (۱۹۷۹ء) کښې په اُووه او څلورو جلدونو کښې شائع کړیدے چه د هغے په حاشیه باندے معالم التنزیل هم چاپ شویدے۔

## (۵) البحر المحیط د ابوحیان اندلسی متوفی (۷٤۵ھ)

د ابوحیان نوم محمد بن یوسف بن علی اندلسی غرناطی دے لیکن دا د ابوحیان اندلسی په نوم مشهور دے او ددۀ لقب اثیر الدین دے۔

دا د خپل دور لوئی نحوی، لغوی، مفسر، محدث، مؤرخ، ادیب او قاری وو۔ د اندلس ښار غرناطه په خوا کښې په یو ځائے کښې په شوال کښې (٦۵٤ ھ) کښې پیدا شوے وو او همدلته ئے پرورش موندلے وو۔ نحو، لغت، قراءت او نور علوم ئے په غرناطه کښې لوستلی وو۔ په (۵۷۷ ھ) کښې د (۲۳) کالو په عمر د علم د تحصیل دپاره (سبته، تیونس او اسکندریه) ته سفر اُوکړو۔ په همدغه کال ورته د حج سعادت حاصل شو او د مکے د علماؤ نه ئے علوم حاصل کړل بیا جده، قوص، او د بحر قلزم په بندرگاه عیذاب کښې د مختلفو علماؤ نه د شاگردئ شرف حاصل کړو۔

په (٦۸۰ ھ) کښې مصر ته لاړو او هلته ئے د خپل وخت لوی لوی شیوخو نه علوم حاصل کړل۔ د مصر په جامع حاکمی او جامع اقمر کښې د عربیت استاد مقرر شو، جامع طولونی او قبه منصوریه کښې ئے د شیخ التفسیر فرائض سنبال کړل او په قبه منصوریه کښې د شیخ الحدیث په منصب فائز شو۔ دوی د اندلس، افریقه، حجاز او مصر وغیره د (٤۵۰) شیوخو نه د احادیثو سماع کړے وه۔ د دوی وفات په صفر (۷٤۵ ھ) کښې په قاهره کښې شوے وو او په مقابر الصوفیه کښې دفن شوے وو۔

د اهل ظاهرو مسلك ته ئې میلان لرلو او د ابن حجرؒ په قول دهٔ به وئیل چه د اهل ظاهرو مذهب چه کله یو ځل د چا په ذهن کښې واقع شي نو بیا د هغې د ذهن نه وتل مشکل وي لیکن په آخره کښې د امام شافعي مسلك ئې اختیار کړې وو. د فلسفي او اعتزال د بدعاتو نه د دوی عقیده پاکه وه. د قرآن د تلاوت په وخت به په دوی باندې رقت طاري کیدو او ډیر زیات به ئې ژړل، قد او قامت ئې لږ اُوږد وو، لیکن مخ ئې ډیر ښائسته وو او آواز ئې ډیر مزیدار وو، ابوحیان په صرف او نحو کښې مجتهد مطلق وو، ټول عمر ئې ددې دوه علومو په خدمت کښې مصروف وو.
ددهٔ شاګردان ددهٔ په ژوند کښې امامان او شیوخ جوړ شوي وو. شاګردانو ته به ئې د امام سیبویه کتاب په التزام سره لوستلو. د شیخ تقي الدین ابن تیمیه به ئې ډیر احترام کولو. یو ځل په یوه مسئله کښې ددهٔ او د ابن تیمیه ترمینځ بحث واقع شو. دوی چه کله د سیبویه حواله ورکړه نو ابن تیمیه اُوفرمایل چه آیا سیبویهٔ د نحو نبي وو؟ هغه خو په خپل کتاب کښې (۳۰) ځائې غلطیانې کړیدی. نو په هغه وخت کښې ابوحیان هیڅ جواب ورنکړو لیکن په خپل کتاب (النهر الماد تلخیص البحر المحیط) کښې دوی په ابن تیمیهٔ باندې تنقید کړیدې. د ابن مالك او ابن حاجب د تصنیفاتو په لوستلو به ئې شاګردانو ته ترغیب ورکولو لیکن په تفسیر او حدیث کښې ئې هم اُوږد لاس لرلو.
[ تذکرة الحفاظ ص : ۲۳، طبقات المفسرین د داودي ۲۹۱/۲].
ابوحیان د خپل تفسیر ډیره اوږده خطبه لیکلې ده چه په هغې کښې ئې مسجع او مقفی کلام کښې د خپل عربیت او ادبیت مهارت ښکاره کړیدې، د خپل تفسیر باعث د تصنیف او منهج او مراجع او مصادر او خپلو شیوخو په باره کښې مفید معلومات ذکر کړیدی.
دا ئې وئیلي دي چه هر کله زه په قبه منصوریه مصر کښې د علم تفسیر استاذ مقرر شوم نو ما ته الله دا موقعه راکړه چه زه خپل خواهش د تفسیر په باره کښې پوره کړم چه پدې وخت کښې زما د عمر (۵۷) کال شروع شویدې. ما به د نورو مصنفینو د تصنیفاتو نه هم منتخب فوائد او نکات جمع کول او د علم البیان او علم الاعراب چه کوم لطائف او دقائق زما د خپل قوت مفکرې نه راوتل هغه به مې هم لیکل، علم د کومې زمانې او د کومو خلقو پورې خاص نهٔ دې بلکه الله علم په مختلفو علاقو کښې خور کړیدې، زمونږ مغربي اندلسي علاقه اګرکه د وحي نبوي د مرکز نه وړاندې ده لیکن د دې باوجود پدې علاقه کښې علوم اسلامیه او خاصکر د علم تفسیر لوئې کامل او ماهر علماء موجود دي. څوك

چه په علم تفسير كښې ترقي غواړي نو د سيبويه الكتاب په لوستلو او ځان پو هولو دے مشغول شي۔

۲- ددے كتاب ترتيب داسے دے چه اول به د آيت په مفرداتو كلام كوم د يو يو لفظ لغوى او نحوى تشريح كوم، كه د يو لفظ دوه يا ډيرے معانى وى نو دا لفظ اول ځل چه چرته راغلے وى هلته د هغے معانى ذكر كوم دے دپاره چه په هر مقام كښې د هغه لفظ هغه معنى مراد كړے شى كومه چه د هغه مقام سره مناسبت لرى۔ ددے نه روستو د آيت تفسير كوم چه په هغے كښې د شان نزول، د هغه د نسخ يا عدم نسخ، د ماقبل سره د هغے د مفهوم ربط او قراء ات مستعمله او شاذه ذكر كوم۔ د آيت د معانيو په باره كښې د سلف او خلفو اقوال ذكر كوم، د اعرّاب مشكلات حل كوم او د بيان او د بديع دقائق بيانوم، د احكام شرعيه ؤ په بيان كښې د فقهاء اربعو اقوال نقل كوم او د فقه د كتابونو حواله وركوم او آخر كښې ددے ټولو بحثونو خلاصه ذكركوم۔ د باطنيه ؤ اقوال مے پكښې پريخى دى ځكه چه دا خلق لغوى متبادرے معانى پريدى او غير معقول معانى اخلى۔

ددے تفسير لوئى ماخذ د زمخشرى او د ابن عطيه تفسيرونه دى او دۀ په خپل تفسير كښې زياته توجه لغت او عربيت ته وركړيده او دا هم د قرآن ډير لوئى خدمت دے۔

د ابوحيان په تفسير كښې اسرائيلى روايات او حكايات ډير كم نقل شويدى او كوم ځائے چه نقل شويدى نو هلته پرے رد هم شويدے۔ ابوحيان د «النهر الماد من البحر» په نوم سره ددے تفسير اختصار هم كړيدے چه هغه د تفسير په حاشيه باندے چاپ شويدے او د هغه شاگرد تاج الدين احمد بن عبد القادر متوفى (۷۴۹ھ) هم د «الدر اللقيط من البحر المحيط» په نوم سره ددے اختصار كړيدے۔ ليكن د هغے زيات تعلق په زمخشرى او ابن عطيه باندے تنقيد دے او دا اختصار هم په حاشيه باندے چاپ شويدے۔

البحر المحيط په (۱۹۸۳ء) كښې د بيروت نه په اته جلدونو كښې شائع شويدے۔

## (٦) غرائب القرآن ورغائب الفرقان
## د نيسابورى مشهور په تفسير نيشاپورى

د نيشاپورى نوم حسن بن محمد بن حسين خراسانى نيشاپورى دے او لقب ئے نظام الدين دے، ددۀ آبادى وطن خو د ايران مشهور ښار (قُم) دے ليكن ددۀ پرورش په نيشاپور كښې شوے وو پدے وجه د نيشاپورى په نوم سره مشهور دے۔ په نيشاپور كښې دا د علم د

ستنو نه شمار کيدو۔ په علوم عقليه او لغت عربيه او علم التاويل والتفسير کښ ئے زيات مضبوطوالے لرلو۔ددهٔ تاريخ پيدائش او تاريخ وفات صراحةً نهٔ دے ذکر شوے ليکن غالب گمان دا دے چه دا د نهمے صدئ هجري په آواخرو کښ تير شويدے۔

ددهٔ د تفسير نوم ((غراب القرآن ورغائب الفرقان)) دے ليکن د نيشاپوری په نوم سره مشهور دے۔ ددے تفسير لوئي ماخذ د امام رازی تفسير کبير دے بلکه که دے ته د تفسير کبير تلخيص اُووئيلے شي نو غلط به نهٔ وی۔ د تفسير کبير نه علاوه دوی د کشاف او نورو تفاسيرو نه هم اخذ کړيدے او ددهٔ په خپل ذهن کښ چه کومے خبرے راغلی دی هغه ئے هم ذکر کړيدی۔

مصنف د خپل تفسير معلومات په خطبه کښ او دغه شان د تفسير په اختتام کښ داسے ورکړيدی :

((زما دا تفسير د تفسير کبير په حاصل مفهوم باندے مشتمل دے، پدے کښ د تفسير کشاف اهم مضامين شته او هغه نکات او فوائد هم ذکر شويدی چه په نورو تفاسيرو کښ نهٔ ملاويږی يا خواره واره دی۔

○ زما پدے کتاب کښ چه کوم احاديث نقل شويدی دا خو يا د احاديثو د مشهورو کتابونو نه اخستے شويدی لکه جامع الاصول او مصابيح وغيره او يا بيا د تفسير کبير او تفسير کشاف نه اخستے شويدی ليکن په کشاف کښ د سورتونو په فضيلت کښ چه کوم احاديث نقل شويدی هغه ما غورزولی دی ځکه چه هغه اکثر ضعيف دی۔

○ وقوف د سنجاوندی نه اخستے شويدی۔

○ د اسباب نزول روايات د جامع الاصول او دوارو تفسيرونو نه يا د تفسير واحدی نه اخستے شويدی۔

○ د لغت سره متعلق مباحث د جوهری د صحاح او د کبير او کشاف نه اخستے شويدی۔

○ د معانی او بيان سره متعلق مباحث او نور ادبی مسائل د کبير او کشاف او د سکاکی د مفتاح العلوم نه او د عربيت سره متعلق نورو کتابونو نه اخستے شويدی۔

او فقهی او شرعی احکام د دوارو تفسيرونو يعنی کبير او کشاف او د فقه د معتبرو کتابونو نه اخستے شويدی خاصکر د امام رافعی د شرح الوجيز نه۔ ما پدے تفسير کښ سوئ د اهل السنة والجماعة د مسلك نه بل هيڅ مسلك ته ميلان نهٔ دے کړے۔ د هغوی اصول او د هغوی دلائل مے بيان کړيدی او په هغوی باندے کړے شوی اعتراضاتو جوابونه مے

ورکړېدی۔ ددې تفسیر په مکمل کولو کښې که ما غوختلے نو دومره موده هم لګیدلے شوه ځومره چه د خلفاء راشدینو د خلافت موده ده یعنی (۳۰) کاله لیکن ما د الله په توفیق سره دومره وخت کښې مکمل کړو ځومره چه د علی د خلافت موده وه یعنی (۵) کاله او که په مینځ کښې اوږد سفر نۀ وې راپیښ شوې او د غمونو او مشکلاتو حملے نۀ وې نو ما په دومره موده کښې هم مکمل کولے شو ځومره چه د ابوبکر صدیق د خلافت موده ده یعنی (۲) دوه کاله (۳) میاشتے (۱۰) لس ورځے۔

بعض خلقو ددې تفسیر په مصنف یعنی نظام الدین نیشاپوری باندې د شیعیت الزام لګولے دې لیکن د هغه د خپل کلام نه معلومه شوه چه دا د اهل سنت والجماعة د مسلك پابند دې۔ او په تفسیر کښې ئې د تشیع هیڅ خبره نشته۔

نیشاپوری د خپل تفسیر په ابتداء کښې ډیر علمی مقدمه لیکلی ده چه په یولسو مقدمو مشتمل ده که یره د طوالت نۀ وې نو مونږ به ذکر کړې وې۔

دا تفسیر نیشاپوری دار الکتب العلمیه بیروت (۱۹۹۶ء) کښې په (٦) جلدونو کښې د احادیثو د تخریج سره شائع کړیدې۔ ددې نه مخکښې دا د تفسیر ابن جریرؒ په حاشیه باندې چاپ شوې وو۔

## (۷) اللباب فی علوم الکتاب لابن عادل

### دمشقی متوفی بعد (۸۸۰ھ)

د ابن عادل نوم عمر بن علی دې لقب ئې سراج الدین دې او کنیه ئې ابوحفص ده لیکن د ابن عادل دمشقی په نوم مشهور دې، دمشق د شام مشهور ښار دې۔

تاریخ ولادت ئې معلوم نۀ دې لیکن دا خبره تقریباً اتفاقی ده چه ددۀ وفات (۸۸۰ھ) نه روستو شویدې او په سنه (۸۸۰ھ) کښې دا ژوندې وو، ددۀ د شاګردانو او استاذانو په باره کښې هم معلومات نشته لیکن تفسیر په ډیرو علوم او معلوماتو مشتمل دې پدې کښې د لغت او لغوی معانیو تفصیلات بیان شویدی او د دلائلو په طور عربی اشعار پیش کړې شویدی او د فقهی او شرعی احکامو په باره کښې د فقهاؤ اقوال د هغوی د دلائلو او احکامو د جزئیاتو پورې بیان شویدی چه د اوږدو کتابونو نه انسان بی پرواه کوی۔ او ډیر نوی نکات او فوائد هم مخے ته راځی مثلًا د سورة فاتحے د تفسیر نه د اعوذ بالله او بسم الله په لغوی او فقهی تحقیق باندې (۸۱) لوئی صفحات لګولی دی او ډیر علمی معلومات

ئے ورکړیدی۔ معلومیږی چه دا ډیر لوئی جامع العلوم وو۔
ددے تفسیر هم لوئی ماخذ د امام رازی تفسیر کبیر دے، تقریباً د هر بحث په اختتام د امام رازی اقتباس راوړی لیکن د هغه نوم (ابن الخطیب) ذکر کوی۔ په فقهی مسائلو کښ اګرکه ترجیح حنبلی مسلك ته ورکوی لیکن د تعصب نه پاك دے۔ تول امامان په ډیر احترام سره ذکر کوی او د تولو دلائلو خلاصه هم اکثرو ځایونو کښ ذکر کوی۔ مصنف څه خاص تفصیلی مقدمه نهٔ ده لیکلے صرف دومره ئے وئیلی دی :
دا یو کتاب دے چه ما د علوم القرآن د علماؤ اقوال پکښ جمع کړیدی چه ددے نوم دے (اللباب فی علوم الکتاب)۔
دا تفسیر دار الکتب العلمیه بیروت (۱۹۹۸ء) کښ (۲۰) جلدونو کښ شائع کړیدے او درے ماهرین فضلاؤ پرے تحقیق او تعلیق کړیدے۔

## (۸) **تفسیر جلالین** د جلال الدین المحلی

متوفی (۸٦٤هـ) او جلال الدین سیوطی متوفی (۹۱۱هـ)

دا یو تفسیر دے لیکن ددے مصنفین دوه دی او د دواړو لقب جلال الدین وو پدے وجه د دوی تفسیر د دوی په نوم سره مشهور شو۔ ورنه تصنیف کونکو ددے هیڅ نوم نهٔ دے ایخودے۔ یو ته جلال الدین السیوطیؒ وائی چه د هغه حالات د تفسیر الدر المنثور په تعارف کښ بیان شو۔ او دویم جلال الدین محلی دے چه د هغه مختصر حالات دا دی :
دا جلال الدین محمد بن احمد المحلی (المحلة الکبریٰ) ته منسوب دے چه دا د مصر یو ښار دے په مصر کښ (۷۹۱هـ) پیدا شوے وو او په یکم د محرم (۸٦٤هـ) کښ وفات شوے وو۔
ده ته په فقه، اصول، نحو، کلام او منطق وغیره فنونو کښ ډیر مهارت حاصل وو، په فهم او ذکاوت او فطانت او ذهانت کښ د الله د قدرت نښه وه۔ تقوی، امر بالمعروف او نهی عن المنکر او د حاکمانو او امیرانو مخکښ د حق کلمے ویونکو سلف صالحینو په نقش قدم روان وو۔ لوئی قضاوت منصب ده ته پیش کړے شوے وو لیکن دوی د قبلولو نه انکار کړے وو البته په (مدرسه مؤیدیه) کښ د فقه د تدریس منصب ئے قبول کړے وو۔
لیکن خپل رزق به ئے د تجارت په ذریعه ګټلو۔
جلال الدین محلی د سورة کهف نه د قرآن آخر پورے تفسیر لیکلے وو او د هغے نه بعد

ئے د سورۃ الفاتحے تفسیر ئے هم لیکلے وو۔ لیکن ژوند ورسره وفاء اُونکړه او نیمګړے پاتے شو۔

او جلال الدین سیوطی د سورۃ بقرے نه تر سورۃ بنی اسرائیل آخر پورے تفسیر د تکملے په طور د محلی په طرز باندے لیکلے دے لکه چه هغه د سورۃ بقرے د تفسیر په ابتداء کښ همدغسے لیکلی دی۔

سیوطیؒ وائی چه ما د محلی په طرز لیکلے دے او څومره چه کیدے شی نو ما د اختصار نه کار اخستے دے، د مرجوح اقوال او د اعراب او لغت تفصیلات مے پریخی دی، او د آیت او د کلماتو معانی په مختصرو الفاظو کښ بیان شویدی۔ او د قراءاتو ذکر هم په ډیر باریك او مختصرو الفاظو کښ شویدے۔

سیوطی په ((بغیة الوعاة فی تراجم اللغویین والنحاة)) کښ د احمد بن یوسف الکواشی الموصلی متوفی (۸۶۰هـ) د حالاتو په بیان کښ لیکلی دی: چه ددۀ یو تفسیر لوئی او بل وړوکے شته چه په هغے کښ ئے اعراب او وقوف ډیر ښه واضحه کړیدی او پدے باندے جلال الدین محلی په خپل تفسیر کښ اعتماد کړیدے او ما د هغے په تکمله کښ اعتماد کړیدے او ورسره تفسیر وجیز او تفسیر البیضاوی متوفی (۶۸۵هـ) او د ابن کثیرؒ متوفی (۷۷٤) نه هم استفاده کړیده۔

سیوطی وئیلی دی چه زه ددے تکملے لیکلو نه د اتوار په ورځ (۱۰) شوال سنه (۸۷۰هـ) کښ فارغ شوم او ددے شروع د چارشنبے په ورځ اول رمضان (۸۷۰هـ) کښ شوے وو۔ او ددے تبییض د چارشنبے په ورځ (٦) صفر (۸۷۱هـ) کښ مکمل شوے وو۔

د سیوطی د خپل بیان کړی تاریخو نه معلومه شوه چه د تکملے شروع ئے د (۲۱) کالو په عمر کړے وه او کله چه د هغے نه فارغ شو نو دوه ویشتم کال کښ داخل شوے وو ځکه چه د سیوطی پیدائش (۸٤۹هـ) کښ شوے وو او د جلال الدین محلی د وفات نه (٦) کاله روستو ددے تفسیر تکمله مکمل شوے وه ځکه چه د محلی وفات (۸٦٤هـ) کښ شوے وو۔ تفسیر جلالین ته ډیر مقبولیت حاصل دے د عربو او عجمو په اکثرو مدارسو کښ په نصاب کښ داخل دے۔

لیکن چونکه دا تفسیر جلالین ډیر مختصر دے پدے وجه پدے باندے ډیرو علماؤ حواشی لیکلی دی چه تقریباً اتلسو ته رسیږی۔

دواړه جلالونو اګرکه دا منهج خپل کړے وو چه په راجح اقوالو به اکتفاء کوی او مرجوح

اقوال بـه حـذف کـوی لیـکن حقیقت دا دے چه دواړه په خپل منهج باندے قائم نهٔ دی پاتے شوی او پـه ډیـرو ځایـونـو کـښ ئے مـرجوح او ضعیف اقوال هم نقل کړیدی او اسرائیلی روایات ئے هم بغیر د تردید او تنقید نه نقل کړیدی لیکن تعجب دے چه د جلالین متداول حواشی یعنی جمل او صاوی هم په ځائے ددے چه د هغے تردید اُوکړی دوی په تشریح کښ نور اسرائیلیات نقل کړیدی۔

## (۹) ارشاد العقل السلیم الی مزایا الکتاب الکریم

المعروف بتفسیر ابی السعود د ابوسعود متوفی (۹۸۲ هـ)

د ابـوالسـعـود نـوم مـحـمـد بـن مـصـطـفـی الـعـمـادی دے۔ دا پـه سنـه (۸۹۳ هـ) کـښ د قسـطـنـطـیـنـیـه تـه نـزدے پـه یو کلی کښ پیدا شوے وو، ددهٔ پیدائش په داسے کورنئ کښ شوے وو چه پـه عـلم او فضل سره مشهوره وه او ددهٔ تربیت هم د ابتداء نه په دینی ماحول کښ شوے وو۔ اکثر کتابونه ئے د خپل والد نه لوستلی دی لیکن د خپل دور د لوئی علماؤ نه ئے د شاګردئ شرف هم حاصل کړے وو۔

دہ د تـرکـی پـه ډیرو مدارسو کښ د تدریس ذمه واری سنبال کړے وه، بیا د (بروسه) قاضی جوړ شو او څه موده روستو د قسطنطینیه محکمه د قضاء ته ددهٔ تبدیلی اُوشوه۔ د قضاء د فرائضو د سنبالولو نه روستو دوی د افتاء په منصب مقرر کړے شو او تر (۳۰) کالو پورے بـه ئے په ښه شان سره فتوے ورکولے۔ پدے سلسله کښ دده علمی تجربه دا وه چه که چا به پـه نـظـم او شـعـر کـښ سوال کړے وو نو دهٔ به هم په نظم کښ جواب ورکولو۔ که په عربی کـښ بـه سـوال راغـلـو نـو جـواب بـه هم په عربی کښ ورکولو او که سوال به په ترکی ژبه کیدو نـو جـواب بـه هـم پـه تـرکـی ژبـه ورکـولو۔ پـه جمادی الاولی (۹۸۲ هـ) کـښ پـه قسطنطینیه کښ وفات شوے وو۔ او د ابو ایوب انصاری په ګاونډ کښ دفن شوے وو۔

عـلامـه عبد الحی لکهنوی لیکی : چه ما ددے تفسیر مطالعه کړیده او ددے نه مے فائده اخستے ده، دا ډیـر ښـه تفسیر دے نهٔ دومره اُوږد دے چه لوستونکے سترے کړی او نهٔ دومره مـخـتصر دے چه په فهم د قرآن کښ خلل واقع کړی۔ دا تفسیر په بهترینو لطائفو او نکاتو او فوائد او اشاراتو باندے مشتمل دے۔

[ الفوائد البهیة فی تراجم الحنفیة ص : ۸۱]۔

د قـاضـی ابـوالسـعـود تـفسیر لوئی ماخذ تفسیر کشاف او تفسیر بیضاوی دے لکه چه

هغوی په مقدمه د تفسیر کښې خپله لیکلی دی چه : په تیرو شوو ورځو کښې چه کله ما د تفسیر کشاف او د بیضاوی انوار التنزیل مطالعه کوله نو زما په زړه کښې شپه او ورځ دا خیال تیریدو چه ما له ددے د فوائدو ملغلرے په یو باریك لړئ کښې داخلول پکار دی او ددے پرقیدونکی نکات په ښائسته ترتیب سره مرتب کول پکار دی او ددے سره د نورو کتابونو د حقائقو او دقائقو جواهر هم زیاتول پکار دی۔ زما اراده دا هم وه چه کله هم زه په داسے کتاب لیکلو کامیاب شوم نو د هغے نوم به (ارشاد العقل السلیم الی مزایا الکتاب الکریم) اږدم۔

دے نه معلومه شوه چه د ابوالسعود اعتماد په کشاف او بیضاوی باندے وو لیکن هغه د زمخشری د اعتزال تائید نهٔ دے کړے بلکه د اهل السنة والجماعة په مسلك باندے قائم پاتے شویدے۔ اسرائیلی روایات خو پدے کښې ډیر کم نقل شویدی لیکن د سورتونو په فضیلت کښې چه په کشاف کښې کوم ضعیف اسرائیلی روایات نقل شویدی نو د هغے نه یو یو حدیث ابوالسعود هم نقل کړیدے۔

## (۱۰) روح المعانی فی تفسیر القرآن

## العظیم والسبع المثانی د آلوسی بغدادی متوفی (۱۲۷۰ هـ)

د آلوسی نوم سید محمود آلوسی بغدادی دے (آلوس) په فرات نهر کښې د شام او د بغداد ترمینځ د یوے جزیرے نوم دے۔ ددهٔ پلار نیکه ددے جزیرے سره تعلق لرلو۔ پدے وجه دهٔ ته آلوسی وائی او چونکه دا د بغداد مفتی پاتے شویدے پدے وجه په علامه آلوسی بغدادی نوم سره مشهور دے۔ ددهٔ ولادت (۱۲۱۷ هـ) د بغداد په علاقه کرخ کښې شوے وو، دهٔ منقول او معقول او اصول او فروع او د تفسیر او حدیث علوم د خپل والد نه او د نورو ممتازو علماؤ نه حاصل کړی وو، ده د (۱۳) کالو په عمر د تدریس او تصنیف کار شروع کړے وو۔ په مختلفو مدارسو کښې دوی تدریس سنبال کړے وو او کله چه د حنفیه ؤ مفتی مقرر شو نو بیا ئے په خپل کورکښې د تمامو علومو درس ورکولو، مختلف خلق به دهٔ ته راتلل او علم به ئے حاصلولو۔ د طالبانو د خوراك او لباس او رهائش پروګرام به ئے خپله کولو۔ او د خپل کور په بهترینو کمرو کښې به ئے طالبان اُوسول تردے چه د (شیخ العلماء فی العراق) نوم سره به یادیدو او د علم او فضل ریاست او سیادت هغه مقام ته

رسيدلے وو چه څوك دده مد مقابل نۀ وو۔ او نه به چا دده د قيادت او سيادت نه انكار كولو
په (۱۲٤۸ هـ) كښې د (۳۱) كالو په عمر كښې د حنفيه ؤ مفتي مقرر شوے وو او ددے نه څو
مياشتے مخكښې د مدرسه مرجانيه د اوقافو متولي مقرر شوے وو۔ وجه دا وه چه د واقف
شرط دا وو چه د ښار لوئى عالم به متولي وي، نو وزير علي رضا باشا تحقيق اُوكړو نو
معلومه شوه چه په هغه وخت كښې لوئى عالم آلوسى دے۔ په (۱۲٦۳ هـ) كښې (۱۵) كاله
افتاء كار كولو نه روستو ددے منصب نه جدا شو او د تفسير په تكميل كښې مشغول شو۔
د مكمل كيدو سره په سنه (۱۲٦۷ هـ) كښې د خلافت عثماني دار الخلافه قسطنطينيه ته
تشريف يوړو او تفسير ئے سلطان عبد المجيد خان په خدمت كښې پيش كړو او په (۲۵) ذو
العقده (۱۲۷۰ هـ) كښې د جمعے په ورځ په بغداد كښې وفات شو او د شيخ معروف كرخي
په مقبره كښې دفن كړے شو۔

[التفسير والمفسرون ۱/۳۵۲]۔

د تفسير روح المعاني د تصنيف قصه مصنف په مقدمه كښې داسے بيان كړيده چه:

ما د وړوكوالي نه د قرآن د رازونو نه د پردے لرے كولو ډير شوق لرلو۔ ددے شوق پوره
كولو دپاره ما خپل خوبونه قربان كړي وو او په همدے كښې ما خپل قيمتي اوقات صرف
كړي وو، تردے چه الله ما ته د قرآن په ډيرو حقائقو باندے د پوهولو توفيق راكړو۔ زما عمر
اُوس لا (۲۰) كالو ته نۀ وو رسيدلے چه ما د قرآن په ظاهري الفاظو باندے د راتلونكو
اشكالاتو ازاله شروع كول شروع كړل او د تفسير هغه دقائق مے ښكاره كړل چه په هيڅ
كتاب كښې نشي موندے كيدے۔ ما د خپل هَمُ عصر علماؤ نه استفاده كړے او د هغوى د
علم د رڼړا ګانو نه مے رڼړا حاصله كړے۔ زما په زړه كښې دا خيال تلو راتلو چه يو كتاب
اُوليكلے شي چه په هغے كښې هغه فوائد او نكات او حقائق او دقائق جمع كړے شي چه
زما په ذهن كښې دي ليكن پدے تردد او شك كښې وم چه ما په رجب (۱۲۵۲ هـ) كښې د
جمعے په شپه خوب اُوليدلو چه ما ته الله حكم كوى چه آسمان او زمكه راغونډ كړه نو ما
يو لاس آسمان طرف ته پورته كړو او بل لاس مے لاندے اُوبو ته زوړند كړو او پدے حالت
كښې د خوب نه بيدار شوم۔ ما چه كله ددے خوب تعبير تلاش كړو نو په يو كتاب كښې مے
اُوليدل چه دا د تفسير ليكلو ته اشاره ده۔ نو بس ما په (۱٦) شعبان (۱۲۵۲ هـ) تفسير
ليكل شروع كړل۔ پدے وخت كښې زما عمر (۳٤) كاله وو او دا د سلطان محمود خان بن
سلطان عبد المجيد خان دور حكومت وو۔

آلوسی د تفسیر په خاتمه کښې لیکلي دي چه په (٤) ربیع الثاني (۱۲٦۷ هـ) کښې د منګل په شپه چه کله تفسیر د تالیف نه اختتام ته اُورسیدو نو ما فکر اُوکړو چه ددے نوم څه کیخودے شي لیکن زړونو لره مائل کونکے هیڅ نوم ذهن ته نۀ راتلو۔ پدے جه ما د نوم مسئله وزیر الوراء علي رضا باشا مخے ته پیش کړه او هغه سمدستي اُووئیل چه ددے نوم (روح المعاني في تفسیر القرآن العظیم والسبع المثاني) دے۔

دا خوب د الله د طرف نه یو زیرے وو او غالباً د همدغه زیری په وجه سره دے تفسیر ته یے حده مقبولیت حاصل شویدے او ددے په تصنیف کښې هم د الله خصوصي امداد او توفیق شامل وو۔ څکه چه د ورځے به علامه آلوسی د افتاء او تدریس کار کولو او د شپے په ابتدائي حصه کښې به طلباؤ او دوستانو سره مذاکرات کول او د شپے په آخري حصه کښې به ئے څه صفحات لیکل او سحر به ئے کاتبانو ته حواله کول کوم چه ددے کار دپاره د دوی په کور کښې اُوسیدل او دۀ به د هغه صفحاتو تبییض په لس ګینټو کښې مکمل کول۔

د علامه آلوسی بغدادي تفسیر په درایت او روایت یعنی تفسیر بالماثور او تفسیر بالرأی المحمود دواړو په اعتبار سره یو جامع تفسیر دے۔ پدے کښې د سلفو آراء هم نقل شویدي او د خلقو اقوال هم په پوره امانت او دیانت سره نقل شویدي۔

پدے لحاظ سره دا د مخکنو تفاسیرو په خلاصے باندے مشتمل تفسیر دے، پدے کښې د کشاف، تفسیر کبیر، تفسیر ابن عطیه، تفسیر بیضاوی، تفسیر ابو حیان او تفسیر ابو السعود د ټولو نقول موجود دي او د ټولو نه دۀ اخذ کړیدے۔

د آلوسی طرز دا دے چه کله د ابو السعود نه نقل کوی نو وائی چه (قال شیخ الاسلام)، کله چه د بیضاوی نه نقل کوی نو اکثر مقاماتو کښې وائی چه (قال القاضي) او کله چه د امام رازی نه نقل کوی نو وائی چه (قال الامام) لیکن دا چه کله ددے تفاسیرو نه نقل کوی نو د هغوی په باره کښې خپله آزاده رائے هم پیش کوی، ډیرو ځایونو کښې به ته ګورے چه دۀ په ابو السعود، بیضاوی، ابو حیان او امام رازی باندے اعتراضات کړیدي۔ او د هغوی سره ئے په رائے کښې اختلاف کړیدے لیکن کله چه دا د هغوی نه د یو تن رائے صحیح ګنړی نو بیا د هغے په تائید کښې دلائل ورکوی او هغے ته ترجیح ورکوی۔

علامه آلوسی سلفي المذهب او سني العقیده وو او په خپل مسلك او عقیده کښې متصلب (کلك) او راسخ (مضبوط) وو۔ دا وجه ده چه پدے تفسیر کښې د معتزله، شیعه او نورو د اهل بدعو فرقو د آراؤ تردید شویدے او په سختئ سره د هغوی ابطال شویدے۔ د

نحوي مسائلو ذکر پدے تفسیر کښې د ضرورت نه زیات شویدے لیکن دا یوه فطري خبره ده چه انسان په کوم فن کښې مهارت زیات لري نو د هغې مسائل د هغه د ژبے او قلم نه زیات اُوځي۔ د احکامو د آیتونو په تفسیر کښې د پوره تحقیق نه بغیر مخکښې نۀ ځي بلکه د فقهاؤ آراء او د هغوي دلائل د حاجت په اندازه پوره تفصیل سره بیانوي۔

په عام طور سره خو حنفي مسلك ته ترجیح ورکوي لیکن د حنفیت دپاره تعصب پکښې نشته۔ دلیل دا دے چه د سورة البقرے په ثلاثة قروء آیت په تفسیر کښې دوی په درے صفحاتو کښې اُوږد علمي بحث کولو نه روستو لیکي : [وَبِالْجُمْلَةِ كَلَامُ الشَّافِعِيَّةِ فِيْ هٰذَا الْمَقَامِ قَوِيٌّ]۔ یعني خلاصه د خبرے دا ده چه پدے مقام کښې د شافعیه ؤ کلام قوي دے۔

د روح المعاني یوه لویه خوبي دا ده چه پدے کښې غیر مستند قصے او حکایات او اسرائیلي روایاتو باندے سخت تنقید شویدے او په ډیرو تیزو الفاظو سره په هغې رد شویدے۔ په سورة المائده کښې ئے د عوج بن عنق په واقعه ئے سخت رد کړیدے چه ((هیڅ شك نشته چه دا او ددے په شان نور واقعات د اهل کتابو زندیقانو جوړ کړیدي او پدے سره مقصد د انبیاء او رسولانو او د هغوي د متبعینو پسے توقے کول دي))۔

علامه آلوسي د آیتونو د صوفیاؤ په طرز اشاري تفسیر هم کړیدے لیکن دوی په ابتداء کښې چه کوم فوائد لیکلي دي په هغې کښې په دویمه فائده کښې ئے دا تصریح کړیده چه د الفاظو د ظاهري معنی او اشاري معنیٰ ترمینځ تطبیق به تلاش کولے شي۔ دا مطلب نۀ دے چه د آیت ظاهري معنیٰ مراد نۀ ده او صرف باطني معنی مراد ده ځکه چه دا خو د باطنیه فرقے د ملحدینو عقیده ده چه ددے په ذریعه هغوي د شریعت نفي کول غواړي۔

لیکن علماء فرمائي که آلوسي په خپل دے تفسیر کښې دا تفسیر اشاري نۀ وے ذکر کړے نو ډیر به بهتر وے ځکه چه د عوامو نه علاوه عام علماء هم دا اشارے نشي معلومولے او ددے معلومول څه ضروري هم نۀ دي۔ بله دا چه دا طرز د سلف صالحینو نۀ وو چه هغوي اشاري تفسیر کولو بلکه دا صرف د صوفیانو طریقه ده او په سلفي طریقه کښې برکت او فائده ده۔

OOOOOOOOOO

## ۱۱ - التحرير والتنوير :

د محمد طاهر ابن عاشور متوفی (۱۸۸٦ هـ) موافق (۱۸٦۸ء)

دا د تونس د اشرافو نقیب او مشر وو او د هغوی د علماؤ نه یو کبیر الشان عالم وو۔ دوی په زمانه د الباي محمد صادق (باشا)۔

دده نوم دے محمد الطاهر بن محمد الشاذلی بن عبد القادر بن محمد بن عاشور۔

دا په ابتداء کښې د تونس قاضی مقرر شو په سنه (۱۲٦۷ هـ) کښې بیا د ټول تونس مفتی عام شو په سنه (۱۲۷۷ هـ) کښې بیا ورته د اشرافو نقابت ملاؤ شو۔ دا د مالکیانو شیخ الاسلام وو۔ دا په تونس کښې د معهد زیتونی نه فارغ شوے وو او په هغے کښې بیا استاذ مقرر شو او د استاذئ نه روستو د ټولو مشر شو۔

علامه زرکلی دده صفات داسے بیان کړیدی : [اَدِیبٌ، خَطِیبٌ، مُشَارِكٌ فِیْ عُلُوْمِ الدِّیْنِ، مِنْ طَلَائِعِ النَّهْضَةِ الْحَدِیْثَةِ النَّابِهِیْنَ فِیْ تُوْنُسَ]

(دا ادیب، (فصیح بلیغ) خطیب وو، او په دینی علومو کښې شریك وو، او تونس کښې د اُوچتو علماؤ او جدید ماهرینو نه وو) دے به محاضراتو او بیاناتو دپاره مختلف ممالکو باندے ګرځیدو لکه فرانس، او جامعه د استنبول او جامعه د علیګړه هندستان کښې ئے محاضرات کړی وو۔

دا د مکے د رابطة العالم الاسلامی او په قاهره کښې د المجمع اللغوی یو عضو او رکن وو۔ ډیر علمی کتابونه ئے لیکلی دی۔

دۀ خپل منهج د تفسیر په مقدمه کښې لیکلے دے چه ما پدے تفسیر کښې د قرآن د وجوه الاعجاز او د عربی بلاغت نکتے او اسالیبو د استعمال اهتمام کړیدے، دغه شان د آیتونو د مناسبتونو لحاظ مے ساتلے دے چه دا اهتمام فخر الدین رازی او علامه برهان الدین بقاعیؒ په نظم الدرر کښې هم ساتلے دے لیکن دے دواړو په ډیرو آیتونو کښې د قناعت والا مناسبتونه نۀ دی بیان کړی۔ البته د سورتونو د مناسبت اهتمام مے نۀ دے کړے۔ او نۀ څه ضروری دے۔

د سورة په ابتداء کښې مے د سورة عام غرضونه بیان کړیدی، دے دپاره چه د تفسیر کتونکے صرف د آیتونو په مفرداتو او د جملو په معانیو اکتفاء اُونکړی بلکه د هغے

مقاصد هم اُوپيژني۔
د مفرداتو د لغت د معانيو د وضاحت او بيان اهتمام ئے کړيدے چه د لغت ډير کتابونه ترے خالي دي۔ او ممکن ده چه ددے تفسير مطالعه کونکے به خپل مراد مونده کړي او فوائد او نکتے به د خپل استعداد مطابق حاصلے کړي۔ ځکه چه ما پدے خپل تفسير کښ د قرآن کريم د معانيو داسے نکتے او اعجاز ذکر کړيدے چه تفاسير د هغے نه خالي دي او نورو تفاسيرو کښ چه څه ښه څيزونه دي هغه پدے تفسير کښ ملاويږي۔ او ما ددے نوم کيخودو ((تحرير المعنى السديد وتنوير العقل الجديد من تفسير الكتاب المجيد)) چه ددے لنډ نوم دے (التحرير والتنوير من التفسير))۔
مصنف چه د خپل تفسير کوم صفت اُوکړو نو واقعي همدغسے ده، ډيرے نکتے پکښ شته چه ډير تفاسير د هغے نه خالي دي، او په ابتداء کښ ئے يوه بهترينه مقدمه ذکر کړيده چه په هغے کښ ئے د قرآن متعلق ډير ښه معلومات او علوم القرآن بيان کړيدي، د هغے کتل هم ډير مناسب دي۔ ددے تفسير نه ډيره فائده قوي عالم اخستے شي او د مفسر دپاره ددے کتل هم ډير اهم دي۔
مصنف دا تفسير تقريباً په نهه ديرشير مؤسسة التاريخ العربي بيروت لبنان په ديرش جلدونو کښ چاپ کړيدے۔

## ۱۲ - تفسير القاسمي (محاسن التاويل):

پيدائش :۱۲۸۳ - وفات : ۱۳۳۲ هـ)
مطابق (۱۸٦٦م وفات : ۱۹۱٤ء)

د قاسمي نوم دے جمال الدين (يا محمد جمال الدين) بن محمد بن سعيد بن قاسم الحلاق۔ دا د حسين السبط د اولادو نه وو۔ په خپله زمانه کښ د شام امام وو، د دين لوئی عالم وو، او د ادب د فنونو نه ئے سينه ډکه وو۔پيدائش او وفات ئے په دمشق کښ شوے وو۔ دا سلفي العقيده وو، په تقليد به ئے سخت رد کولو، حکومت پدے مقرر کړے وو چه د سوريا په کلو او علاقو کښ دورے اُوکړي او هلته عام درسونه اُوکړي۔ نو څلور کاله ئے دا عمل اُوکړو (۱۳۰۸-۱۳۱۲ هـ) بيا ئے مصر ته سفر اُوکړو او د مدينے ملاقات ته راغلو، کله چه راواپس شو نو حسد ګرو ورسره حسد اُوکړو او دهٔ باندے ئے دا تهمت اُولګولو چه

دۀ یونوے مذهب جوړ کړیدے چه هغے ته (مذهب جمالی) وائی۔ نو حکومت اُونیولو په سنه (۱۳۱۳ هـ) او تپوس ئے ترے اُوکړو نو هغه دغه تهمت رد کړو نو بیا ئے پریخودو۔ او د دمشق والی ورته معذرت اُوکړو، بیا دا کور ته لاړو او د خلقو نه جدا شو او په تفسیر او علوم د شریعت اسلامی او ادب کښ د تصنیف او د خاص او عام درسونو کولو دپاره ئے ځان فارغ کړو۔ او ډیر بحثونه ئے په مجلاتو او صحیفو کښ خواره کړیدی۔ دۀ پدے مختصر (٤۹) کاله ژوند کښ (۷۲) کتابونه لیکلی دی۔ چه هغه علامه زرکلی په خپل کتاب (الاعلام) کښ ذکر کړیدی مشهور کتاب ئے (قواعد التحدیث من فنون مصطلح الحدیث) دے۔

او دا تفسیر محاسن التاویل ئے په (۱۷) جلدونو کښ لیکلے دے۔

ددۀ ځوی ظافر القاسمی ددۀ په سوانحو یو کتاب لیکلے دے : (جمال الدین القاسمی وعصره)۔

مصنف د خپل تفسیر په مقدمه کښ د تفسیر منهج داسے لیکلے دے چه ما پدے تفسیر کښ پس د استخارے کولو نه صفا تحقیقات او مهم بحثونه ذکر کړیدی او بعض مے د پخوانو مفسرینو تحقیقات او ملغلرے جمع کړیدی او دے سره مے د خپل ذهن نه فوائد لیکلی دی د کوم دلیل چه ما ته ښکاره شویدے او زما پرے پوره اعتماد پیدا شویدے۔ او پدے کښ ما صحاح او حسان احادیث راوړیدی۔ او خپل کتاب مے په ذیلی بحثونو او تدقیقاتو نۀ دے اُوږد کړے بلکه په حل د مشکلاتو کښ مے د ښائسته ایجاز او اختصار نه کار اخستے دے۔ او انسان که هرڅومره کوشش اُوکړی خو بیا به هم د الله د کتاب ټول معانی او دقائق او باریکات او تحقیقات نشی راجمع کولے۔

بیا وائی چه زه به پدے ټولو کارونو کښ د تقویٰ او د انصاف نه کار اخلم او طلب د حق به خپل مقصد ګرځوم او د تعصب په لاره به نۀ روانیږم۔

دا تفسیر هم سلفی تفسیر دے او ډیرے مزیدارے نکتے پکښ ذکر دی او د آیتونو تفاسیر د سلف صالحینو په طرز شویدی او د دلائلو سره خبرے پکښ ذکر شویدی۔ ددے مطالعه کول هم انتهائی ضروری دی۔

دۀ هم د خپل تفسیر په ابتداء کښ یوه مزیداره جامعه مقدمه لیکلے ده چه کتلو سره تعلق لری۔ وبالله التوفیق۔

## هغه مفسرین چه د احکامو د آیتونو تفسیر کوی:

عام مفسرین د قرآنی آیتونو د احکامو تفسیر کوی، بعض مفسرین د آیتونو نه شرعی احکامو ثابتولو ته ډیر اهمیت ورکړیدے او احکام ئے تر جزئیاتو پورے بیان کړیدی اگرکه د قرآن د ټولو آیتونو تفسیر هم کوی۔ او هغه مخکښ تیر شو۔
لیکن اُوس هغه تفاسیر بیانیږی چه صرف د منتخب آیتونو تفسیر کوی کوم چه د عملی احکامو سره متعلق وی، داسے تفاسیرو ته فقهی تفاسیر یا د فقهاؤ تفاسیر وئیلے شی۔

### (۱) احکام القرآن د جصاص حنفی متوفی (۳۷۰هـ)

دده مکمل ابوبکر نوم احمد بن علی رازی دے، جصاص ورته ځکه وائی چه د جص معنیٰ د چونے ده او دهٔ به د چونے کار کولو پدے وجه ورته جصاص وئیلے شی دا په خپل وخت کښ د حنفیه ؤ امام وو، بغداد ته په ځوانئ کښ راغلے وو او د فقه درس ئے د ابوالحسن کرخی نه اخستے وو او دهٔ ته د قضاء القضاء منصب سنبالولو دعوت ورکړے شو لیکن قبول ئے نهٔ کړو او دوباره دعوت ورکړے شو بیا ئے هم قبول نکړو۔ ددهٔ مشهور تصنیفات دی احکام القرآن، د مختصر الکرخی شرح، د مختصر الطحاوی شرح، د امام محمد د جامع شرح، د اسماء حسنی شرح او ادب القضاء۔
۔ددهٔ په مشهورو استاذانو کښ امام طبرانی سلیمان بن احمد دے (کوم چه د معاجم ثلاثو مصنف دے)
دا په (۳۰۵هـ) کښ پیدا شوے وو او په (۳۲۵هـ) کښ بغداد ته راغلے وو او وفات ئے په (۷) ذی الحجه (۳۷۰هـ) د (٦٥) کالو په عمر شوے وو۔ او د جنازے مونځ پرے ابوبکر محمد بن موسی خوارزمی کړ ے وو۔ [تاریخ بغداد ۳۱٤/٤ ترجمه: ۱۲۱۲]۔
امام جصاص د خپل شیخ ابوالحسن کرخیؒ په طرز روان وو۔
د ابوالحسن کرخی په باره کښ ابوالحسن محمد بن عباس بن فرات لیکلی دی چه [وَكَانَ مُبْتَدِعًا رَأْسًا فِي الْاِعْتِزَالِ، مَهْجُورًا عَلٰى قَدِيْمِ الزَّمَانِ] [تاریخ بغداد ۳۵۳/۱۰ ترجمه: ۵۵۰۷]۔
دا بدعتی وو او د معتزلو د مسلك رئیس وو، او خلقو د پخوا زمانے نه پریخوستے وو۔

نو امام جصاص هم په اعتزال کښې د خپل شيخ نه متأثره وو۔
دا په خپل تفسير کښې په فروعي او فقهي مسائلو کښې د امام ابو حنيفه دپاره سخت تعصب کوي او د فقه حنفي دپاره د آيتونو تکلفي او غير متبادر تاويلات هم کوي۔ او په اصولي مسائلو کښې د اهل سنت والجماعة په مقابله کښې د معتزلو د مسلك تائيد هم کوي۔ ددے يو مثال : د سحر په باره کښې د جصاص رائے د معتزلو مطابق ده چه سحر هيڅ اثر نۀ کوي او د سحر دوه قسمه ئے ذکر کړيدي او د دواړو د حقيقت نه ئے د معتزلو په شان انکار کړيدے۔ او د فرعون د ساحرانو سحرئے په شعبده بازئ او نظر بندئ او خيال بندي او دهوکه باندے حمل کړيدے او په (۹) صفحاتو کښې ئے د شعبده بازانو مثالونه پيش کړيدي۔ او کوم مرفوع حديث چه په بخاري او مسلم کښې راغلے دے نو د هغے نه ئے انکار کړيدے چه دا ملحدينو وضع کړيدے۔ حال دا چه دا ډيره ناکاره خبره ده بلکه دا د صحيح احاديثو نه د يوے غلطے رائے په وجه انکار کول دي۔
۲- دغه شان امام جصاص د معتزلو په شان په قيامت کښې د الله تعالیٰ د رؤيت نه هم منکر دے۔ چه دا هم يوه باطله نظريه ده۔
اګرکه په بعض فقهي مسائلو کښې ئے د انصاف نه هم کار اخستے دے۔ لهذا کتاب ئے بالکليه د فائدے نه خالي نۀ دے۔
د جصاص احکام القرآن دار احياء التراث الاسلامي بيروت (۱۹۵۸ء) کښې په (۵) جلدونو کښې شائع کړيدے۔

## (۲) احکام القرآن د الکيا هراسي متوفى (۵۰٤هـ)

ددۀ مکمل نوم : علي بن محمد بن علي الطبري ابو الحسن عماد الدين دے ليکن په (الکيا الهراسي) نوم سره مشهور دے۔
د فقه شافعي لوئي فقيه وو۔ په اصل کښې د طبرستان سره ئے تعلق لرلو ليکن نيشاپور ته تلے وو او کافي مودے پورے د امام الحرمين الجويني نه علم فقه حاصلوله۔ تردے چه پدے فن کښې کمال ته اُورسيدو، دده مخ ښائسته وو، آواز ئے اُوچت وو، او خبرے ئے فصيح او خوږے وے۔ د امام الحرمين نه ئے چه فقه حاصله کړه نو د نيشاپور نه بيهق ته لاړو او څه مودے پورے ئے هلته تدريس کولو، بيا عراق ته لاړو او په مدرسه نظاميه بغداد کښې مدرس مقرر شو تردے چه په بغداد کښې وفات هم شو۔

د امام الحرمين په شاګردانو کښ د امام غزالي نه روستو دده درجه ده بلکه دا د خوش آوازئ په وجه سره د هغه نه هم غوره وو،

دے نه روستو دا د ملك شاه سلجوقي ځوی مجد الملك برکياروق دربار سره پيوسته شو او ډير مال ئے اوګټلو او د سلجوقي په حکومت کښ ورته قضاوة ملاؤ شو۔ دا محدث وو او په خپلو مناظرو او بحثونو او مجلسونو کښ به ئے احاديث زيات استعمالول۔

د الکيا ولادت په ذو القعده (۴۵۰ هـ) کښ شوے وو او وفات ئے په محرم (۵۰۴ هـ) کښ په بغداد کښ شوے وو او د شيخ ابو اسحاق شيرازي په مقبره کښ دفن شوے وو۔

ده تـه اَلْکِيَا هَرَاسِیُ ولے وائی؟ د الکيا خو عجمي معنیٰ ده معزز شخص او د مرتبے په لحاظ سره د خلقو نه منخکښ تلونکے۔ او هراسي يا د ځائے نوم دے يا هراس د هريسے نه دے چه يو قسم حلواء ته وئيلے شي يا هراس يوه ونه ده چه ازغی لری۔ ليکن معلومه نهٔ ده چه دهٔ ته هراسي ولے وائی۔

الکيا هراسي خپل احکام القرآن د مسلك شافعي د تائيد دپاره ليکلے دے او په دهٔ کښ هم مسلکي تعصب شته او په بعض مقاماتو کښ ئے په امام جصاص باندے ردونه کړيدي او د خپل تفسير په ابتداء کښ ئے ليکلي دي چه ما دا تفسير د امام شافعي د آراؤ پهٔ تائيد کښ ليکلے دے۔

دا تفسير هم د شوافعود آراؤ د معلومولو دپاره ښه کتاب دے اګرکه تعصب پکښ شته۔ ليکن ددے سره فوائد هم پکښ شته۔

دا تفسير دار الکتب العلميه بيروت په (۱۹۸۴ء) کښ په دوه جلدونو کښ شائع کړيدے۔

### (۳) احکام القرآن د ابوبکر ابن العربي متوفی (۵۴۳ هـ)

ددهٔ نوم محمد بن عبد الله بن محمد دے ابوبکر ئے کنيه ده او د ابن العربي په نوم سره مشهور دے۔

د اندلس په مشهور ښار اشبيليه کښ پيدا شوے وو پدے وجه ورته ابن عربي اندلسي اشبيلي هم وائی۔

دا حافظ وو، د علم سمندر وو، د اندلس علماؤ او د امامانو او حافظانو اختتام په دهٔ باندے شوے وو۔

دا وائی: زه د خپل پلار سره په (۴۸۵ هـ) کښ د مصر په سفر وتلے رم او شام ته هم تلے وم،

شام کښې ئې د ابوبکر طرطوشي نه د فقه علم حاصل کړے وو او بغداد ته هم تلے وو او هلته ئې د مشائخو نه د حدیثو سماع اُوکړه او علوم ئې حاصل کړل. بیا په (٤٨٩ هـ) کښې حجاز ته لاړو او حج ئې اُوکړو، د حج نه واپس بغداد ته راغلو او د ابوبکر شاشي، امام غزالي او د نورو علماؤ او ادباؤ صحبت ئې اختیار کړو. په مصر او اسکندریه کښې ئې هم د محدثینو د یو جماعت صحبت اُوکړو، او په (٤٩٣ هـ) کښې د ډیرو علومو سره اشبیلیه ته واپس راغلو، ابن عربي په مختلفو علومو او فنونو کښې مهارت او تجربه لرله او د هغې په تعلیم او اشاعت کښې حریص هم وو. ذهین وو، په آداب او اخلاق او ښائسته معاشرت او سخاوت او شرافت د نفس صفاتو سره متصف وو.

د وعدے پابند وو او دوستي سنبالونکے وو، په اشبیلیه کښې قاضي مقرر شو نو خلقو د هغه نه زیاته فائده حاصله کړه پدے وجه چه دا د احکام شرعیه ؤ په نافذ کولو کښې ډیر سخت وو او په ظالمانو باندے ددهٔ ډیر لوئی هیبت طاري وو. بیا د قضاوت د ذمه وارئ نه جدا شو او د تدریس او تعلیم او تصنیف او تالیف په کار کښې مصروف شو.

دا په (۲۲) شعبان (٤٦٨ هـ) کښې د زیارت په شپه پیدا شوے وو او ددهٔ وفات په ربیع الثاني (٥٤٣ هـ) کښې شوے وو او فاس ښار کښې دفن شوے وو. [وفیات الاعیان لابن خلکان ٢٩٦/٤].

- ددهٔ تعارف ابن کثیرؒ داسے کړیدے : ((فقیه ابن العربي مالکي وو، د ترمذي شارح وو، فقیه او عالم وو، زاهد او عابد وو، په فقه کښې د مشغول کیدو نه روستو د حدیثو سماع ئې کړے وو. د غزالي په صحبت کښې پاتے شوے وو او د هغه نه ئې علوم حاصل کړي وو لیکن د فلاسفو د رائے طرف ته د میلان په وجه سره به ئې په هغه باندے اعتراض هم کولو او وئیل به ئې چه امام غزالي د فلاسفهٔ په خیټو کښې داخل شوے وو لیکن بیا د هغې نه نشو وتلے. والله اعلم. [البدایة والنهایة ٢٢٨/١٢، ٢٢٩].

امام ذهبيؒ وائي : ابن عربي د امام غزالي او علامه ابوزکریا تبریزي او فقیه ابوبکر شاشي د درسګاهونو نه فارغ التحصیل وو. او ددهٔ ډیر معلومات راجمع کړي وو او تصنیفات ئې لیکلي دي په ادب او بلاغت کښې کمال ته رسیدلے وو او د لرے لرے پورے دده د علم شهرت رسیدلے وو. په علم کښې د ژور دریاب په شان وو، پرقیدونکے ذهن ئې لرلو او ښائسته اخلاق ئې وو. او الله ورله ډیر مالونه ورکړي وو. کله چه د اشبیلیه قاضي مقرر شو نو خلقو ددهٔ صفت اُوکړو او ددهٔ ډیر ښائسته سیاست اُوکړو. (یعني ډیر مزیدار نظم ونسق

ئے اُوچلولو)۔ په قضاوت کښې ډېر سختئ او رعب او هيبت والا وو۔ [تذکرة الحفاظ للذهبي : ١٢٩٥/٤]۔

د قاضي ابن العربي په شاګردانو کښې قاضي عياض او ابو القاسم سهيلي په شان امامان د حديثو هم شامل دي او دهٔ ډېر تصانيف هم پريخوستي دي۔

لکه (١) احکام القرآن (٢) عارضة الاحوذي شرح ترمذي (٣) الناسخ والمسوخ (٤) العواصم من القواصم۔ (٥) القبس في شرح موطأ ابن انس۔ (٦) المسالك على موطأ مالك۔ (٧) الانصاف في مسائل الخلاف۔ (٨) المحصول في اصول الفقه۔ (٩) اعيان الاعيان۔ (١٠) قانون التاويل۔

پدے کښې ابتدائي څلور کتابونه چاپ شويدي او مشهور دي۔

ابن العربي په خپل کتاب (القبس في شرح موطأ ابن انس) کښې ليکلي دي چه ما يو کتاب ليکلے دے چه ددے نوم (انوار الفجر في تفسير القرآن) دے ۔ دا کتاب ما په (٢٠) شل کاله کښې پوره کړيدے او دا په (٨٠) زره صفحاتو مشتمل دے۔ شيخ برهان الدين فرحون وئيلي دي چه ما ته شيخ ابو الربيع برغواطي په مدينه منوره کښې (٧٦١هـ) کښې وئيلي وو چه ما ته شيخ يوسف الحزام مغربي په اسکندريه کښې په (٧٦٠هـ) کښې وئيلي وو چه د ابن العربي تفسير انوار الفجر ما پوره پوره ليدلے وو۔ دا کتاب ما د امير المسلمين ابو عنان بن امير المسلمين ابو سعيد په خزانه (يعني د کتابونو خزانه) کښې ليدلے وو۔ او په هغه وخت سلطان ابو عنان په مراکش ښار کښې وو۔ دسلطان کتب خانه په سفر کښې هم د هغه سره وه او زه د يو جماعت سره د کتابونود بندولو او پورته کولو په خدمت باندے مامور وم۔ ما چه کله ددے جلدونه شمار کړل نو (٨٠) جلدونو ته اُورسيدل او کتاب پوره وو۔ ناقص نهٔ وو۔ ابو الربيع وائي چه ما ته دا خبر راکونکے شخص يوسف الحزام ثقه او رشتيني او نيك سړے وو او هميشه ئے د خپل لاس رزق خوړلو۔

[طبقات المفسرين ١٦٩/٢]۔

د ابن العربي په احکام القرآن کښې تطويل او اطناب نشته بلکه مختصر او جامع کلماتو باندے مشتمل تفسير دے، ترتيب ئے هم ډېر زيات ښه او آسان دے، د هر سورت په ابتداء کښې وائي چه پدے سورت کښې د آيات الاحکام تعداد دومره دے۔ او بيا د المسئلة الاولى او المسئلة الثانيه په عنوان سره د هر آيت متعلق احکام او مسائل بيانوي۔ اکثر خو د امام مالك مسلك ته ترجيح ورکوي ليکن په بعض مسائلو کښې د امام مالك د رائے په مقابله کښې خپله جدا رائے

هم پیش کوی لکه د سورۃ فاتحې په دویمه مسئله کښې ئې د مقتدی دپاره د فاتحې لوستلو مسئله د اقوالو سره ذکر کړیده بیا وائی چه زما په نیز صحیح دا ده چه په سری مونځ کښې په مقتدی باندې فاتحه لوستل واجب دی. او دا مذهب د مالکیه ؤ خلاف دې.

د ابن العربی یو خصوصیت دا دې چه د اسرائیلی روایاتو او ضعیف روایاتو نه سخت نفرت کوی.

امام قرطبیؒ هم په دهٔ باندې ډیرې حوالې ورکوی.

دا تفسیر دار الکتب العلمیه بیروت په (۱۹۸۸ء) کښې په شلورو جلدونو کښې شائع کړیدې. او لاندې ئې د احادیثو تخریج هم کړیدې.○

## په اردو ژبه کې د قرآن بعض مفید تفسیرونه

### (۱) تفسیر تفهیم القرآن

د سید ابو الاعلیٰ مودودیؒ متوفی (۱۹۷۹ء)

دَ ابو الاعلیٰ مودودیؒ صاحب پیدائش په (۳) رجب (۱۳۲۱ھ) کښې مطابق (۲۵) ستمبر (۱۹۰۳ء) کښې د حیدر آباد په مشهور ښار اورنگ آباد کښې شوې وو. او د (۱۹۷۹ء) کښې (۷۶) کالو په عمر وفات شوې وو. دهٔ د جدید تعلیم د فراغت نه روستو د دیارلسو کالو په عمر کښې د مولوی امتحان ورکړو چه د میټرك سره برابر وو. بیا د (۲۳) کالو په عمر کښې ئې علوم عقلیه او نقلیه سند فراغت حاصل کړو.

ددهٔ د تفسیر نوم دې تفهیم القرآن ددې ابتداء ئې (۱۳٦۱ھ) مطابق (۱۹٤۲ء) کښې کړې وه او په (۲٤) ربیع الثانی (۱۳۹۲ھ) مطابق (۷) جون (۱۹۷۲ء) کښې ئې مکمل کړې وو او پدې کښې ئې دیرش کاله او شلورو میاشتې لګولې وې.

دهٔ د تفسیر په اختتام کښې وئیلی دی چه ما په ابتداء کښې زیات تفصیل نهٔ کولو ځکه چه ما پدې تفسیر سره غرض متوسط درجه خلق وو چه هغوی ته د لویو تفاسیرو نه په اخذ کښې دقت او مشکلات وو نو د هغوی دپاره د تفسیر د آسانولو هدف مې جوړ کړو پدې وجه د اولنی جلد په حواشیو کښې اختصار شویدې لیکن روستو راته د تفصیل ضرورت محسوس شو.

نو پدې وجه دهٔ په ابتدائی درې جلدونو کښې خاصکر په اول جلد کښې تشریح او تفسیر

کښې اختصار کړيدې ليکن روستنی دريے جلدونو کښې ئے ددے تلافی کړيده۔
دۀ د لفظی ترجمے په ځائے د عام فهم ترجمے لحاظ کړيدے۔ ليکن په بعض ځايونو کښې ئے د لغوی معانيونه ډيره ورانده ترجمه کړيده۔ پکار دا ده چه داسے عام فهم ترجمه اُوکړے شی چه د لفظی ترجمے معنويت هم لحاظ اُوساتلے شی۔
دۀ په آخری جلدونو کښې د احکام او قوانينو بحثونه تفصيل سره کړيدی او په تفسير کښې ئے غير متعلق بحثونه نۀ دی چيړلی۔
دا په تفسير کښې د سورتونو په ابتداء کښې ديباچے ذکر کوی چه په هغے کښې عموماً څلور خبرے ذکر وی د سورة د نوم وجه د تسميه۔ زمانه د نزول متعين کول۔ شان نزول او پس منظر يعنی هغه حالات بيانول چه په هغے کښې سورة نازل شوے وو۔
څلورم مضامين او مباحث۔
لنډه دا چه پدے تفسير کښې هم ډير ښه معلومات جمع دی او فائده ترے اخستل پکار دی۔

(۲) **تفسير ماجدی** د مولانا عبد الماجد دريابادیؒ

مولانا عبد الماجد دريابادی اول په انگريزئ ژبه کښې د قرآن ترجمه او تفسير ليکلے وو بيا ئے په اردو کښې هم اُوليکلو۔
دا د خپل تفسير په مقدمه کښې ليکی چه ما لاندينی تفاسيرو نه استفاده کړيده : تفسير ابن جرير، تفسير کشاف، تفسير کبير، تفسير قرطبی، معالم التنزيل، تفسير ابن کثير، تفسير بيضاوی، البحر المحيط، احکام القرآن لابن عربی او احکام القرآن د جصاص۔ د لغاتو کتابونو کښې مفردات القرآن، لسان العرب او تاج العروس نه ئے زياته استفاده کړيده۔ او زياته استفاده ئے د مولانا تهانوی د بيان القرآن نه کړيده۔دا د جديد علومو ماهر وو، ليکن تفسير کښې ئے د متقدمينو طرز استعمال کړيدے ځکه چه دا د مولانا مودودی سره پاتے شوے وو۔ د مستشرقينو، متجددينو او عيسايانو د اعتراضاتو مختصر مگر مدلل جوابات ورکوی۔
دا تفسير ئے د مسودے په شکل په (۱۹٤٤ء) کښې په پاؤ باندے دريے کالو کښې پوره کړے وو۔ چه عمر ئے (۵۱) کاله وو۔ چه په مسوده او نظر ثانی او نظر ثالث ټول باندے ئے پاؤ باندے (٦) کاله لګولی دی۔
دا هم بهترين تفسير دے۔

(۳) **تدبر قرآن** د امین احسن اصلاحی۔
دا د مودودیؒ صاحب ملگرے پاتے شویدے۔

ددهٔ استاذ مولانا فراهی سره ئے (۵) کاله تعلیم او تربیت حاصل کړیدے۔ او خپل ځان به ئے د هغه د منهج ترجمان ګنړلو۔

ددے دواړو منهج دا دے چه قرآن به خپله په قرآن کښ د تدبر کولو په ذریعه فهمولے شی ۔ د تدبر فی القرآن حکم الله تعالیٰ کړیدے او تفسیر القرآن بالقرآن به کولے شی۔ دا دواړه د عربیت ماهرین وو او په عربی لغت ئے عبور حاصل وو لیکن دوی د رسول الله ﷺ احادیث، د صحابه کرامو او تابعینو آثار او د امت مسلمه د زرګونو محدثینو، مفسرینو او فقهاؤ تدبر او تفقه شا ته ارتوی یا په هغے باندے یو طائرانه نظر اچوی او خالص د عربی مهارت په بنیاد باندے تفسیر کوی او د سلفو تدبر اخوا کوی او د خپل شیخ په تدبر باندے اعتماد کوی دا ډیره لویه بے احتیاطی ده، احادیثو له د قرآن کریم په تفسیر کښ هیڅ دخل نهٔ ورکول د منکرینِ حدیثو کار دے۔ پدے وجه دوی خپل فکر او تدبر ته په احادیثو باندے ترجیح ورکوی۔ او دوی چونکه د لغاتو ماهرین وو پدے وجه ښه یقینی خبره چه امت پرے اتفاق کړے وی بخاری او مسلم او نورو محدثینو په صحیح اسانیدو راوړی وی هغه دوی په خپل د سحر په شان الفاظو سره د لوستونکو مخے ته یو بے بنیاده خبره پیش کوی۔

دده تفسیر (تدبر قرآن) په بعض ځایونو کښ ډیرے ښے نکتے ذکر کوی، د هر چا ښه ته ښه وئیل او بد ته بد وئیل د اهل سنتو اصول دی۔ پدے وجه ددے تفسیر نه هم فائده اخستل ښه دی۔

(٤) **تفسیر**

## تیسیر الرحمن لبیان القرآن

د ډاکټر لقمان صاحب

لقمان صاحب د مدینے یونیورسټی نه د فراغت حاصلولو نه روستو د دار الافتاء ریاض سعودی عرب په شعبه د دعوت او ارشاد کښ ملازم شو۔ پدے شعبه کښ به په دهٔ باندے مختلف سوالونه راتلل چه یو سوال دا وو چه کوم خلق د هندوستان نه سعودی ته کاروبار دپاره راغلی دی د هغوی دپاره یو تفسیر سره د ترجمے نه پکار دے، دا وائی چه ما به خلقو

تــه د مختـلف تـفاسيرو رهنمائي كوله ليكن په اكثرو تفاسيرو كښ به د توحيد د عقيدے بيـان نۀ وو كوم چه د قرآن كريم بنيادي موضوع ده او بعض تفاسير په بدعاتو مشتمل وو، بـعـضـے په انفرادي او ډله بازئ او شخصي آراء او نظرياتو باندے مشتمل وو چه په ډيرو به زمـا زړه نـۀ مـطـمـئن كيدو۔ نو په دغه زمانه كښ زما په زړۀ كښ د داسے ترجمے او تفسير سخت ضرورت محسوس شو چه د قرآن تفسير په قرآن كريم، صحيح احاديثو او صحيح اقوال د صحابه كرامو او د صحابه كرامو نه په نقل شوى تفسيرونو سره اُوكړے شي۔

د ډيرو هـنـدوسـتـانـي عـلـمـاؤ نـه به ما مطالبه هم كوله چه داسے تفسير تيارول پكار دى ليـكـن هـغـوى بـه شـا تـه كيـدل۔ آخـر دا چـه ما پخپلـه پدے كار شروع اُوكړه او د سلف صالحينو د منهج مطابق مے تفسير اُوكړو۔

○ ددے تفسير اهم **خصوصيت** دا دے چه د قرآن كريم تفسير ئے بيرته په قرآني الفاظو سره كړيدے دے دپاره چه په قرآن باندے پو هه په ښه شان سره حاصله شي۔

○ پـدے تـفـسيـر كـښ د بـدعـاتو رسو ماتو، د نام نهاد تصوف د انحرافاتو رد او په عقيده د رسالت او ختم نبوت او د الله د اسماء او صفاتو په توحيد كښ ښه وضاحت شويدے۔

○ تـمـام فـقـهـي مـسـائـل ئے د قرآني آيتونو او د صحيح احاديثو په رڼړا كښ په وضاحت سره بيـان كـړيدي۔ په بت پرستئ، قبر پرستئ، شركي اعمالو او غلطو تصوراتو باندے ئے ډير مزيدار انداز كښ بحث كړيدے۔ لنډه دا چه دا يو مختصر مگر جامع تفسير دے۔

دا تـفـسيـر پـه باريك كـاغـذ كـښ په اُوردو صفحو كښ په (۱۸۳۸) اتلس سوه اته ديرش صفحو مشتمل دے چه ددے نه تقريباً درے جلدونه جوړيږي۔ ليكلے شويدے۔

او د مـديـنـے يـونـيـورسـتـي پـنـځـه طلبة العلم ئے ددے تفسير په نظر ثاني او تصحيح باندے مـقـرر كـړي وو۔ او هـغـه تـولـو ددے تـأثرات بيان كړيدي او بيا د چاپ كولو نه مخكښ ئے خپلے بى بى (ام عبد الله) ته د كتلو دپاره وركړے وو او هغے هم خپله رائے داسے وركړه: داسے ښـكـاري چـه اُوس زه پـه قـرآن پـه ښـه شـان سره پو هيږم، مخكنو ترجمے او تفاسيرو نه په تسـلـسـل سره ما د قرآن مفاهيم او معاني نشو زده كولے۔او دے تفسير كښ دومره تسلسل دے چه اُوس زه په قرآن پو هه شوم۔

○ لـقـمـان صـاحـب وائـي چه ما ددے تفسير او ترجمے په تيارئ كښ پنځه كاله عمر پدے طريـقـه لگولے دے چه پدے توله موده كښ به ما روزانه تقريباً شپاړس گينټے كار كولو، په سفر او حضر كښ به ئے ددے مسودات د ځان سره گرځول او كله او چرته چه به موقع ملاؤ

شوه نو د هغې په تصحيح او تدقيق کښې به لګيا شوم۔ پدې وجه زۀ وايم چه ما ددې ترجمې او تفسير په تيارولو کښې پنځه کاله نۀ بلکه پنځلس کاله لګولي دي۔ (محمد لقمان السلفي رياض ۔ ۲۳/شعبان سنه (۱٤۲۱ھ) مطابق (۱۹) نومبر سنه (۲۰۰۰ء)۔

○ د بعض ملګرو په درخواست سره ددې تفسير پښتو ترجمه چه پښتانه ورونه د الله په کتاب پوهه شي راقم (ابوزهير سيف الله) او (ابو سلمان حضرت محمد) دواړو شروع کړيده ان شاء الله چه درې څلور مياشتې روستو به منظرِ عام ته راشي۔

## (۵) تفسير احسن البيان

د صلاح الدين يوسف چه دار السلام په يو جلد کښې چاپ کړيدې مختصر او جامع سلفي تفسير دې، پدې کښې يو خصوصيت دا ذکر کوي چه دا تفسير د لفظ (خدا) ذکر کولو نه خالي دې هر ځائے د (الله) لفظ ذکر شويدې۔

او دا تفسير هم د بدعتو او رسومتو په ترديد کښې مزيدار تفسير دې۔

## (٦) تفسير تيسير القرآن

د شيخ عبد الرحمن کيلاني صاحب۔

دا تفسير هم ډير مختصر او جامع تفسير دې، د سلف صالحينو په منهج تفسير پکښې بيان شويدې۔ ددې نه هم فائده اخستل پکار دي۔ دا په پنځه جلده کښې چاپ شويدې۔

★★★

## (۷) نفسير احسن الكلام

د الشيخ العلامة المفسر السيد عبد السلام حفظه الله

په پښتو ژبه کښې تفاسير هم ډير شے دي ليکن مشهور تفسير زمونږ د شيخ القرآن علامه ابوزکريا (تفسير احسن الكلام) هم ډير جامع تفسير دے د هغے نه هم مسلمانانوله فائده اخستل پکار دي۔ دوی ددې تفسير ابتداء د مردان په جيل کښې کړے وه ليکن هغه چونکه مختصر وو بيا ئے تفصيل سره لوئى تفسير په نهه جلدونو کښې تيار کړو۔ دوی په رستم ضلع مردان کښې اُوسيدل ليکن د څۀ دعوتي مشکلاتو په وجه پيښور ته رانقل شو۔

شیخ صاحب جامع المنقول والمعقول، شیخ الحدیث او شیخ التفسیر دے، الله تعالیٰ ئے په عمر کښې دې برکت اچولے دے، ټول عمر ئے د الله دَ کتاب او د رسول الله ﷺ د احادیثو په خدمت کښې تیر کړیدے، په هر مقام کښې ئے د قرآن درس کړیدے، په ډیره سخته بیمارئ کښې به ئے هم درس نۀ پریخودلو۔ او تر اُوسه پورے د الله د کتاب په تفسیر کښې مشغول دے لیکن اُوس د ډیر ضعیف کیدو په وجه ډاکټرانو پرے پابندی لګولے ده۔

شیخ صاحب په علماؤ کښې یو وقار والا د سلفو په طرز جید عالم دے، حاضر جواب، مناظر، او ښائسته بیان کونکے او د قرآن په تلاوت کښې انتهائی اثرناك آواز لری چه د هغه د آواز په آوریدو سره د انسان د هغه د ملاقات شوق پیدا کیږی۔

په اهل علمو کښې منلے شوے او معتمد عالم دے۔ الله تعالیٰ دې ورله روغ صحت او عافیت ورکړی او په ژوند کښې کړے سعی او کوششونه دې الله تعالی په خپل دربار کښې مقبول او منظور اُوګرزوی۔

oooooooooo

## (۷) تفسیر حکمة القرآن

په پښتو ژبه کښې مونږ هم د یو تفسیر ابتداء کړیده ځکه چه د الله د کتاب مزایا نۀ ختمیدونکے دریاب دے، هر عالم ته الله تعالیٰ خپله خپله پو هه د هغه د شان مطابق ورکړې وی۔

پدے وجه زمونږ په زړه کښې هم الله تعالیٰ دا شوق پیدا کړو چه یو تفسیر تیار کړے شی چه د الله د کتاب سره مو تعلق پیدا شی او د هغه د کتاب رازونه او حکمتونه مونږ او نور مسلمانانو ته واضحه شی نو مونږ د تفسیر حکمة القرآن یو جلد تر (راعنا) پورے تیار کړیدے او د ملګرو لاسونو ته رسیدلے دے، ان شاء الله چه نورو جلدونه به زر تر زره ستاسو د مخلصینو ملګرو په دعاګانو سره وجود ته راشی۔

ددے **تفسیر** پنځوس **خصوصیات** د دغه تفسیر په مقدمه کښې ذکر شویدی، هغے ته رجوع اُوکړئ۔

الله تعالیٰ دې اُوکړی چه مونږ او ټول مسلمانان په خپل صحیح دین پو هه کړی او د

خپل دین په خدمت کښې زمونږ دا څو ورځے ژوند تیر کړی چه هغه رانه رضا شي او د هغے په نتیجه کښې لوئی کامیابو ته اُورسو۔

د اُووه دیرش تفاسیرو تعارف ختم شو۔

وبالله التوفیق۔

وسبحانك اللهم وبحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك واتوب اليك، وصلى الله على نبينا محمد وآله وصحبه اجمعين۔

[۱۳/ جمادی الاولی : ۱۴۳۱ھ، مطابق : ۲۰۱۰/۴/۲۹، یوم الاربعاء]

OOOOOOOOOOOO

## فهرست اصول التفسير وعلوم القرآن :

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## دويم باب -- علوم القرآن

